# تفسیر ایوبی حنفی

تالیف

علامہ عصر وحید الدہر ابو الفضل مولانا محمد عبد الحمید الایوبی

القندھاری العلیا خیلی الحنفی النقشبندی عم فیضہ

الناشر

مکتبۃ القراءۃ والتجوید

کاسی روڈ شالدرہ کوئٹہ

بسم الله الرحمن الرحيم

په پښتو ژبه کښې اولنی او په افغاني تاريخ کښې بې ساري
په زر گونو جديدو مسئلو باندې مشتمل

# تفسير ايوبي حنفي

سُبۡحٰنَ الَّذِیٓ ۱۵ *** ۱۶ قَالَ اَلَمۡ

يوولسم ټوک ۱۱

تاليف او تصنيف

علامة العصر ابو الفضل شيخ التفسير والحديث فقيه دوران مفسر الزمان

## حضرت مولانا محمد عبيد الله الايوبي

الكندهاري السليمانخيلي الحنفي النقشبندي حفظه الله تعالى

مكتبة القرآة و التجويد

کانسي روډ شالدره کوټه

# د کتاب پېژندنه


د کتاب نوم.................... تفسیر ایوبي پښتو یوولسم توک

مؤلف.......................... الحاج مولنا محمد عبید الله الایوبي الکندهاري السلیمانخیلي الحنفي حفظه الله تعالی بفضله الوهبي

کمپوزر........................ حبیب الحق حقاني (مینګل)

ټایپ .......................... حقاني کمپیوټر اداره

نشر کوونکي اداره ............ مکتبة القراء ت والتجوید کانسي روډ کوټه

د چاپ ځای ...................... لاهور پاکستان


# یو نظر دې خوا

هیڅ یو مسلمان هم په قرآن مجید، احادیثو یا دفقهي په کتابو کې په قصده سره غلطي نه کوي، زموږ اداره تر خپله وسه پوري د کتابو تر لیکلو وروسته تصحیح ته زیاته پاملرنه کوي، چې ددې په وجه زموږ کتابونه معیاري دي، خو بیا هم بنده بنده دی، یو نه یو ځای څه ناڅه غلطي په املاء کې یا په یوه جمله کې ځني صادره سي، نو زموږ د ټولو ناظرینو څخه دا خواست دی چې که ستاسي تر نظر داسي غلطي تېره سي لطفاً زموږ سره تماس ونیسئ، تر څو د کتاب د دوهم وار په چاپ کې د هغې تېروتنې اصلاح وسي.

**په درناوي ستاسي وروږ شمس الحق شمس**

بسم الله الرحمن الرحيم




**الطبعة الاولى**

۱٤۳۰ هجري - ۲۰۰۹ ميلادي

**مكتبة القراءة و التجويد**

شارع كانسي كوئته-باكستان

رقم الهاتف ۰۳۰۳۸۸۵۵۳۵

**MAKTABTUL-QIRRAT WALTAJWEED**
KANSI ROAD QUETTA BALOCHISTAN

ISBN 2-7451-3140-0





الحمد لله المنان، الذي علم القرآن، خلق الانسان، علمه البيان، وصدق رسوله النبي الامي للانس و الجان.

وبعد: محترمو لوستونكو د تفسير ايوبي يوولسم توک ستاسو په لاسونو كښې دی، کوم چې د پښتو په تاريخ کې يو ځانګړی مقام او حيثيت لري.

کوم چې: د تحت اللفظ ترجمې سره سره پر روانه او سليسه ترجمه باندې مشتمل دی.

کوم چې: په زرګونو نوې مسئلې پکښې حل شوې دي.

کوم چې: سوچه او رښتينې واقعات لري

کوم چې: د تفسير سره سره د وخت د مقررينو او د جمعې د تقرير کوونکو لپاره يوه لويه علمي ذخيره هم ده.

کوم چې: د سوال او ځواب په بناشسته انداز کې خپل ويونکې پوه کوي.

کوم چې: د آيتونو او احاديثو په منځ د ظاهري تعارضاتو دفع کوي.

کوم چې: د تفسير القرآن بالقران يو ځانګړی نمونه او مثال دی.

کوم چې: د نوي نسل لپاره حجت او دليل دی.

کوم چي: په اسانه او قانوني پښتو باندي ليکل سوی دی.

کوم چي: قرآني متن يې له اعرابي غلطيو او رسم الخط له غلطيو څخه پاک دی.

کوم چي: قرآني متن يې هم هغه متن دی کوم چي د سوونو کلونو راپه دې خوا زموږ سترګې ورسره مانوسيت لري.

کوم چي: د نوي (دورجديد) پر ټولو تقاضاوو باندي مشتمل دی.

کوم چي: د نوو فارغه سوو علماؤ او قديم علماؤ کرامو لپاره يو رنګه مفيد او ګټور دی.

کوم چي: د ګران هيواد څخه د لېري او سېدونکو لپاره وعظ، عالم، مفسر، مفتي او سيرت او قصص بيانونکی دی.

کوم چي: يې له ټولي نړۍ څخه د مبارکي پېغامونه را رسېدلي دي.

کوم چي: يې په اوسني تفاسيرو کي له ټولو څخه سيالي ګټلې ده.

نو که په دې ټولو مطالبو کي موږ تر کومه حده پوري بريالیتوب تر لاسه کړی دی، دا ټوله ستاسو د مشفقانه مشورو او دعاګانو نتيجه ده، هيله ده چي په خپلو مفيدو مشورو مو نور هم ونازوئ؟ او په خپلو دعاګانو کي مو همېشه ياد ولرئ.

والسلام

(قاري) فضل الحق حقاني

د مکتبة القرائت والتجويد مؤسس

سُورَةُ الْاِسْرَآءِ مَكِّيَّةٌ وَهِيَ مِائَةٌ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ اِحْدٰى عَشْرَةَ آيَةً وَّ اِثْنَا عَشَرَ رُكُوْعًا

الحمد لله الذي جعل هذا العبد المجهول الذليل من خدام الكلام المجيد والقرآن الحميد، وجعل الصلوة والسلام على حبيبه المصطفى في تضاعيف التفسير من اهم الروابط بينه ﷺ و على آله وبين هذا العاصي لانه قد صح عن النبي ﷺ من صلى علي في كتاب لايزال الملائكة يدعون له ما دام اسمي في الكتاب او كما قال.

يقول العبد الضعيف قد شرعت في تفسير هذا الجزء (١٥) في وقت سعيد قبيل وقت الصبح من يوم الاحد (١٤) الشهر المبارك ذوالقعدة الحرام من شهور سنه (١٤٢٩) هجري قمري في كوئټه باكستان وارجوا من فضله العظيم ان يوفقني لتفسير هذا الجزء بل لتفسير بقية اجزا القرآن العزيز بالصحة والسلامة والفرح والسرور انه تعالى على كل شئ قدير وبالاجابة جدير اللهم سهل وتقبل.

**درويش وايي:** چي عادت الهي جاري دى چي شروع د هر سورت په بسم الله سره كوي، الا سورة برائة.

**فائده:** دا سورت په نامه د سورت بني اسرائيل سره مشهور دى او سورت اسرى يې هم بولي، او بعض علمأ يې سورت سبحان بولي.

**فائده:** ابن مردوية له ابن عباس او عبدالله بن الزبير ﷺ څخه روايت كړى دى چي دا سورت ټوله مكي دى، وهو قول الجمهور، او صاحب الفنيان وايي بالاجماع، او بعض مفسرين وايي الا آيتين وان كادوا ليفتنونك وان كادوا ليستغفرونك، وقيل غير ذالک كما هو المشهور والمذكور في روح المعاني.

سُبْحٰنَ الَّذِيْٓ اَسْرٰى بِعَبْدِهٖ لَيْلًا مِّنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اِلَى الْمَسْجِدِ الْاَقْصَا

پاكي ده د هغه چا لپاره چي بوتلى يې بنده د شپې بنده دده.

**درويش وايي:** چي "سبحان" مصدر دى د سبح بتخفيف البا ومعنى سبح ذهب

في الارض وبعد فمعنى سبح الله بعد الله من جميع النقائص والعيوب، او گاهي سبحان مصدر د سبح بالتشديد من باب التفعيل راغلى دى، نو پر دې تقدير سبحان اسم مصدر دى يعني په ځاى کي د اسم مصدر د باب د تفعيل وضع سوى دى مثل سبح الله سبحاناً، او گاهي سبحان علم مصدر هم راغلى دى كما في قول الشاعر

وقلت لما جائني نحزه ............ سبحان من علقمة الفاخر

وحينئذٍ فهو غير منصرف للعلمية وزيادة الالف والنون، ولهذا سبحان ته يې په دغه ځاى کي تنوين نه دى ورکړى كما هو قانون غير المنصرف في النحو والشيخ الرضي انكر علمية، او د شعر مذكور يې داځواب ورکړى دى چي اصل يې سبحان الله من علقمة آه، فحذف المضاف اليه وهو لفظ الله وترك المضاف على حاله فعدم التنوين في الشعر للاضافة لا للعلمية فهو منصرف، او قاضي محمد مبارک په منهيه د شرح السلم داځواب ورکړى دى چي كلمه من د من علقمه زائده ده فسبحان في الشعر المذكور مضاف الى علقمة.

**درويش وايي:** چي وهذا ليس بوجه والحاصل چي سبحان في مثل سبحان الله درې احتماله دي (١) المصدرية نو پر دې تقدير فعل مصدر يې سبح دى بالتخفيف فهو لازمي والله فاعله ومعناه ماذكرناه (٢) اسم مصدر دى يعني قائم د اصل مصدر دى او په معنى هم د اصل مصدر دى، او پر دې تقدير يې عامل سبح بتشديد البا او لفظ د الله يې مفعول دى او فاعل يې محذوف دى (٣) علمية المصدر دى، پر دې تقدير يې هم عامل د باب د تفعيل محذوف دى او لفظ د الله مفعول به دى.

**پوښتنه:** څه فرق دى د اسم مصدر او د علم مصدر؟

**ځواب:** فرق يې اعتباري دى يعني د تسبيح چي تنزيه ده يوه معلومه معنا ده، نو اعتبار او لحاظ د تعين ورسره ونه کړى اسم مصدر دى او که يې اعتبار د تعين ورسره وکړى علم مصدر دى.

**سوال:** باعث پر اعتبار او نه اعتبار څه شى دى؟

**ځواب:** باعث يې امر لفظي دى چي په سبحان من علقة الفاخر کي اعتبار د

تعین غواړي ناچي غير منصرف سي للعلمية والالف والنون، نو دا به يې وجه د سكوط د تنوين وي كما في شعر المذكور، او په سبحان الله كي باعث لفظي نشته، نو ځکه اسم مصدر دی، وهذا الفرق بين اسم الجنس وعلم الجنس كاسد واسامة چې دواړه د زمري نومان دي لكن "اسامة" په كلام عربي كي غير منصرف راځي يعني لايقبل التنوين ولا الجر ومن اسباب عدم الانصراف فيه سبب واحد وهو التانيث اللفظي فاعتبروا فيه العلمية لسبب عدم انصرافه التانيث والعلمية بخلاف الاسد فانه يستعمل منصرفاً.

**پوه سه:** چې عامل د نصب د سبحان الذي هغه فعل متروك اظهاره دی چې بعض علماً وايي چې اصل يې اسبح الله سبحاناً ؤ په صيغه د متكلم واحد، او بعض وايي سبحوا الله سبحاناً په صيغه د امر پر هر تقدير مراد ځني تنزيه بليغ ده خدای ﷻ من جميع العيوب والنقائص قلباً وقولاً لامجرد قول سبحان الله.

**پوښتنه:** فعل ناصب د سبحان الله ولي واجب الحذف دی؟

**ځواب:** اصل د كلام سبحت الله سبحاناً ؤ نور لپاره تخفيف چې كثرت الاستمال يې مقتضي دی فعل يې حذف كړی او لفظ د سبحان يې وه لفظ الله ته مضاف كړی يعني سبحان الله او يا وضمير ته نحو سبحانه او يا و موصول ته نحو سبحان الذي دا اضافت به د عامل محذوف دليل وګرځي او قائم مقام العامل به سي، نو اوس داسي نه ده روا سبحت سبحان الله لانه جمع بين العوض والمعوض عنه ولان المعمول وهو لفظ الله لايرضى بعمل عامل ضعيف وهو المصدر اذا وجد في الكلام العامل القوي وهو سبحت اى الفعل هكذا قالوا.

**پوه سه:** چې قول مفسرين ﷻ پر دې متفق دي چې "اسرى" د شپې د بيولو ته وايي خاصةً لكه سرى نو اسرى او سرى سره يو دي. زفر ﷺ وايي چې د اسرى په ويلو سره هغه سوال چې بعض حكما يې كوي چې د عليه الصلوة والسلام بدن لكه د نورو انسانانو ثقيل او د ثقيل ميل خو مركز عالم ته دی نه د اسمان پر خوا لكه خفيف اجسام يعني هوًاء والنار دفع سو، ولي چې په قرآن كي اسرى راغلی دوی سار يعني خدای ﷻ بوتی نه دی په خپل فافهم لكه طياره چې

په ځيل هوا او لوړه ځوا ته طيران نه سي کولای بلکې طياره چلونکی يې پورته کوي يعني پيلوټ.

**فائده:** ليلاً ظرف دی د اسری نکره چي راوړي لپاره د دلالت پر تقليل د مدة د اسری وانها بعض الليل.

**تنبيه:** بعبده يې ووايه برسوله او حبيبه يې نه ووايه تاچي په عليه الصلوة والسلام غلو څوک ونه کړي چي هم نبي دی او هم الله دی لکه توهم النصاری في عيسی عليه السلام، او بل په عبد ويلو کي اشاره و دې ته ده چي مقام د عبوديت تر مقام د رسالت لوړ دی يعني په رسول کي، ولي چي په عبوديت کي توجه ده من المخلوق الی الخالق وفي الرسالة توجه من الخالق الی المخلوق فتدبر ای في التبليغ اليهم، مجنون وايي:

لا تدعني الا بيا عبدها "ای ليلی" ........ فانه اشرف اسمائی

يو بل عاشق و ځيل معشوق ته خطاب کوي او وايي:

بالله ان سئلوک عني قل لهم ....... عبدی وملکي وما اعتقته

او د ابی القاسم سليمان الانصاري څخه روايت دی چي عليه الصلوة والسلام چي په شپه د معراج ورسېدی الی الدرجات العالية والمراتب الرفيعة اوحي الله عزوجل اليه يا محمد بم نشرفک؟ قال عليه السلام بنسبتي اليک بالعبودية فانزل الله تعالی سبحان الذي اسری بعبده، وقد جأ في الحديث قولوا عبد الله ورسوله يعني کما جأ في قعدة الصلوة اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمداً عبده ورسوله.

**فائده:** دليل ددې چي رسول الله ﷺ وه معراج ته په روح او جسد دواړو سره بېول سوی دی لفظ د عبد دی، ولي چي عبد مجموع جسد او روح ته وايي، او بل دليل يې دادی چي براق چي د قسم د دوابو ؤ انما يحمل الاجساد، او بل دليل يې دادی چي که معراج په روح سره وای فقط يعني په حال د خوب يا د استغراق په حال کي وايي، نو منکرانو د معراج ولي انکار پر کاوه، ولي په حال کي د خوب هر قسم مستبعد حالات سړی ويني او دغه رنګه په حال کي استغراق في المحبة کما يدل عليه التجربة.

"ليلاً" منصوب دى على الظرف كما مر، او ليلاً تاكيد دى د اسرى، ولي چي اسرى د عربو په ژبه كي لايكون الا ليلاً حتى چي دا توهم ونه كړل سي چي دا اسرا به نهاراً وه، او بله فائده د ليلاً داده چي پر تقليل د مدت السير دلالت وكړي كما مر، ولي چي كه څوك ووايي سرت الليل يعني معرفه معنا بي په عربي كي داده چي گرده شپه مي تګ وكړي، نو شپه يې معيار دى لكه ورځ چي د روژي معيار ده، نو د الفاتحه په باره كي به سرى داسي وايي صليت ظهراً البدل على الظرفية لان وقت الظهر ليس معياراً لصلوته فافهم.

**فائده**: د عليه الصلوة والسلام معراج د رجب د مياشتي پر اووه ويشت تاريخ ؤ، و عليه عمل الناس اى المسلمون په ټوله اسلامي نړى كي او د دوشنبي شپه وه.

**پوه سه**: چي عليه الصلوة والسلام د دوشنبي په ورځ و عالم دنيا ته په مكه مكرمه كي ستر گي روڼي كړي دي، او د دوشنبي په ورځ نبوت وركړل سوى دى او د دوشنبي په شپه يې له مكي څخه هجرت كړى دى او د دوشنبي په ورځ مديني منوري ته رسېدلى دى او وفات يې هم د دوشنبي په ورځ سوى دى، شاه عبد العزيز دهلوي رحمه الله په خپل تفسير كي وايي چي ددې معنا او سر دادى:

لايمكن الثنا كما كان حقه ........ بعد از خدا بزرگ توئى قصه مختصر

**پوښتنه**: څه حكمت ؤ د خداى ﷻ چي د شپي يې عليه الصلوة والسلام و معراج ته بوتلى، كه يې د ورځي بېولى واى چي خلگو ليدلى واى، نو د خلگو طعن او تكذيب به نه واى؟

**ځواب**: يو حكمت يې دا ؤ چي صدق او كذب د خلگو معلوم سي يعني چي څوك يې تصديق كوي په دې قصه كي او څوك يې تكذيب كوي حتى چي بعض مسلمانان په اورېدلو سره د قصې د معراج مرتد سوه، او بل حكمت دادى چي شپه وخت د ملاقات دى د حبيب د حبيب سره، او ورځ وخت دى د فراق. بل سبب دادى چي شپه وخت دى د عبادت بې ريا له دې سببه د تهجد لمونځ افضل النوافل دى، او بل حكمت دادى چي شپه وخت د راحت ده من تعب النهار او ورځ

وخت د مشاغلو وي په امورو سره د دنيا، نو شپه نمونه د جنت ده او ورځ نمونه د دوږخ ده، ولذا قدم الليل على النهار في جميع القرآن، او بل حكمت دادی چي پټ مجلسونه خلګ د شپې کوي.

**درويش وايي**: چي مظهري رحمه الله له بخاري او مسلم څخه په روايت د انس بن مالک بن صعصعة رضي الله عنه داسي روايت کړی دی چي عليه الصلوة والسلام وويل بينا انا في المسجد الحرام بين النائم واليقضان اذ آتاني جبرئيل بالبراق وبعبارة اخرى بينا انا في الحطيم مضطلجا او آتاني آتٍ آه. او روح المعاني هم دغه حديث ذکر کړی دی.

"من المسجد الحرام" روح البيان وايي چي اصح د رواياتو دادی چي اسرى له بيت څخه د ام هاني بنت ابى طالب وه چي نوم يې فاختـه وه او د فتح مکه پـه کال يې ايمان راوړی او ددې بيت په حرم کي داخل دی، والحرم کله مسجد ولهذا قال من المسجد الحرام.

**پوه سه**: چي علماً وايي چي حدود د حرم د مدينې له خوا څخه درې ميله دی او د عراق له خوا څخه اووه ميله دی، او د جعرانه له خوا څخه نهه ميله دی او د طائف له خوا څخه اووه ميله دی او د جدې له خوا څخه لس ميله دی. دغه پينځه ميقاته عليه الصلوة والسلام ټاکلي دي او معين کړي يې دي لپاره د احرام.

**مسئله**: څوک چي قصد د بيت الله شريفي لري تر دغو ميقاتو بـه بې احرامه نه تېرېږي تعظيماً لبيت الله الشريف، خواه دی په نيت زيارت د بيت الله روان وي او که لپاره د تجارت روان وي او غيره.

**درويش وايي**: چي افسوس چي يو رئيس جمهور پـه نامه د يوې جلسې لپاره مکې مکرمې ته ورتلی او د سعودي حکومت مطاف ورته خالي کړی له طواف کوونکو څخه کما هو عادة الحکومة السعودية في وقت مجئ السلطان او يا رئيس جمهور د يو د مملکت اسلامي، نو دا رئيس جمهور بېله احرامه په خپل درېشي کي ورغلی او حجر اسود يې مچ کړی بيرته راووتی.

"الى المسجد الاقصى" اى بيت المقدس دا يې مسجد اقصى ولي وباله ځکه

چي د حرم مکي څخه تر مسجد اقصى پوري بل مسجد نه ؤ په هغه زمانه کي، نو مسجد د بيت المقدس هغه نهايت لېرې مسجد ؤ له مسجد حرام څخه.

**مسئله**: د عليه الصلوٰة والسلام معراج له مسجد حرم څخه تر مسجد اقصى پوري چونکه په صريح قرآن سره ثابت دى. نو منکر يې کافر دى، او له مسجد اقصى څخه بيا تر لامکان پوري په صحيح حديثو سره ثابت دى کما سيناتي ان شاالله تعالى نو منکر يې مبتدع دى كذا في كتب التفاسير المعتبرة.

**درويش وايي**: چي وه اسرى ته د عليه الصلوة والسلام له بيت څخه د ام هاني جامي هروي قدس سره په دې بيتو کي اشاره کړې ده:

چو دولت شد زيد خواهان نهانى ...... سوى دولت سراى ام هانى
در آمد ناگهان نا موس اكبر ...... سبكرو تر از ين طاؤس اخضر
برو ماليد پر كه اى خواجه برخيز ...... كه خوابت آمد امروز دولت انگيز
بسيج راه عرشت كردم اينک ...... براق برق سير آوردم اينک

الَّذِي بَارَكْنَا حَوْلَهُ لِنُرِيَهُ مِنْ آيَاتِنَا

چي برکت اېښى دى موږ پر شاوخوا د هغه مسجد اقصى اى بيت المقدس يعني ببركات الدين والدنيا، ديني برکت يې دادى چي مهبط د ملائکه وو دى او ځاى د عبادت د انبيا عليهم السلام وو دى له وخت څخه د موسى عليه السلام، او دنياوي برکت يې دادى چي جاري ويالې د اوبو پکښې دي او مېوه داري درختي او سرسبز او شاداب باغونه پکښې دي ومع هذا اردن او دمشق او فلسطين هغه ښارونه او وطنونه دي چي پر شاوخوا د بيت المقدس واقع دى، چي موږ وويښو په ده بعض له آياتو څخه د قدرت خپل. مفسرين رحمهم الله وايي چي يو له آيتو څخه تګ ده دى تر بيت المقدس پوري په بعض الليل کي چي تر هغه ځايه پوري د يوې مياشتي د آس د تګ مسافت دى.

**درويش وايي**: چي بعض جاهلان د اسرعت د تلو د عليه الصلوة والسلام تر بيت المقدس پوري له دائرې څخه د عقل د باندې بولي، او دوى له قدرت څخه د خداى جل جلاله بې خبره دي بلکي په عقلي شيانو هم نه دي خبر، محقق بيضاوي

وايي چي دا استحاله د سرعت سير د عليه الصلوة والسلام او يا هغه براق چي دی پر سپور ؤ مرفوع ده، ولي چي په علم هندسه کي چي عقلي علم دی دا ثابته ده چي په منځ کي د يوه طرف د قرص الشمس تر بل طرفه پوري مضاعف دی د بعد تر منځ د يوه طرف د ځمکي تر بل طرف پوري يوسل پينځه شپېته (١٦٥) واره، او دا هم هندسه والاوو ثابته کړې ده چي طرف اسفل د لمر و ځای ته د طرف اعلی د لمر د يوې ثانيې په کمه زمانه کي رسېږي.

**درويش وايي**: چي ما دا دليل عقلي د بيضاوي که څه هم ډېر دقيق ؤ لپاره د اقناع د دغه جاهل چي پابند د عقل ؤ او د خدای ﷻ له قدرت څخه غافله ؤ راوړی فلا يرد مايتوهم فافهم.

**درويش وايي**: چي شيخ اکبر محي الدين ابن عربي قدس سره وايي چي معراج د آنحضرت ﷺ څلور دېرش واره واقع سوی دی، يو وار په جسد او روح دواړو سره ؤ چي په دې آيتو کي مراد دی او مشهوره قصه د معراج چي مفسرين يې بيانوي هم دغه معراج دی، او مظهري رحمه الله وايي چي قد انعقد عليه الاجماع، او نور معراجونه د عليه الصلوة والسلام چي درودېرش دي هغه په خوب کي وه قبل النبوة وبعدها، گويا هغه معراجونه د مقدمة الجيش په شکل وه د دغه معراج لپاره کالرؤيا الصادقة التي رئها رسول الله ﷺ قبل النبوة کما في البخاري ومسلم وغيرهما.

**درويش وايي**: چي له آيات څخه چي عليه الصلوة والسلام وليدل دا وه چي په مسجد کي د بيت المقدس تولو انبيأ عليهم السلام سره جمع کړي وه او عليه الصلوة والسلام ودوی ته په امر د جبرئيل دوه رکعته لمونځ په جماعت ادا کړی چي په اول رکعت کي يې "قل يا ايها الکافرون" او په دوهم رکعت کي يې "قل الله احد" ووايه، انبيأ عليهم السلام تولو اووه صفه وه، درې صفه يې رسولان وه او ملائکه وو هم په جماعت لمونځ پسي وکړی، او دا امامت له خصائصو څخه د ده مبارک دی کما قال القاضي زکريا في شرح الروض قال علامه بغداد السيد الآلوسي رحمه الله في روح المعاني، والحکمة في ذالک ان يظهر انه امام کل انبيأ

عليهم السلام والى هذا اشار العارف الجامي قدس سره:

دران مسجد امام انبیا شد ......... صف پیشینان راپیشوا شد

لکن په دې کي اختلاف دی چي دا امامة الانبياء قبل العروج ؤ او که وروسته تر عروج وه، علامه ابن كثير په خپل تفسير کي وايي چي دا امامت وروسته تر عروج ؤ، او قاضي عياض رحمه الله په شفا کي وايي چي قبل العروج ؤ.

**درويش وايي:** چي وهو الاشهر. او له آياتو څخه چي عليه الصلوة والسلام وليدلې سدرة المنتهى وه چي د يوې درختي نوم دی چي نمونه يې په مځکه کي هم سته چي د بېري درخته يې بولي، او بېره يې مېوه ده چي دا درختي په هندوستان کي ډېري دي او د پاکستان په ځينو ځايو لکه سند او پنجاب کي هم سته. والى هذه الشجرة اشير في قوله تعالى "اذ يغشى السدرة مايغشى آه" چي پر دې درختي انوار رنګارنګ توی سوه.

**درويش وايي:** چي منتهى يې په دې بولي چي علم او پرواز د ملکو تر درختي پوري دی وبس او جبرئيل تر دغه درختي پوري د عليه الصلوة والسلام ملګری ؤ او بيا رفرف پيدا سو چي پر هغه عليه الصلوة والسلام کښېنستی او تر لامکان پوري ولاړی، ودې ته سعدي شيرازي قدس سره په دې بيتو کي اشاره کړې ده او وايي:

چنان ګرم درتیه قربت براند ......... که درسدره جبرئیل ازو باز ماند

بدو ګفت سالار بیت الحرام......... که ای حامل وحی برتر خرام

بګفتا پرا تر مجالم نماند ......... بماندم که نیروی بالم بماند

اګر یک سر موی برتر پرم......... فروغ تجلی بسوزد پرم

عليه الصلوة والسلام وايي چي وروسته زه په پردو کي د نور داخل کړه سوم چي اوويا زره پردې دي قطع کړې آه، او په دې سفر کي عليه الصلوة والسلام لوی او کوچني ستوري وليدل او ملائکه صف صف ودرېدلي او جنت او دوزخ يې وليدی الى غير ذالک من عجائب ملكوت السموات او په هر اسمان کي د يو نبي سره د انبياء عليهم السلام ملاقات کړی دی کما صحح في البخاري وغيره

وسيئاتي تفصيله ان شا الله تعالى، ومن اعجب ما رئ ما نقل روح المعاني عن ابن عباس رضي الله عنه قال انه عليه الصلوة والسلام رئ في ليلة المعراج في مملكته جلت قدرته خلقا كهيئة الرجال على خيل بلق (پر کمرو اسانو سپاره) شاكي السلاح" چي په سلاح د جنګ ټوله مسلح وه، جګ جګ چي د هر يوه زر کاله مسافت ؤ الفرس كذالک يو په بل پرله پسې وه چي نه يې اول معلوميدى اونه يې اخير. نو عليه الصلوة والسلام و جبرئيل ته وويل، من هؤلاء؟ جبرئيل ورته وويل چي ته نه دى اوريدى دا قول د خداى جل جلاله "ومايعلم جنود ربک الاهو" جبرئيل ورته زياته کړه چي زه همېشه مځکي ته ځم او بيرته اسمانو ته راځم دغه مسلح فوج روان دى، نو زه نه پوهېږم چي له کومې خوا راځي او چېري ځي.

**نکته**: سوال او پوښتنه دا پيدا کېږي چي عليه الصلوة والسلام ولي اول بيت المقدس ته بوتلل سو، وروسته وه اسمانو ته اولاً له مکې مکرمې څخه د څه حکمت له کبله پورته نه ولاړى؟

**ځواب**: سبب او حکمت دا ؤ چي تدريجاً عليه الصلوة والسلام شرف ورته حاصل سي يعني په زيارت سره د بيت المقدس، او امام وايي چي د انبياً عليهم السلام شرف کمامر ورته حاصل سي، او بعض مفسرين وايي چي سرزمين د بيت المقدس مځکه د محشر ده په ورځ د قيامت، نو عليه الصلوة والسلام چي خداى جل جلاله بيت المقدس ته وروستى ددې لپاره چي هغه مځکه هم دده په قدم مبارک سره مشرفه سي ذهاباً واياباً يعني په تګ او راتګ دواړو کې، او بعض مفسرين وايي چي هغه دروازه چي ملکي ځني راکښته کېږي او پورته کېږي پر مقابل د صخرة د بيت المقدس ده.

**فائده**: خداى پاک په آيت قبلي کي يعني "لنريه من آياتنا" کلمه د من چي دلالت پر بعضيت کوي راوړه له دې سببه چي ټوله آيات د قدرت الهي خو غير متناهي دي، نو د ټولو ليدل خو لاتكاد تقع، نو که داسي ويل سوي واى "لنريه آياتنا" توهم د ټولو آياتو د ليدلو يې کېدى وقيل غير ذالک.

**درويش وايي**: چي خبري ذهبري راڅخه اوږدې سوې. نو راځئ نو موږي پړاؤ

تنه د معراج د قصې ولاړ سو على مافي صحيح كتب التفاسير، عليه الصلوة والسلام د معراج په شپه په خوارړه خوب بیده ؤ چې جبرئيل، میکائیل او اسرافیل علیهم السلام راغله او د هر یوه سره ډېري ملکي ورسره وې، نو د خوني سر د ام هاني یې پور ته کړی یعني خلاف المعتاد، جبرئيل په خپل وزر سره علیه الصلوة والسلام له خوبه بیدار کړی، علیه الصلوة والسلام وایي چې زه جبرئيل ته ورولاړ سوم او ورته وه مي ویل چې اخي جبرئيل مالک؟ جبرئيل ورته وویل یا محمد زه خدای پاک راواستولم چې محمد ﷺ راوله په ننه شپه کي او داسي کرامت دی چي وتاته یې درکړی دی چي تر اوسه یې هیڅ چا ته نه دی ورکړی او نه به یې له دې وروسته چا ته ورکړي، ته به د خدای ﷻ سره ملاقات وکړې او عجائب د قدرت الهي به ووینې په خپلو سترگو. قال عليه الصلوة والسلام فتوضأت وصليت ركعتين، نو جبرئيل دده مبارکه سینه ورڅیري کړه له گرو څخه د نس تر پایه بلکې تر معدې پورې اي اشار جبرئيل الى ذالک فانشق.

**یوه سه:** چې دا شق چونکه خرق العادة ؤ نو نه په آلاتو د جراحي ؤ او نه په جریان د وینو ؤ او نه درد ؤ او نه تکلیف ؤ کما في العمليات الجراحية من جانب الاطبا في زماننا هذا، او نه په نشه ؤ کما هو المعتاد اليوم، نو جبرئيل یو د زمردو لگن راوړی او د علیه الصلوة والسلام زړه مبارک یې له خپل ځایه څخه راوویستی درې واره یې د زمزم په اوبو پرېولی او له زړه څخه یې بعضې ویني راوکښلې.

**فائده:** له دې څخه دا معلومه سوه چې د زمزم اوبه اشرفه تر ټولو اوبو دي حتی د جنت تر اوبو. ولي که داسي نه وای نو جبرئيل به اوبه له جنته ورسره راوړې وای، بیا یې بل لگن د سرو زرو راوړی چې ډک ؤ له ایمان او حکمت څخه هذا لفظ البخاري یعني لکه واوره داسي تک سپین شی پکښې ؤ چې د هغه استعمال په زړه کي سبب د زیاتوب د ایمان او تسلیم او حکمت گرځېدی نو د زړه له وینو څخه خالي ځایونه یې په ډک کړه.

**تنبیه:** ددې افرېښن حکمت دا ؤ چې په سفر کي د معراج به علیه الصلوة والسلام عجائب د ملک او ملکوت ووینې او د جناب سره د رب خپل به قاب

قوسين وګرځي، نو هر زړه ددې شيانو د ادراک او ليدلو متحمل نسي ګرځېدای، نو له دې سببه په زړه کې د عليه الصلوة والسلام په ډکولو د دوهم لګن د شي ډېر قوت پيدا سو چې قابل د رؤيت د جلال او جمال د خدای ﷻ وګرځېدی. او وروسته جبرئيل بېرته زړه و خپل ځای ته ورساوه او پر ځيري سوي ځای يې ګوتې تېره کړه نن او ځيګر مبارک يې سره ملتئم سوه وما روي عن بعض الصحابة ﷺ انهم رؤا اثر المخيط في صدره عليه السلام هو ذالک الاثر من مرور جبرئيل يده علی صدره عليه السلام.

**تتمة شق الصدر:** پوه سه! چې د عليه الصلوة والسلام ته شق الصدر د معراج په شپه دريم وار دی، اول شق الصدر يې په هغه وخت کې و چې دی په بني سعديه قبيله کې و چې دده رضعي مور حليمه سعديه ﷺ په دغه قوم کې وه او د عليه الصلوة والسلام عمر پينځه کاله و علی ماقاله ابن عباس ﷺ په دې وار شق الصدر کې د عليه الصلوة والسلام له زړه مبارک څخه يې توره وينه وکښل چې دا وينه د انسان په زړه کې ځای د وسوسو د شيطان وراچوي له هم دې سببه به عليه الصلوة والسلام لهو لعب او نور ساتېرې د هلکانو سره نه کاوه.

**پوه سه:** چې دا رنګه شرح الصدر خاصه ده د عليه الصلوة والسلام د نورو انبياؤ عليهم السلام سره خدای پاک داسې شرح الصدر نه دی کړی کما قال روح البيان

**درويش وايي:** چې درې شرح الصدر وغسل القلب واخراج الدم منه خواصې د عليه الصلوة والسلام دي کما لايخفی علی من شرح الصدر للتامل في شرح الصدر للنبي عليه السلام.

**درويش وايي:** چې قصه ددې چې عليه الصلوة والسلام ولي دايي ته ورکړل سوی و سره ددې چې دده مور بي بي آمنه هم ژوندۍ وه او د هغو عجائب چې حليمه او ددې خاندان په سبب د وجود ددې حليمه په کور کې مشاهده کړې وې ډېره اوږده ده. دوهم شق الصدر يې په وخت کې د مجيئ الوحي و ليحمل قلبه اعبا الرسالة يعني چې زړه يې قوي سي او درانه بارونه د رسالت برداشت کړي او پر درې لوئ لوئ ازارو چې مشرکانو د مکې به ده ته ورکول صبر وکړي الی غير

ذالك من جهاد، في سبيل الله خصوصاً في غزوة احد كما مرت قصته في هذا التفسير، او دريمم وار شق الصدر يې په ليلة المعراج كي بشكاره سوه، كمامرت عنقريب وقد ذكرنا حكمت الله ﷻ في هذه النوبة من شق الصدر فتذكر وتدبر.

او د معراج په شپه جبرئيل عليه السلام يوه دابه چي فوق الحمار او دون البغل وه يعني په جسم کي د خان سره راوستلي وه له جنت څخه چي براق بضم البا يا يې له دې سببه براق باله چې سپينه دابه وه د برېښ پر بشيدله. او يا په سبب د سرعت د تگ ددې لکه پښلبو د وريځي په وخت کي كما قال الجامي رحمه الله:

پسيچ راه عرشت کردم اينک ......... براق برق سير اوردم اينک

په حديث شريف کي راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام وايي "مارئيت دابه احسن منها آه" نو جبرئيل يې ملتو ونيول او ميکائيل يې رکيب تينگ كړي او اسرافيل تر شا ورته ولاړ و قال عليه الصلوة والسلام فركبتها. جامي وايي:

ازان دولت سراچون خواجه دين ......... خرامان شد بعزم خانه زين
شد از سيو حيان گردون صدده ......... كه سبحان الذي اسرى بعبده

**درويش وايي**: چي په دې کي اختلاف دى چي جبرئيل ورسره سپور سو او که څرنگه، صاحب المنتقي وايي والظاهر عندي انه لم يركب لانه عليه الصلوة والسلام بشر في الاسرا انتهى، درويش وايي چي جبرئيل سپرېدلو ته څه ضرورت لري.

**درويش وايي**: چي په لاره کي چي عليه الصلوة والسلام بيت المقدس ته رسېدى څه عجائب چي عليه الصلوة والسلام وليدل ما ملتوي كړل لعدم الاعتماد على اسنادها. ايليا ته چي عليه الصلوة والسلام ورسېدى چي د شام په سرزمين کي ده او مدينة القدس يې بولي په زرگونو ملكي دده استقبال ته منتظري وې بيا چي عليه الصلوة والسلام و مسجد ته د بيت المقدس ورغلى له براق څخه پياده سو د مسجد په دروازه کي لو په ډبره پرته وه جبرئيل لاس په چيغ كړى الغه غونډي شى يې ځني جوړ كړى او براق يې پوري وتاړه براق ته كه څه هم د تړولو ضرورت نه ولكن بيا هم جبرئيل د عالم اسباب له لاري دا كار وكړى

او بـل ددې لپاره چـې يـوه معـجزه او د اسـرا د علیـه الصـلوة والسـلام يـو دلیـل وګرځي كما سيأتي في حديث ابي سفيان ﷺ وهو هذا.

**درويش وايي:** چي صحيح كتابونـه د احاديثو وايـي لكـه بخاري او مسلم وغيرهما چي علیه الصلوة والسلام چي د مديني منورې د شاوخوا يهودانو له جهاد څخه فارغـه سو. نو د اطرافو بادشاهانو دعوت د اسلام د دين د مكاتبو يعني په خطونو استولو يې لاس پوري كړى. نو له هغو خطو څخه يې يو كسرى ته د فارس نوشته كړى خو هغه مكتوب د علیه الصلوة والسلام په بيباكى سره توک توک كړى. علیه الصلوة والسلام ته چي دا حال ورسېدى زړه يې له ګورمه او غمه ډک سو او داسي ښېرا يې وكړه "اللهم مزقهم كل ممزق" خدايـه تـه ټوک ټوک كړې حكومت د فارسيانو. نو پـه لږ زمانـه كي باچهي د فارسيانو او د كسرى جاني لـه لاس څخـه ولاړه چـي قصـه يـې ډېره اوږده ده، او يـو خـط يـې نجاشي ته د حبشي نوشته كړى او بل خط يـې و قصير روم تـه نوشـته كړى. ابو سفيان چي په هغه وخت كي پـه اسلام نـه ؤ مشرف سوى. وايـي چـي زمـوږ يـوه قافله روم ته يعني د هرقل چي د روم بادشاه ؤ دار الحكومت ته ورسېد له موږ په يو ځاى كي اوسېدلو چي د هرقل فوجيان راغـله موږ يې دربار تـه وروغوښتلو لپاره د معلومات د احوالو د علیه الصلوة والسلام موږ چي ورغلو هرقل وويل چي ددغه مدعي د نبوت په مكه كي څوک پـه تاسي كي پـه نسب كي و هغـه تـه نژدې دى، ما ورتـه وويـل زه ورنژدې يم. نو زه يـې و ځان تـه نژدې كښېنولم. او زما ملګري يې زما و شاته كښېنول. نو يې د علیه الصلوة والسلام پـه بـاره كـي زما څخه ډېري پوښتني وكړې.

**درويش وايي:** چي د هرقل سوالونه او ځوابونـه د ابو سفيان پـه بخاري او مسلم كي مفصل ذكر سوي دي، هرقل پوښتنـه وكړه چي دغـه مدعي د نبوت درواغ ويلـه بيلـه ددې دعوې د نبوت؟ ما ورته وويل چي دغه يـوه خبره خـو يـې كړې وه چي زه له حرم مكي څخه رهي سوم د شپې او بيت المقدس چي ستاسي معبد دى په دغه شپه كي ورسېدم او بېرته حرم مكي تـه راغلـم پـه داغـه شـپه كي. نو

دغه خو وایي که یې ته دروغ بولې او که رښتیا مونږ خو یې دروغ بولو؛ راوي وایي چې د هرقل قیصر روم په مجلس کې یو بطریق ناست وو چې پخواني خادم د بیت المقدس وو هغه بطریق وویل چې هغه شپه چې د عربو نبي وایي چې زه بیت المقدس ته ورغلی یم ماته معلومه ده، هرقل ورته وویل ماعلمک بها؟ ته په هغه څرنګه خبر یې؟ بطریق ورته وویل چې زه په مسجد اقصی کې وم او هیڅ شپه نه بیدېدم تر څو مې د مسجد اقصی ټولې دروازې نه وای بندې کړې. نو په دغه شپه چې دوی لیلة المعراج د نبي عربي بیانوي ماټولې دروازې وتړلې یو دروازه وه چې هر څه کوشش مې وکړی نه مې سوه تړلای وهو الباب الفلاني. نو ما مرسته وغوښتله د کارکوونکو چې دلته حاضر وه نو په ټولو مو هم قدرت د تړلو نه کړی پیدا. نو مونږ وویل چې شاید د دروازې دېوال پر راکښته سوی دي، نو اتفاق پر دې سو چې سبا به یو بنا او نجار راولو چې وه یې ګوري. بطریق زیاته کړه چې سهار چې ورغلم دروازه چې مې پوري وهل یې عذره او یې مانع وتړل سوله دباندې چې ورووتلم هغه لویه ډبره سوري سوې ده یعنې پر دا سې ډول لکه یوه دابه چې پوري تړل کېږي؛ نو زه پوه سوم چې دا دروازه چې نه تړل کېدل او دا ډبره چې سوري ده دا د نبي لپاره سوي دي، ولې په علم قدیم کې ما دا لیدلي وه چې یو نبي له بیت المقدس څخه معراج ته ځي، نو مې ملګرو ته وویل چې دروازه چې نه تړل کېدله د یو نبي لپاره خلاصه ولاړه وه چې دا نبي براېې شپه له بیت المقدس څخه اسمان ته تللی دی.

**پوښتنه**: دروازه که بنده وای خو هم جبرئیل خلاصولای سوای، او براق که نه وای تړل سوی، نو خو هم پر بله خوا نه تلی. نو څه فائده ده په دې کې چې دروازه خلاصه ولاړه وه او براق په ډبره پوري تړل سوی وو؟

**ځواب**: دا دوه کاره چې خدای ﷻ وکړه دا معجزې د علیه الصلوة والسلام او هم له دې کبله بطریق ګواهي ورکړه د هرقل قیصر روم په مخ کې چې دا قصه چې ابو سفیان ثابته وکړه چې مونږ دا اسرا دروغ بولو هغه بې حقیقته خبره ده بلکې دا قصه رښتیا وه او دا قصه به د تاریخ په پاڼو کې تل پاته وي. په حدیث شریف

کي راغلي دي چي علیه الصلوٰة والسلام وایي ما دوه رکعته نفل و انبیاء علیهم السلام ته ورکړل دپرې تندي پر ما غلبه وکړه جبرئیل چي مي خبر کړی هغه یو لوښی د شیدو او بل د شرابو راته راوړی وه یي ویل هر یو چي خوښوې، نو ما په توفیق د خدای ﷻ د شیدو ځینبل غوره کړه او یو څه شیدې په دې لوښي کي پاته سوې او زما عطش دفع سو. جبرئیل راته وویل اصبت الفطرة" ته ورسېدلې و فطرت انساني ته چي انسان عمل او حلم او حکمت ولري په شیدو کي دادري سره جمع دي. جبرئیل وویل که دي شیدې تولې څیښلې وای "ماغوت من امتک احد" علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل باقي شیدې راکړه چي زه یې اوس وڅیښم. جبرئیل ورته وویل قضی الامر والله ما اراد لحکمة باهرة.

**فائده:** صخره د بیت المقدس د عجائبو د قدرت د خدای ﷻ جلت قدرته ده چي دا لویه ډبره ده په هیڅ طرف کي د مځکي سره تماس نه لري بلکې په هوا ولاړه ده. وروسته جبرئیل راته وویل چي دروړاړ سه چي اسمانو ته وخېژو، زه حیران سوم چي څرنګه به خېژو. جبرئیل یوه زینه راوړل چي یو سر یې پر صخره د بیت المقدس تکیه وه او بل سر یې په اسمان کي ؤ چي زینې یې د سرو زرو وې او اوږد لرګي یې د سپینو زرو وه چي ملغلرې او یاقوت پوري ځړېدله. روی البخاري وغیره بالفاظ متقاربة. قال علیه الصلوٰة والسلام ثم انتهیت الی السماء الدنیا فاخذ جبرئیل بعضدي "او دروازه یې وټکول. وقال افتح الباب دروازه خلاصه کړه (دا طلب د فتح ددې سببه د خازن السماء وکړی چي انسان دده سره ملګری ؤ که جبرئیل یوازې وای طلب د فتح ته به ضرورت نه وای) قال الحارث (وویل ساتونکي د دروازې) من انت؟ قال جبرئیل! قال ومن معک؟ څوک د رسره دي (ولې چي حارث یو بل شخص د جبرئیل سره ولیدی پېژندی یې نه) قال محمد ﷺ قال اوقد بعث محمد قال نعم حارس وویل چي آیا محمد مبعوث یعني نبي سوی دی؟ جبرئیل ورته وویل نعم (نو ددې پوښتنې معنا داده چي دا ملکه په ولادت د علیه الصلوٰة والسلام خبر دوه او په رسالت یې نه وه خبره) قال الحمد لله. وفتح الباب. او موږ داخل سوو ملکې چي زه ولیدلم قال مرحبا بک یا محمد ﷺ. ولنعم المجئ

مجیئک علیه السلام ما ورته وویل یعني جبرئیل ته چي دا څوک دی، جبرئیل وویل چي دا ملکه په نامه اسماعیل ده چي د اول اسمان خازن ده. زه ورنژدې سوم او سلام مي ورته وواییه ده ځواب د سلام راکړی او مبارکي د بعثت او د معراج یې راکړه او زیاته یې کړه ابشر یامحمد فان الخیر کله فیک وفي امتک. نو ما حمد د خدای ﷻ وواییه علی ذالک. راوي وایي چي دا ملک هیڅ کله مځکي ته نه ده راغلې مګر د عزرائیل علیه السلام سره په وخت کي د قبض د روح د علیه الصلوة والسلام راغلې ده. ثم انتهیت الی آدم فاذا هو کهیئة یوم خلقه الله یعني علی غایة الحسن والجمال. قال جبرئیل هذا ابوک آدم فسلم علیه نو زه ورنژدې سوم او سلام مي ورته وواییه آدم وویل مرحبا بالابن الصالح والنبي الصالح.

**فائده:** في زیادة الجامع الصغیر چي رود نیل مصر د جنت څخه راوزي که څوک داسي تلاش وکړئ چي دی ډک راسي بلګونه د جنت به پکښي پیدا کړئ.

قال رسول الله ﷺ ثم عرج الی السماء الثانیة فاستفتح جبرئیل قیل ومن معک. قال محمد قال او قد بعث الیه قال نعم ففتح الباب (یعني ورحب بي) فاذا انا بابني الخالة عیسی بن مریم ویحیی بن زکریا علیهما السلام یعني هر یو د بل د خاله زوی ؤ فرحبابي ودعوالي بخیر.

**پوښتنه:** دوی دوه په څه مناسبت په یوه اسمان کي وه؟

**ځواب:** یو سبب خو یې دا ؤ لکه آنفًا چي ذکر سوه چي دوی دوه د دوو خوندو زامن وه. او بل مناسبت یې هغه دی چي په تفسیر المناسبات کي وایي چي دوی دوه د یهودانو د کړاو سره مخامخ سوي وه. ولې چي د عیسی علیه السلام خو یهودانو تکذیب وکړی او ډېر آزار یې ور ورساوه او بالآخیر یې دده د قتل قصد وکړی خو چي خدای پاک اسمانو ته ځني بوتلی. واما یحیی علیه السلام فقتلوه.

**فائده:** آنحضرت ﷺ چي هجرت وکړی د دوهم امتحان سره مخامخ سو حتی چي د قتل پلان یې هم ورته سنجولی ؤ چي یوه واقعه چي تفصیل یې طویل دی چي علیه الصلوة والسلام د یو یهودي د سرای ورد دېوال تـه ناست ؤ چي دې یهودي وه یو بل یهودي ته لو یه ډېره په لاس ورکړې وه چي د بام د سره یې پر علیه الصلوة

والسلام باندي را ايله کړي، نو جبرئيل راغلی عليـه الصلوة والسلام يې خبر کړی عليه الصلوة والسلام چابک ولاړ سو او هغه ډېره ډير مځکه ومښتل، او بيـاد يوې يهودي ښځې په ذريعې په غوښې کي يې زهر وراچولي وه، عليـه الصلوة والسلام چي يوه گوله وخوړله او صحابه کرامو درې څلور گولې خوړلي وې چي جبرئيـل و عليه الصلوة والسلام ته وويـل چي په دې غوښو کي زهر دی بالا مه خوره، هغه ښځه چي عليه الصلوة والسلام راوغوښتل او ورته وه يې ويل چي په دې غوښو کي تا زهر گډ کړي وه؟ هغې ومنل چي هو زهر مي په گډ کړي وه ما ويل که نبي ؤ رشتيا زهر تاوان نه ور رسوي او که نبي نه ؤ له غمه به يې خلاص سو، عليـه الصلوة والسلام و هغې ښځي ته هيڅ ونه ويل معافه يې کړه.

**پوښتنه**: جبرئيل د يوې گولې خوړلو وروسته عليـه الصلوة والسلام په زهرو خبر کړی څو دمخه به يې خبر کړی وای؟

**ځواب**: ملکي چي هر کار کوي په امر د خدای ﷻ يې کوي کما ورد في شانهم وهم بامره يعملون.

**پوښتنه**: د الله ﷻ په دې کي څه حکمت ؤ؟

**ځواب**: چونکه شهادت يو لوړ مقام ؤ، نو خدای ﷻ و عليه الصلوة والسلام ته مقام د شهادت د زهرو په ذريعه ورکړی.

**سوال**: عليه الصلوة والسلام څو د زهرو تر خوړلو څو کاله وروسته هم حيات (ژوندی) ؤ؟

**ځواب**: په حديث کي د بخاري وغيره راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام په خپل مرض موت کي وويل مازالت اكلة خيبر تعادني وهذا اوان قطعت ابهری" همېشه هغه گوله غوښې چي ما په خيبر کي له زهرو ډکې خوړلي وې عود د ضرر يې کاوه اوس هغه وخت دی چي زما د زړه رگ يې پرې کړی حتی چي په احاديث صحيحه وو کي راغلي دي چي هر کال چي به د زهرو خوړلو هغه وخت راورسېدی عليه الصلوة والسلام به د درد په منځ کي ويني کښلې، ولي د ابهر رگ له شا څخه راشروع کېږي په زړه پوري متصل کېږي او له هغو غوښو خوړلو

څخه بشر بن البرا شهید سو. علیه الصلوة والسلام وایي "ثم عرج بنا الی السما الثالثة فاستفتح جبرئیل فقیل من هذا قال جبرئیل قیل ومن معک قال محمد قیل اوقد بعث الیه قال نعم. ففتح لنا فاذا انا بیوسف علیه السلام ومعه نفر من قومه واذا هو اعطی شطر الحسن (یعني نیمه حصه د حسن او ښائست د ټوله بشریت) لکن بعضو مفسرینو له دې څخه علیه الصلوة والسلام استثنا کړی دی وکان نبینا املح وان کان یوسف ابیض. علیه الصلوة والسلام وایي چي یوسف علیه السلام وماته مرحبا وواپه ودعا لي بخیر. په تفسیر المناسبات کي وایي چي د یوسف علیه السلام سره ملاقات د علیه الصلوة والسلام په دریم اسمان کي وسو مناسبت یې دادی دا اشاره ودریم حال ته د علیه الصلوة والسلام ده چي د یوسف علیه السلام د حال سره مشابهت لري، ولي چي یوسف علیه السلام چي عزیز مصر وګرځېدی او پر وروڼو چي دی یې و څاه ته اچولی ؤ بری یې پیدا کړی. نو داسي یې ورته وویل "لاتثریب علیکم الیوم" پر تاسي ملامتیا نسته نه ورځ دغه رنګه علیه الصلوة والسلام چي پر قریشو یې غلبه پیدا کړه په فتح کي د مکې او په عمومي خطبه کي یې وویل چي ستاسي څه خیال دی چي زه به ستاسي څه وکړم؟ هغو ورته وویل "اخ کریم وابن اخ کریم" مهربانه ورور مو یې او د مهربانه ورور زوی مو یې، علیه الصلوة والسلام ورته وویل "اقول لکم کما قال اخي یوسف. لاتثریب علیکم الیوم، قال علیه الصلوة والسلام ثم عرج بنا الی السما الرابعة فاستفتح جبرئیل فقیل من هذا قال جبرئیل قیل من معک قال محمد قیل او قد بعث الیه قال نعم ففتح بنا فاذا انا بادریس علیه السلام" نو مرحبا یې راته وویل او دعا د خیر یې راته وکړه، خدای پاک دده په حق کي وایي "ورفعناه مکانا علیا" ای في السما الرابعة حال حیاته.

**سوال:** بعض محدثین وایي چي ادریس علیه السلام په جنت کي دی؟

**ځواب:** هغه بعض چي وایي چي دی په جنت کي دی هغه د سما رابعه سره منافي نه دی، ولي عین ممکنه ده چي له جنته دي راغلی وي سما رابعه ته لپاره د استقبال د علیه الصلوة والسلام. بعض راویان وایي چي ادریس علیه السلام له مصره

څخه اسمان ته پورته سو هغه وخت چي دی له مصره وتلی او په تبوله تبری کي
گرځېدلی ؤ او خلګو ته یې په دو اوویا (۷۲) ژبو دعوت ورکړی ؤ "خاطب کل
قوم بلغتهم" بیرته چي مصر ته راغلی پورته کړل سو الی السمآء الرابعة. او د
پورته کېدلو په سبب کي اختلاف دی. په تفسیر المناسبات کي وایي چي
مناسبت د ملاقات د علیه الصلوة والسلام د ادریس علیه السلام سره په سمآء رابعه کي
چي خدای پاک مکانًا علیًا بللی دی دادی چي ادریس علیه السلام اول سړی دی چي
خدای پاک ته خط بالقلم بنوولی ؤ، نو دا اشاره ده و حالت رابعه ته د علیه
الصلوة والسلام چي ده مبارک چي د مکي له فتح څخه او د خیبر د فتح او بني
النضیر او بني القریضة د فتح چي دا تبوله د یهودانو مرکزونه او ځایونه وه فارغ
سو، نو د اطرافو شاهانو ته یې د خطو په ذریعه تبلیغ د دین شروع کړی لکه
نجاشي د حبشه ؤ چي نوم یې اصحمة ؤ. او د روم قیصر ته چي نوم یې هرقل ؤ او
د فارس کسری ته چي نوم یې پرویز ؤ.

**درویش وایي:** چي د مخه موږ بعض حالات د دغو خطو ذکر کړه عنقریب.

قال الراوي قال رسول الله ثم عرج بنا الی السمآء الخامسة فاستفتح جبرئیل قیل
من انت قال جبرئیل قیل ومن معک قال محمد قیل او قد بعث الیه قال نعم ففتح لنا
فاذا انا بهارون علیه السلام مرحب بي ودعالي بخیر. او د هارون علیه السلام ږیره نیمه توره او نیمه
سپینه وه او ږیره یې تقریباً تر نامه پوري رسېدل. او بعض له قوم څخه ده یعني بني
اسرائیل ورسره وه او ده قصې ورته کولې. قدیم تاریخ د بني اسرائیل وایي چي
هارون علیه السلام په قوم کي ډېر محبوب ؤ او له دې سببه چي په هارون علیه السلام کي لین او
نرمي ډېره وه تر موسی علیه السلام. په تفسیر المناسبات کي وایي چي د دې ملاقات د
علیه الصلوة والسلام هارون علیه السلام په پینځم اسمان کي ؤ سِر دادی چي علیه الصلوة
والسلام وروسته تر دې چي قریشو د مکې بالخصوص او د ټولو عربو بالعموم
مبغوض ؤ د ومره یې محبوب سو لکه هارون په خپل قوم کي، وهب بن منبه رح وایي
چي ما یو اوویا کتابونه لیدلي دي چي خدای پاک لم یعط جمیع الناس من بدء الدنیا
الی انقضائها من العقل في جنب عقله صلی الله علیه وسلم الا کحبة بین رمال الدنیا.

**درویش وايي:** چي تواريخ غير اسلامي چي له اتصافه څخه کار اخستی وي او تعصب نه لري که څه هم نبوت د عليه الصلوة والسلام نه مني لکن په دې خبره اقرار کوي چي لوی عقل لرونکی په نوع کي د بشر محمد ﷺ دی.

**پوه سه:** چي د کامل عقل د عليه الصلوة والسلام او د ښه تدبير دده دا نتيجه وركړل چي عرب چي لکه وحوش غوندي وه داسي يې تربيه کړل چي اخير الامر دوی تو له يعني العرب پر دده مبارک سره جمع سول، حتی چي عليه الصلوة والسلام محبوب ددوی وگرځېدی تر خپل اهل او تر پلرو او تر زامنو او تر ماينو او خپل محبوب وطن مكه دده د رضا لپاره پرېښوله. او د عليه الصلوة والسلام په فوج کي د خپلو زامنو چي كافران به وه او د خپل پلرو چي كافران به وه هكذا الاخوة چي كافران به وه او د عزيزانو سره چي كافران بـه وه جنگونه کول او چي ايمان به يې نه راوړی هغه به يې قتل کاوه.

**درويش وايي:** چي دا ټول مذكوره اوضاع د عربو چي د عليه الصلوة والسلام سره يې كوله نتيجه د صبر د عليه الصلوة والسلام وه پر ازار ددوی وده ته داسي ازارونه چي طاقت بشري توان د صبر پر هغو نه درلودی. او دا غه رنگه دا مذكوره اتباع د عربو په ډله ډله دده مبارک نتيجه د حسن تدبير او د عقل كامل دده وه، قال رسول الله ﷺ ثم عرج بنا الى السماء السادسة فاستفتح جبرئيل قيل من هذا قال جبرئيل قيل ومن معك قال محمد ﷺ قيل اوقد بعث اليه قال نعم ففتح لنا فاذا انا بموسى ﷺ فرحب بي ودعالي بخير، عليه الصلوة والسلام وايي چي موسى ﷺ غنم رنگه جگ كثير الشعر سړی ؤ واذا غضب يخرج شعر رأسه من قلنسوته.

**درويش وايي:** چي دده د غضب يوه واقعه چي بخاري او نورو محدثينو هم راوړې ده چي دی چي بني اسرائيلو متهم په چوره کړی، ولي چي دی لغ نه لمبېدی او بني اسرائيل لغ لغړ لمبېدل نو ددې تهمت د دفع لپاره خدای ﷻ داسي وكړه چي يوه ورځ موسى ﷺ په واله کي چي په دې وخت کي هيڅوک نه وه لغ ؤ ولي ته د غسل لپاره ولوېدی او ټوله كالي پر يوه ډبره چي هم دالته

موجود ده وه کښېښوول ډیري سره د کالو میدان کړل دی مجبور لغ پسي راووتي او ناري یې وهلي ثوبي حجر ثوبي حجر، زما کالي راکړه اې ډبرې زما کالي راکړه اې ډبرې، خیر خو ډبره روانه وه سره د کالو د موسی علیه السلام چي یوه دوه مجلسه تېره سوه او بني اسرائیلو ورته وکتل چي موسی علیه السلام چوره نه ؤ بیا ره ډبره ودرېدل موسی علیه السلام کالي واغوستل. نو له ډېره غضبه څخه ده ډبره په لکړه شپږ اووه ضربه ورکړه او سره ددې چي په ډبره کي خو عقل نه ؤ چي ده ادب ورکولای. علیه الصلوة والسلام وایي چي تر موسی علیه السلام تېر سوم ده وژړل چا ورته وویل چي ولي ژاړې ده ورته وویل چي یو غلام چي تر ما وروسته خدای پاک نبي کړی چي جنت ته دده امت ډېر زما تر امت داخلېږي. شراح د احادیثو وایي چي د غلام اطلاق پر علیه الصلوة والسلام دده د سپکاوي لپاره نه دی حاشا لموسی علیه السلام من ذالک. بلکي په معنی ددې دی چي د خدای جل جلاله منت او احسان دده سره ډېر دی. ولي چي علیه الصلوة والسلام سره ددې چي طویل عبادت د خدای جل جلاله یې نه ؤ کړی خدای پاک په دغه فضیلت د نبوت سره مخصوص کړی او دده د امت جنتیان یې زما د امت تر جنتیانو ډېر کړه.

**پوښتنه**: دا به حسد د موسی علیه السلام له خوا نه وي؟

**ځواب**: یا! په دې خبره کي د موسی علیه السلام صرف اظهار د شفقت ؤ پر خپل امت باندي، ولي چي حسد گناه کبیره ده او انبیا علیهم السلام له گناه کبائرو څخه معصوم بل عن الصغائر ایضًا.

**فائده**: که تحقیق د عصمت د انبیاء علیهم السلام د چا په کار وي. نو د درویش یوه رساله په نامه د "کشف الغطاء عن عصمة الانبیاء" چي ددې تفسیر تر تصنیف څلوېښت کاله مخکي ما تصنیف کړې وه او د ټولو علماؤ د هغه سنې او د حضراتو د هرات امضاگاني هم پر ستنه. او چهاپ هم سوه او اوس هم شاید په بعضو کتب خانو کي شاید وي هغه رساله دي دستیاب کړي او دا دقیق مسئله چي بعضې ملا یانو د هغه وخت او د اوس وخت ددوی له عصمت څخه منکر دي ښه وځان ته معلوم کړی او ټوله رساله درویش په حواله د معتبرو کتابو نوشته

كړې ده ومن الله التوفيق والسداد.

**فائده:** موسی علیه السلام وویل چې د محمد علیه السلام امتیان به زما تر امتیانو د پر جنت ته ځي لکن لله الحمد والمنة چې په حدیث شریف کې چې بخاري یې هم روایت کړی دی امتیان د نبي اکرم ﷺ علی الله جل جلاله به تر ټولو امتیانو د ټولو انبیا علیهم السلام په جنت کې ډېر وي، ولې چې په حدیث کې د بخاري راغلي دي چې د جنتیانو دوه ثلثه به امت زما وي، ددې توضیح داده چې ټوله جنتیان په ورځ د قیامت یو سل او شل (۱۲۰) صفه وي. اتیا (۸۰) صفه به امت د علیه الصلوة والسلام وي او څلوېښت (۴۰) صفه به امتیان د ټولو انبیا علیهم السلام وي. دا حدیث په بخاري کې په طول سره موجود دی ما یې مختصر علی قدر الحاجة بیان وکړ.

**درویش وایي:** چې تفسیر المناسبات وایي چې په ملاقات کې د علیه الصلوة والسلام د موسی علیه السلام سره په شپږم اسمان کې اشاره وه داسې حال ته د علیه الصلوة والسلام ده چې مشابه د حال سره د موسی علیه السلام دی، ولې چې موسی علیه السلام چې خدای پاک امر کړی په غزا د شام چې هورې جبابره چې یو ظالم قوم آباد وه، نو خدای جل جلاله پر هغو فتح ورکړل، او دغه رنګه فرعون چې غرق سو سره د ټوله قوم قبط بني اسرائیل بیرته خپلو کورو ته ورغله چې دوی ځني وتلي وه، او دغه رنګه علیه الصلوة والسلام د تبوک غزا وکړه چې د شام له مربوطاتو څخه دی او دغه ځای پر آمر بادشاه چې دومة الجندل یې نوم ؤ فتح پیدا کړه او دومة الجندل یې بندي کړی حتی چې بیا یې صلح پر جزیه ورسره وکړه، او دغه رنګه مکه مکرمه یې فتح کړه او اصحاب کرام رضي الله عنهم د علیه الصلوة والسلام و هغه ښار ته ورغله چې دوی جبراً ځني ایستل سوي وه انتهی، قال علیه الصلوة والسلام ثم عرج بنا الی السماء السابعة فاستفتح جبرئیل قیل من هذا قال جبرئیل قیل من معک قال محمد قیل او قد بعث الیه قال نعم ففتح فاذا انا بابراهیم علیه السلام، قال جبرئیل هذا ابوک ابراهیم فسلم علیه فسلمت علیه فرد السلام قال مرحبًا بالابن الصالح والنبي الصالح. قال الامام التوریشتي رح چې علیه الصلوة والسلام ټوله انبیا علیهم السلام چې په اسمانو کې یې ولیدل کما مر ذکرهم جبرئیل به علیه الصلوة والسلام ته امر

ورکاوه چي دا فلانی نبي دی سلام ورته ووایه، علیه الصلوة والسلام چي به سلام ورته ووایه هغه به رد سلام دده وکړی او دعا د خیر بې ورته وکړه، نو کله به علیه الصلوة والسلام د هغه نبي په نسل کي نه ؤ لکه موسی عیسی علیهما السلام نو هغه ځواب داسي ورکاوه مرحبا بالاخ الصالح والنبي الصالح او که بې علیه الصلوة والسلام په نسل کي د هغه ؤ لکه آدم او ابراهیم علیهما السلام هغه به داسي ځواب ورکاوه مرحبا بالابن الصالح والنبي الصالح.

**پوښتنه:** علیه الصلوة والسلام خو افضل الانبیاء دی، نو جبرئیل ولي علیه الصلوة والسلام امر کاوه چي ته سلام وروا چوه؟

**ځواب:** علیه الصلوة والسلام په حکم کي د قائم ؤ او انبیا کرام علیهم السلام په حکم کي د قاعد وه، نو مسئله شرعي داده چي قائم به و قاعد ته سلام اچوي.

**درویش وایي:** چي دا قانون شرعي په اوسنی زمانه کي خلګو لغوه کړی دی ولي نر چي کور ته ورسي که یې ماینه وي او که بله ښځه وي نر سلام نه وراچوي بلکې ښځه به ولاړېږي او راغلي نر ته به سلام وراچوي.

**پوښتنه:** دغه انبیا کرام علیهم السلام چي رسول الله ﷺ په اسمانو کي ملاقات ورسره وکړی، آیا دوی په دنیاوي صورتونو کي خدای ﷻ ورته مشکل کړي وه البته عیسی علیه السلام یې په دنیاوي صورتو کي ولیدی، علماء وایي چي دوه کسان په اسمانو کي پر خپل صورت دنیاوي باندي ژوندي دي یو عیسی او بل ادریس علیهما السلام او دوه کسه په مځکه کي ژوندي دي یو خضر علیه السلام او بل ابلیس علیه اللعنة پر خپلو صورتو تر نفخ الصور پوري پاته دي، علیه الصلوة والسلام وایي چي ابراهیم علیه السلام ګرو هښتی سری ؤ چي شایه بیت المعمور ته لګولې وه او پر چوکی ناست ؤ.

**پوه سه:** چي بیت المعمور له عقیقو څخه جوړ کړل سوی دی یعني په قدرت د لایزال خدای پر برابر د کعبې شریفي که بیت المعمور له اسمانه څخه راکښته کړل سي پر بیت الله شریفي به واقع سي.

**فائده:** بیت المعمور ته له هغه وخته چي خدای ﷻ دا بنا کړې ده هره ورځ اویازره ملکي د عبادت لپاره ورځي پر یوه دروازه ورننوځي او پر بله دروازه

ځني وځي. په بعضې روایاتو کي راغلي دي چي هغه ملکي چي اوله ورځ و بیت المعمور ته داخلي سوې تر اوسه دوهم وار نوبت نه دی ور رسېدلی.

**درویش وایي:** چي د پر والی د ملکو دي هر سړی له دغه آیت څخه وفهموي "ولا یعلم جنود ربک الاهو"

**فائده:** امام سهلي رح وایي چي په صحیح روایت کي دا ثابته سوې ده چي اطفال د مؤمنانو او د کافرانو په کفالت کي د ابراهیم علیه السلام دي، او په حدیث کي د معراج راغلي دي چي علیه الصلوة والسلام چي دا کوچنیان ولیدل د ابراهیم علیه السلام سره، نو د جبرئیل څخه یې بازخواست وکړی چي دا اطفال څوک دي، جبرئیل ورته وویل چي دا اطفال د مؤمنانو دي چي قبل البلوغ مړه سوي دي. علیه الصلوة والسلام ورته وویل و اطفال الکافرین یعني هغه هم په دغو کي شامل دي؟ قال جبرئیل و اطفال المشرکین والکافرین یعني په دغو اطفالو کي شامل دي. په یو بل حدیث کي راغلي دي چي اطفال د کافرانو خادمان د اهل جنت دي.

روایت: راوي وایي چي ابراهیم علیه السلام آنحضرت ﷺ ته وویل چي زما له خوا څخه ستا امت ته زما سلام ووایه او دا ورته ووایه چي ځکه د جنت د پړي ښې خوازې یې دي او اوبه یې شریني دي. لکن که میوه داره درختي څوک پکښې د پروي هغه د دغو کلماتو څخه د پر پړي "سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله والله اکبر" کما قال المولی الجامي قدس سره:

یاد کن آنکه در شب اسرا ...... یا حبیب خدا خلیل خدا
گفت گوی ازمن ای رسول کرام ...... امت خویش را از بعد سلام
که بود پاک وخوش زمین بهشت ...... لیک آنجا کسی درخت نه کشت
خاک او پاک وطیب افتاده ...... لیک از درختها ساده
غرس اشجار آن بسعی جمیل ...... بسمله، حمدله است پس تهلیل
هست تکبیر هم ازان اشجار ...... خوش کسی کش جزین نیارد کار
باغ جنات تحتها الانهار ...... سبز و خورم شود ازان اشجار

**درویش وایي:** چي ددې روایت د حدیث او د جامي قدس سره د ابیاتو دا

معنا نه ده چي جنت چي خدای پاک پیدا کړی دی هیڅ درخته نسته پکښي، د تسبیح تهلیل، تحمید او تکبیر څخه پیدا کیږي، ولي چي دا معنی د احدیث قدسي څخه مخالفه ده "اعددت لعبادي الصالحين في الجنة مالاعين رئت ولا اذن سمعت ولا خطر على قلب بشر" بلکي معنا یې داده چي په تسبیح، تهلیل، تحمید او تکبیر سره نوري نوي درختي په خالي ځایو کي رب ﷻ پیدا کوي. په تفسیر المناسبات کي وایي چي په ملاقات د رسول کریم ﷺ د خلیل الله ابراهیم علیه السلام دوه حکمته دي (۱) ابرهیم علیه السلام چونکه علیه الصلوة والسلام مستند و بیت المعمور ته ولیدی او بیت المعمور برابر د کعبې مبارکي دی کمامر عنقریب او بیت المعمور ته ملکي د زیارت لپاره ورځي کمامر آنفًا دغه رنګه ابراهیم علیه السلام چي د کعبې مبارکي خونه جوړوله اذن في الناس بالحج والعمرة (۲)حکمت دادی چي اخیري احوال د نبي علیه السلام دا وچي د حجة الوداع لپاره حج ته راغلی تخمینًا اوویا زره مسلمانان او اصحاب کرام ﷺ ورسره ملګري وه.

**فائده**: رئیس المعبرین في عصره ابن سیرین وایي چي که چا ابراهیم علیه السلام په خوب ولیدی دا د حج زیري دی لانه الذي رفع قواعد البيت. کریمه "واذ یرفع ابراهیم القواعد من البيت واسمٰعیل الآیة" علیه الصلوة والسلام وایي چي وروسته زه جبرئیل بوتلم و سدرة المنتهى ته چي دا یوه درخته ده تر اووم اسمان لوړه چي تر دغې درختي پوري ملکي عملونه رسوي د صالح بندګانو د مځکي او تر دې درختې پوري نازلیږي احکام عرشیة والانوار الرحمانية.

په یوه روایت کي راغلي دي چي علیه الصلوة والسلام امامت ورکړی د سدرة المنتهى سره وملائکو ته د اسمانو په وترو کي، نو علیه الصلوة والسلام امام الانبیا سو په بیت المقدس کي کمامر او امام الملائکه سو په سدرة المنتهى کي فعلم فضله بذالک علی اهل الارض واهل السموات. په صحیح روایت کي د بخاري وغیره راغلي دي چي د سدرة المنتهى لاندي دوې پتې ویالي تېریدلې او په جنت کي غائبیدلې بعد خروجها من اصل الشجرة چي یوه واله په نامه د کوثر وه او بله په نامه د نهر الرحمة یاسلسبیل ده، او دوې ویالې ښکاره بهیدلې چي تر جنت به تېري

سرې غانبېدلې چې يوه رود نيل نهر المصر ده او يوه فرات چې نهر الكوفة ده. او عليه الصلوة والسلام د جنت معاينه هم وكړه چې په هغه كې يې د خداى ﷻ د قدرت عجائب وليدل چې تفصيل يې ډېر د طوله سره مخامخ كېږي لكن مالايدرک كله لايترک كله. لكن مشت نونه خروار گفته اند. عليه الصلوة والسلام فاذا فيها حبائز اللؤلؤ (يعني د ملغلرو خېمې) واذا ترابها المسک (يعني د خاورو پر ځاى مشک پكښې اوار وه) ورمانها كالدلاً (او انار يې لكه سولغې دوندې غټ وه) وطيرها كالبخت "ماري اوښان" او عليه الصلوة والسلام كوثر ته ورغلى اوبه يې څندي وځيښلې "فاذا هو احلى من العسل واشد رائحة من المسک" پر سدرة المنتهى جبرئيل ځني پاته سو كمامر.

**يوه سه**: چې امام النووي وايي چې راجح عند اكثر العلماً انه عليه الصلوة والسلام رئى ربه بعين رأسه انتهى، وسمع رسول الله ﷺ كلام الرب ﷻ من غير كيفية كما سمعه موسى عليه السلام في الطور من كل جانب قال الله تعالى كما في سورة طه "ياموسى اني انا ربک فاخلع نعليک انک بالوادي المقدس طوى" الى اخير الآيات كما سيأتي تفسيرها. قال بعض المحققين:

كلام سرمدى بى نقل بشنيد ........ خداوند جهانرا بى جهت ديد
بديد آنچه زحد ديدن برون بود ........ مپرس اما زكيفيت كه چون بود

**درويش وايي**: چې په حديث كې د بخاري وغيره راغلي دي قال عليه الصلوة والسلام فرض الله على خمسين صلوة في كل يوم وليلة" بعض علماً وايي چې هر لمونځ دوه دوه ركعته وو. ددې تائيد هغه مسئله فقيه كوي كه چا وويل بطريق النذر على صلوة يلزمه الركعتان. قال عليه السلام زه پر ابراهيم عليه السلام راكښته سوم يعني په اووم اسمان كې، نو ماته يې هيڅ ونه ويل، بيا راكښته سوم پر موسى عليه السلام يعني په شپږم اسمان كې، نو موسى عليه السلام راته وويل چې څه شى فرض كړه خداى پاک ستا پر امت؟ ما ورته وويل پينځوس لمونځونه په شپه او ورځ كې. موسى عليه السلام راته وويل بېرته ورسه و خداى ﷻ ته سوال د تخفيف وكړه. ولې چې ستا امت د پينځوسو لمونځو په شپه او ورځ كې طاقت نه لري، ما تجربه كړي بني اسرائيل



Scanned by CamScanner

ترتا دمخه وعالجتهم اشد المعالجة. عليه الصلوة والسلام وايي ما بيرته رجوع وکړه و خداى ﷻ يعني هغه ځاى ته چي ما دده سره مناجات کړي وه يعني سدرة المنتهى، نو پر سجده پرېوتم خداى ﷻ ته او وه مي ويل يارب خفف عن امتي. يعني دا پينځوس لمونځونه څه سپک کړه نو خداى پاک پينځه لمونځونه راکم کړه، يعني پينځه ځلو ښبت پاته سوه، بيا زه موسى عليه السلام ته راغلم چي خداى پاک زما د امت پينځه لمونځونه کم کړه، موسى عليه السلام وويل چي دا هم زيات دي ستا امت يې طاقت نه لري بيرته ورسه خداى پاک ته سوال د تخفيف وکړه، عليه الصلوة والسلام وايي چي وار وار تر موسى عليه السلام او تر خداى پاک پوري تلم او راتلم او خداى پاک پينځه پينځه لمونځونه کمول په اخير کي چي لمونځونه پر پينځه ودريدل، موسى عليه السلام راته وويل ورسه نور سوال د تخفيف څني وکړه، ما ورته وويل چي ډېر وارونه خداى پاک ته ورغلم بالا شرمېږم د خداى پاک څخه لکن پر دغه پينځه لمونځو قائم يم او تسليم يم چي زه راتېرسوم تر موسى عليه السلام د خداى ﷻ له خوا ندا وسوه يا محمد امضيت فريضتي وخففت عن امتي. ما خپل فرضي لمونځونه پوره کړه يعني پينځوس او تخفيف د بندګانو سره مي هم وکړه يعني صورتا که څه هم لمونځونه پينځه سوه لکن په حقيقت کي پينځوس دي لان الحسنة بعشر امثالها. کريمه "من جا بالحسنة فله عشر امثالها" په حديث صحيح کي راغلي دي چي که چا قصد د يو ښه کار وکړی لکن د مانع په سبب يې ونه کړی يوه حسنه ورته نوشته کېږي او که يې وکړي لس ورته نوشته کېږي او که چا د يو بد کار قصد وکړی او وه يې نه کړی لم يکتب له شئ او که يې هغه بد کار يې وکړی يوه سيئه ورته نوشته کېږي. له عبد الله بن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دى چي په اول وار لمونځونه پينځوس وه او غسل د جنابت اووه وه او غسل الثوب من النجاسة هم اووه واره وه. نو عليه الصلوة والسلام په کراتو سوال د تخفيف کاوه حتى چي فرضي لمونځونه پينځه سوه او فرض غسل الجنابة او فرضي پرېولله د جامي يو يو وار سوه. او په حديث صحيح کي راغلي دي چي تاسي ډېر درود واياست پر موسى عليه السلام ولي چي ما مهربانه زما پر امت څوک نه دى ليدلي بالا تر موسى عليه السلام

درویش وايي چي عليه الصلوٰة والسلام يأمر الناس بالصلوة على موسى عليه السلام.

**سوال**: دا تخفيف د لمونځو او د نورو عملو کمامر خو نسخ د قبل البلاغ او اهل السنة والمعتزلة په اتفاق وايي چي نسخ قبل البلاغ نه ده روا؟

**ځواب**: بلاغ خو و عليه الصلوٰة والسلام ته وسو لانه كلف بذلك ثم نسخ، او دا نسخ نسبت و عليه الصلوٰة والسلام ته نسخ په حق د امت هم ده ولي چي قانون شرعي دادی چي هغه څه من الامر والنهي چي په حق کي د هر نبي ثابتي سي هغه په حق کي د امت هم دي مگر نه په دليل سره ثابت سي خصوصيت د نبي په هغهٔ کار مثلاً نکاح د زائد تر څلورو ښځو امت ته د عليه الصلوٰة والسلام ناروا دی او عليه الصلوٰة والسلام تر نهه پوري روا سوه.

**درویش وايي**: چي روح البيان له انس ﷺ څخه روايت کړی دی چي عليه الصلوٰة والسلام وويل چي ما په ليلة الاسرا کي تر عرش لاندي اوويا ښاروته وليدل هر ښار يې لکه ستاسي دنيا اوويا واره چي گرده ډک له ملکو څخه چي تسبيح د خدای ﷻ يې ويل او تقديس د خدای ﷻ هم او ټولو به دا ويل اللهم اغفر لمن شهد الجمعة (ای صلوٰتها) الله اغفر لمن اغتسل يوم الجمعة (ای لصلواتها) او په دغه حديث کي هم دا زياته سوې ده چي پر دروازې د جنت نوشته وه الصدقة بعشر امثالها "چي د خيرات ثواب يې په لس مثله دی" والقرض بثمانية عشر" او قرض ثواب يو په اتلس دی جبرئيل ته ما وويل چي د قرض ثواب ولي تر صدقه ډېر دی. جبرئيل راته وويل چي ډېر خله سائل د صدقي سوال بېله ضرورته کوي حتی چي دی غني وي لاهم سوال کوي كالرجال المعتادين بالسوال، او قرض غوښتونکی قرض له چا څخه نه غواړي بېله ضرورته انتهى. او په بل حديث کي راغلي دي چي ماوليدی رضوان ﷺ چي عشر د جنتو دی. نو ده چي زه وليدم خوشاله سو او ماته يې مرحبا وويل او زه يې جنت ته داخل کړم او په ما يې وليدل عجائب د قصررو او مېوو د جنت چي خدای ﷻ يې د خپلو دوستانو سره وعده کړې ده مالا عين رئت ولا اذن سمعت ولا خطر على قلب بشر "وقد ورد ذالك في الحديث القدسي ايضاً" الى اخير

الحديث او عرض كړه سو پر ما باندي اور يعني جهنم آه.

**درویش وایي:** چي له حديث څخه د معراج دا معلومه سوه چي جنت او دوږخ مخلوق دی اوس هم كماهو مذهب اهل السنة والجماعة خلافاً للمعتزلة.

**درویش وایي:** چي د عليه الصلوة والسلام سفر بالخير تمام ته ورسېدی او له اسمان څخه پر بيت المقدس راكښته سو او له هغه ځای څخه بيرته پر براق حرم مكي ته د كعبې مبارکې حطيم ته او يا بيت ته د ام هاني بنت ابي طالب راورسېدی كمامر. او دا ټوله سفر مبارک دده مبارک عليه السلام په دريو يا په څلور ساعته كي پای ته ورسېدی والله علی كل شيئ من العجائب قدير.

**درویش وایي:** چي قصه د معراج نبوي ﷺ كما سمعت تر عقولو د عوامو بلكي د غير الخواص من اهل الله تر عقولو هم لوړه ده لكن لابد من التصديق بذالک وتفويض الامر الى قدرة الله عزوجل. شعر:

راه زاندازه برون ر فته ......... پی نتوان برد كه چون رفته

عقل درين واقعه حاشاكند ......... عقل نه حسًا نه تمناكند

راويان د قصې د معراج نبوي وايي چي عليه الصلوة والسلام دام هاني كور ته راغلی دا واقعه غريبه د معراج يې ام هاني ته وكړه او عليه الصلوة والسلام دې ته وويل چي زه دا قصه قريش ته هم كوم، اما هاني ورته وويل چي زه د خدای جل جلاله روي تا ته شفيع كوم اې زما داكا زويه چي دا قصه قريش ته هرگز مه كوه چي هغه كسان چي پر تا يې ايمان راوړی هغه به منكر سي يعني ستا دين به پرېږدي چي سهار څاښت سو عليه الصلوة والسلام د ام هاني له كور څخه حرم شريف ته وتی بيا ام هاني تر پټو تينگ كړی چي دا قصه چاته ونه كړې عليه الصلوة والسلام پټو ځني كش كړی ددې د لاس څخه يې وكښې او حرم ته ورغلی په حطيم شريف كي دغه نفر ناست وه مطعم بن عدي ابو جهل بن هشام فرعون هذه الامة الوليد بن المغيرة.

**درویش وایي،** چي په بل روايت كي داسي راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام چي حرم شريف ته ورغلی او په دې پوهېدی چي زه كه بيان كړم قصه د

معراج قریش به مي تكذيب كوي او دا يې هم په طاقت نه وه چي دا د خداى ﷻ عظيم قدرت د اسرأ پېښ كړي، نو فكر جن او حزين ناست و، نو عدوالله ابوجهل فرعون هذه الامة له يوې خوا څخه د حرم ته راغلى او عليه الصلوة والسلام ته كښېنستى نو چي عليه الصلوة والسلام يې حزين وليدى له پسخنده يې ورته وويل چي نوې خبره خو نه ده پېښه سوې، آنحضرت ﷺ ورته وويل چي هو پېښه سوې ده برائي شپه زه بوتله سوم يعني خداى ﷻ بوتلم. ابوجهل ورته وويل چېرې يې بوتلې؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل بيت المقدس ته يې بوتلم. ابوجهل ورته وويل چي سهار بير ته ته زموږ حرم ته راغلې؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل هو! ابوجهل ورته وويل چي زه ستا قوم راټول نه كړم چي ته دوى ته هم دا قصه وكړې لكه ماته چي دي وكړه. قال عليه السلام نعم راټول يې كړه زه به قصه ورته وكړم. ابو جهل ناري كړې يا معشر كعب بن لوئ خلګ دباندي تر حرم ناست وه ټول له په ناره د ابو جهل حرم ته راغله. ابوجهل و عليه الصلوة والسلام ته وويل حدث قومك بماحدثتني" ته قوم ته بيان كړه هغه قصه چي ماته دي بيان كړه عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي زه بوتله سوم، خلګو ورته وويل چېرې؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل الى بيت المقدس، نو خداى پاک ماته راجمع كړه انبيأ عليهم السلام او ما دوه ركعته لمونځ وركړى او خبري يې ورسره وكړې، قريشو سره ناري كړې او بعضو به چك چكې سره كولې او بعشو به لاسونه پر سر كښېښول د ډېرې خندا د لاسه او يا له تعجب او انكاره څخه دوى ورته وويل چي موږ پر او ښانو پېښې نوررو و يوه مياشت ددې خوا تر بيت المقدس پوري او يوه مياشت د هغې خوا تر حرم مكې پوري او ته وايي چي زه په يوه شپه كي هم ولاړم او هم راغلم او زموږ دي قسم وي په لات او عزى سره چي موږ ستا تصديق په دغه قصه كي نه كوو. بلكي بعضې مسلمانان په اورېدلو سره د دغسي قصې مرتد سوه نعوذ بالله من الارتداد. راوي وايي چي بعض خلګو يعني د دغې قصې د اورېدلو سره د ابوبكر ﷺ وخوا ته په اميد ددې چي دى به هم منكر سي او مرتد سي ولاړه ابوبكر ﷺ ته يې وويل چي ستا صاحب يعني محمد ﷺ خو نن د عقل خلاف او

د نه منلو ور قصه وکړه، ابوبکر ﷺ وويل که يې چېري ويلي وي فقد صدق نو رشتيا ده. هغو خلکو ورته وويل چي په دې د منلو ور نه قصې کي دې هم د ده تصديق وکړي. ابوبکر ﷺ وويل چي تر دې قصې په ډېرو بعيدو قصو کي ما د ده تصديق کړی دی او هم يې کوم. هغه دا چي دی وايي ما ته خبر له اسمان څخه سهار او ماښام راځي يعني الوحي.

**درويش وايي:** چي هم دا سبب وګرځېدی چي ابوبکر ﷺ ته لقب د صديق ورکړل سو يعني د خدای ﷻ له خوا څخه ومعنى الصديق الكثير الصدق فهو للمبالغة في الصدق، او علي پر دې قسم اخستی بالله چي دا نوم د صديق د خدای ﷻ له خوا نازل سوی دی دا نوم د خلکو له خوا څخه نه دی. راوي وايي چي بعض ددې حاضرو کافرانو بيت المقدس ليدلی ؤ، نو هغو و عليه الصلوة والسلام ته وويل چي د بيت المقدس د مسجد څو دروازې وې او محراب يې کومه خوا ته ؤ مثلاً او نورې نښانې يې د عليه الصلوة والسلام څخه طلب کړې ددوی غرض دا ؤ چي د عليه الصلوة والسلام کذب معلوم کړي. ولې چي ددوی خو سل په سله کي دا يقين ؤ چي عليه الصلوة والسلام بيت المقدس ليدلی نه دی. قال عليه الصلوة والسلام فكربت كربًا شديداً لم اكرب مثله قط فانهم سئلوني عن اشيا لم اثبتها وكنت دخلته ليلاً وخرجت منه ليلاً.

**ترجمه:** عليه الصلوة والسلام وويل چي ددې پوښتني څخه ددوی غمجن سوم چي دومره زه هيڅ وخت نه وم غمجن سوی ولې چي دوی د داسي شيانو پوښتنه زما څخه وکړه چي زما په دماغ کي مانه وه محکم کړې بلکې زه د شپې ورغلم او د شپې بېرته ځني ووتم يعني ما خو يې دروازې حساب نه کړې او نه محراب، عليه الصلوة والسلام وايي چي زه په حطيم کي واريدېدلم خدای ﷻ ما ته بيت المقدس کشف کړی يعني په سترګو مي ورته کتل او هغه نښانې چي کفارو غوښتي وې ورته ومي ويلې.

**درويش وايي:** ومثل هذا الكشف انموذج من قدرته تعالى، کفارو ورته وويل چي نښانې خو دي رشتيا دي.

**پوښتنه**: مشرکانو ولي دا پوښتنه نه څني وکړه چي په اسمان کي دي څه شی ولیده؟

**ځواب**: مشرکانو ته خو د اسمان د شیانو علم نه ؤ چي دوی له علیه الصلوة والسلام صدق او کذب په معلوم کړی وای کذا في المواهب الدینیة یعني په پښتو ژباره، وروسته کافرانو علیه الصلوة والسلام ته وویل چي بل څه دلیل لرې پر دغه قصه چي تا مونږ ته وکړه چي تر اوسه نه مونږ اورېدلې ده او نه یې مونږ ممکنه بولو، ددوی دا خیال او گمان پیدا سو چي شاید بیان د احوالو د مسجد اقصی په محمد ﷺ د بل چا څخه اورېدلی وي، نو راسئ ده ته دا ووایاست چي ته بیت المقدس ته تلې او بیا بیرته راتلې په لار کي دي څه ولیدل چي ستا د صدق دلیل واضح وگرځي. علیه الصلوة والسلام ورته وویل چي د لارې په اوږدو کي زه ددې خوا تلم قافله د بني فلان (چي علیه الصلوة والسلام یې نوم واخستی او په تفاسیرو کي صرف بني فلان راغلی دی) په وادي کذا کي چي په روحا کي واقع ده چي دا د یو ځای نوم دی نژدې و مدینې ته چي په منځ کي ددې ځای او مدینې د دوو شپو لار ده "قد اضلوا ناقة" یعني دا په هغه وخت کي چي زه متوجه او ذاهب د بیت المقدس پر لور وم دوی اړولې وه زه چي ور ورسېدم دوی بیده وه او یو کټوری د اوبو ډک هلته پروت ؤ هغه اوبه مي وڅښلې بیا چي قافله راسي تاسي پوښتنه څني وکړئ چي ستاسي ناقه پر کوم ځای درڅخه ورکه سوې وه او د کټوري اوبه مو چا څښلې وې.

**پوښتنه**: علیه الصلوة والسلام ولي بې اجازې دا اوبه وڅښلې؟

**ځواب**: په عربو کي دا عادت ؤ چي اوبه او شیدې هر محتاج ته یې د څښلو اجازه ستله، بیا مشرکانو ورته وویل چي زمونږ د قافلې خبر راکړه علیه الصلوة والسلام ورته وویل چي زه چي راتلم دا په تنعیم کي وه چي مکې ته یو قریب ځای دی چي حاجیان له دغه ځای څخه د عمرې احرام تړي، او علیه الصلوة والسلام یې د اوښانو عدد هم ورته بیان کړی. او دا یې هم ورته وویل چي ستاسي قافله به د لمر ختلو سره مکې ته راورسېږي چي د قافلې اول اوښ به یو ابلک "کمر" اوښ وي

او پر هغه به دوه چوله باندي وي يو تور او بل برقا يعني سپين او تور سره ګډ، خلګو ژړدي غره ته ميدان کړه يوه وويل چي الشمس اشرقت هغه بل ناري چي هذا والله القافلة قد اقبلت چي په مخ کي يې ابلک "کمر" اوښ دی.

**دروېش وايي:** چي هغه کسان چي دمخه مرتد سوي وه کمامر په قول راوي هغو تولو بير ته ايمان راوړی او توبه يې وکښل او مشرکان پر خپل شرک ثابت قدمه وه او دا يې ويل چي دا ټوله سحر دی.

**دروېش وايي:** چي عجيبه عقلونه وه د اهل شرک چي په دې نښانې بيانولو کي او د هغو په رشتيا کېدو کي څه د سحر ګنجائش سته لکن حق القول من يضلل الله فما له من هاد صدق الله العظيم.

د معراج د قصې راويان وايي چي تر ليلة الاسرأ وروسته هغه وخت چي لمر زوال وکړی جبرئيل عليه السلام راغلی و عليه الصلوة والسلام ته يې لمونځ ورکړی يعني جبرئيل امام سو او عليه الصلوة والسلام اقتدأ پسي وکړه، د جبرئيل دا راتګ لپاره د تعليم د اوقاتو د لمونځو او هيئات د لمونځو او تعداد د رکعتونو د لمونځو و.

**سوال:** جبرئيل عليه السلام خو په دې لمونځو کي متنفل و او عليه الصلوة والسلام خو مفترض و، او علمأ وايي چي اقتدأ د مفترض په متنفل پسي نه ده روا؟

**ځواب:** چونکه جبرئيل دا دوې ورځي په لمونځو سره له جانبه د خدای ﷻ مأمور و نو دغه د دوو ورځو لمونځونه پر جبرئيل هم فرض وه.

**سوال:** عليه الصلوة والسلام خو تر جبرئيل عليه السلام افضل و، نو جبرئيل عليه السلام څرنګه امام ګرځېدی؟

**ځواب:** دمخه موږ وويل چي جبرئيل لپاره د تعليم راغلی و، نو ځکه دی امام او عليه الصلوة والسلام مقتدي سو، نو جبرئيل عليه السلام څلور رکعته لمونځ وکړی او پر دې لمانځه يې د ظهر نوم کښېښو ددې سببه چي دا لمونځ قيام د ظهيري و ای شدة الحر.

**دروېش وايي:** چي دغه بيان مذکور د امامت او سوال او جواب موافق دی د حديث سره د بخاري او د حواشيو سره د بخاري، او روح البيان داسي بيان کړی

دی چې جبرئیل اول و علیه الصلوة والسلام ته لمونځ ورکړی ثم صح یعنی ناره يې وکړه باصحابه الصلوة جامعة نو اصحاب سره جمع سول فصلی النبي ﷺ باصحابه ﷺ انتهی له دې څه داسې فهمېږي چې ماپښين لمونځ علیه الصلوة والسلام دوه واره وګذاره مرةً مقتدیاً بجبرئیل علیه السلام ومرةً اماماً لاصحابه والله اعلم بالصواب. وقد صرح صاحب روح البیان بما قلت حیث قال فصلوته علیه السلام بالناس کان بعد صلوته مع جبرئیل علیه السلام انتهی.

**پوښتنه**: ولې يې ابتدأ د سهار د لمانځه څخه نه وکړه او سره ددې چې اول لمونځ د اسرا د شپې وروسته خو د سهار لمونځ و؟

**ځواب**: د سهار د لمانځه کول خو پر علیه الصلوة والسلام هغه وخت فرض ګرځېدی چې دی يې په هیئت پوه سوی وای، په صبح کې خو علیه الصلوة والسلام په کیفیت نه و خبر لمامر ان جبرئیل نزل بعد ما زالت الشمس بامره تعالی. والحاصل جبرئیل علیه السلام په یوه شبانه روز کې پينځه لمونځونه په اول اول وخت کې ورکړه او په دویم شبانه روز کې يې په اخیر اخیر وخت کې ادا کړل، او امامة د جبرئیل علیه السلام په نزد د باب الکعبة المشرقة و، وروسته تر دوو وروځو جبرئیل علیه السلام و نبي کریم ﷺ ته وويل "یا محمد علیه السلام هذا وقتک ووقت الانبیاء قبلک والوقت مابین الوقتین" دا چې تاولیدی وخت دی د لمونځو ستا او ستا د امت د لمونځو لان الامة تبع له. او وخت د ټولو انبیاو چې ترتا دمخه تېر سوي دي، او ټوله وخت د ټولو لمونځو په منځ کې د ددغو وختو دی چې اول او اخیر دي یعني کما رئیت وعلمت.

**پوښتنه**: جبرئیل علیه السلام ورته وويل چې دغه وختونه ستا د لمونځو او د ټولو انبیاو د لمونځو وختونه دي، نو پوښتنه داده چې دا پينځه لمونځونه خو له خواصو څخه د علیه الصلوة والسلام او دده د امت دي، او بل نبي په مجموع د دغو پينځو لمونځو نه دي مکلف سوي بالاجماع فکیف یصح قول جبرئیل و وقت الانبیاء علیهم السلام؟

**ځواب**: د جبرئیل علیه السلام د قول معنی داده چې هذا الوقت المحدود بین

الطرفين مثل وقت الانبياء قبلك فانه كان ايضا محدوداً بين الطرفين اى الاول والآخر وان كان لبعض الانبياء صلوة واحدة ولبعضهم اثنان منها. والخاصة لهذه الامة هي مجموع الخمسة بالكيفية المذكورة فافهم.

**درويش وايي:** چي د سيدتنا ام المؤمنين عائشة رضي الله عنها څخه روايت دی چي پينځه سره لمونځونه دوه دوه رکعته وه په ابتداء کي يعني تر اسراء وروسته بعض راويان وايي چي تر هجرت وروسته يوه مياشت. بعض راويان وايي چي وروسته تر هجرت لس ورځي په لمونځو کي د اقامت په ماپښين او مازديگر او ماخستن کي دوه دوه رکعته زيات سوه الا ظهر يوم الجمعة چي هغه دوه رکعته پاته سوه يعني چي د جمعي په ورځ يې په جماعت سره په جامع مسجد کي کوي او که په قرا يا کليو کي وي او يا په ښار کي لکن د جمعي لمونځ د جامع مسجد څخه پاته سو! د هغو خلگو لپاره د ماپښين لمونځ څلور رکعته دی، او د سهار لمونځ پر هغه دوه رکعته پاته سو لطول القرائة او د ماښام په لمانځه کي يو رکعت بالا سو چي درې سو، دا خو حال د مقيم و، او د مسافر لپاره څلور رکعتي لمونځونه يعني ظهر، عصر والعشاء پر حال سابق پاته سوه يعين دوه دوه او مغرب پر خپل حال دی مسافر لره هم.

**سوال:** د خدای جل جلاله حکمت څه دی چي پينځه لمونځونه يې د عليه الصلوة والسلام پر امت فرض کړه؟

**ځواب:** چونکه هغه حواس انساني چي له هغو څخه گنهونه صغائر يا کبائر صادرېږي په اغلبو انسانانو کي پينځه دي يعين سمع، بصر، يد، رجل او لمس، نو لمونځونه هم پينځه سوه تاچي د هغو گنهو چي د دغو حواسو چي پينځه وه هغه په برکت د دغو لمونځو محوه وگرځي.

**درويش وايي:** چي قيد د اغلب احتراز دی له گونگي څخه.

**سوال:** د بعضي بلکي له ټولو حواسو څخه گاهي گاهي گناه کبيره هم صادرېږي کالبهتان والغيبة مثلاً له ژبې څخه او سمع د قبول پر دول د بهتان او غيبت د ژبي له حاسه څخه د سمع، او غلا کول يا سرې ناحقه وژل د لاسو او پښو څخه وعلى هذا فقس. او علماء وايي چي کبائر گنهونه خاص په توبه سره محوه کېږي ليس الا.

**ځواب**: دا محوه حال دی د کامل انسان یعني کامل مسلمان خو ګناه کبائر نه کوي غایة حاله الصغیرة وهي تمحوها الصلوة الخمس.

**درویش وایي**: چي په هغه حدیث صحیح کي چي علیه الصلوة والسلام مخاطبًا لاصحابه وایي "ارئیتم (تاسي خبر راکړئ) لوکان بباب احدکم نهراً یغتسل منه في الیوم واللیلة خمس مرات (که چیري په دروازه کي د یوه ستاسي ویاله وي، چي دی غسل کوي له هغې ویالې ځخه په شبانه روز کي پینځه واره) اکان یبقی ذالک من درنه شیئًا (آیا پرې به ږدي داغه پینځه واره غسل دده له خیرو ځخه یو شی) قالوا یا رسول الله ﷺ (اصحابو ورته وویل یا یعني خیره یې نه پاتیږي) قال علیه السلام فذالک مثل الصلوة الخمس یمحوالله بهن الخطایا انتهی" و هغه ما قلنا في حکمة الصلوة الخمس اشاره ده.

**درویش وایي**: چي له حضرت عائشي رضي الله عنها ځخه روایت دی، دا وایي چي "فقد رسول الله ﷺ لکن اسری بروحه" بیا یې وروسته یو اوږد حدیث له انس بن مالک رضي الله عنه ځخه د بخاري رانقل کړی دی چي هغه حدیث هم پر دې دلالت کوي چي اسرا په حال کي د خوب وه؟

**ځواب**: حدیث د عائشي رضي الله عنها خبر واحد دی والاجماع قد انعقد علی ان الاسرا المذکور في القرآن کان بجسده وروحه وقد ذکرنا تفصیله والکلام في اسناد الحدیث المذکور الی عائشة رضي الله عنها ویدل علی ان في اسناده شیئ ان الاسرا کان قبل الهجرة فتدبر.

**درویش وایي**: چي بعضي مفسرینو توجیه د قول د سیدتنا عائشة رضي الله عنها داسي بیان کړې ده چي دا بیان د هغه وخت د اسرا کوي چي دا په مدینه کي وه بعد الهجرة و علیه الصلوة والسلام ته ورواده سوې وه، او هغه معراج لکه دا چي وایي په یوازي روح سره و او هغه اسرا چي په روح او جسد دواړو سره وه کما وقع علیه اجماع السلف والخلف هغه قبل الهجرة په مکه مکرمه کي واقع سوې ده فلا منافات بینهما مع قطع النظر عن حال الاسناد.

**درویش وایي**: چي دا ځواب د قول سره د شیخ اکبر محي الدین ابن عربي

قدس سره موافق دی چي هغه وايي چي معراج د عليه الصلوة والسلام څلور دېرش واره واقع سوی دی، يو وار په روح او جسد دواړو سره وهو المراد ههنا يعني في قوله تعالى "سبحان الذي اسرى بعبده الآية" او نور تول معراجونه د عليه الصلوة والسلام په روح سره وه يعني في حالة النوم.

**درویش وايي:** چي هغه حديث چي بخاري په طول سره راوړی دی او مسلم مختصر راوړی دی په تفسير کي ددغه آيت "سبحان الذين اسرى الآية" چي هغه صريح دی په دې کي چي دا اسرأ د خوب په حالت کي ؤ كما يظهر من مطالعة البخاري ومسلم او موږ دمخه اجماع پردې رانقل کړه چي دا اسرأ په روح او جسد دواړو وه او په حالت کي د يقظه وه. نو ددغه طويل حديث د بخاري او مختصر د مسلم ځواب به څه وي؟

**ځواب:** بغوي رح وايي چي زموږ شيخ او استاذ ﷺ وايي چي بعض اهل حديث وايي چي موږ نه دی پيدا کړی يو حديث په کتاب کي د محمد بن اسماعيل البخاري رحمه الله او په کتاب کي د مسلم رحمه الله چي ځای د تنقيد دي وګرځي مگر نه دغه حديث مطول في البخاري او مختصر په مسلم کي الذي يدل على ان الاسرا في المنام او پرته يې پر شريک بن عبد الله چي راوي ددې حديث دی واچول، يعني چي دا روايت د شريک منکر دی، او بغوي رح بل ځواب د خپل شيخ الامام څخه هم رانقل کړی دی، درويش وايي چي زه نه په پوهېږم والله اعلم بالصواب.

**درویش وايي:** چي شايد مطالعه کونکي ددې تفسير به وايي چي تا څومره تفسير ددې آيت "سبحان الذي آه" اوږد کړی؟ جوابًا وايم چي معراج په بل نامه اسرأ له مهماتو څخه د معجزو د آنحضرت ﷺ وه، او پرته تر دغه آيت بل ځای په قرآن مجيد کي نه ده ذکر سوې، نو مجبوراً لخدمة القرآن العزيز ولاثبات هذه المعجزة العظمى لرسوله الكريم ﷺ دومره تطويل او اطناب مي وکړی او تاسي دمخه واورېدل چي په دغه اسرا کي اختلاف هم ډېر ؤ چي په حال کي د يقظه ؤ او که د خوب ؤ عزيزانو مطال کونکو د تفسير ايوبي درويش لکه راوړی بيان

دغونه تقريباً په تفاسيرو کي ليدلی دی خصوصاً په روح البيان کي هغه مي نه کړی رانقل له سببه د عدم الاعتماد على النقل المذكور في التفاسير او يا له جهته څخه ددې چي زه نه پوهېدم دادی عذر د اطناب في تفسير الآية المذكورة.

إِنَّهُۥ هُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْبَصِيرُ ①

په تحقيق خدای ﷻ اورېدونکی دی دا قول د عليه الصلوة والسلام يعني يعلمه اقواله او ليدونکی دی د افعالو د عليه الصلوة والسلام ولو في ظلمة الليل.

**پوه سه**: چي مراد له سماع او ابصارو څخه سماع په حاسة د سمع نه ده. او داغه رنګه د ليدلو مراد ليدل په حاسة البصر نه ده لان تينک الخاصتين تقتضيان الجسمية وهو تعالى منزه عن الجسمية بل المراد بالسمع العلم بالمسموعات والبصر العلم بالمبصرات وقيل هما صفات غير العلم قائمتان بذاته تعالى يتعلق صفة السمع بالمسموعات وصفة البصر بالمبصرات.

**پوه سه**: چي په دې آيت کي اشاره ودې ته ده چي دا اسرا لپاره د پوره ته والي د منزله د عليه الصلوة والسلام او لپاره د اعزاز د عليه الصلوة والسلام والا فالاحاطة باقواله وافعاله عليه السلام حاصلة تعالى بلا حاجة الى الاحضار في جنابه تعالى.

وَءَاتَيْنَا مُوسَى ٱلْكِتَٰبَ وَجَعَلْنَٰهُ هُدًى لِّبَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ أَلَّا تَتَّخِذُوا۟ مِن دُونِى وَكِيلًا ②

او مونږ ورکړی موسی عليه السلام ته کتاب يعني تورات او ګرځولی مونږ موسی يا تورات لارښوونکی د اولاد د اسرائيل يعني يعقوب چي مه اخلئ ماسوا له ما څخه وکيل يعني رب چي تاسي خپل کارونه و هغه ته ورسپارئ ماسوا له ما څخه.

**درويش وايي**: چي اصل د "الا" ان لا ؤ، نو روح المعاني وايي چي ان مفسره دی په معنی د ای، او ابو البقا او مظهري تبعاً له وايي چي د ان مفسره د هغه فعل دی چي کتاب دلالت پر کوي تقديره کتبنا اليهم ان لا تتخذوا الخ. او بعض مفسرين وايي چي کتاب متضمن معنی لره د قول دی نو ان تفسير د قول دی. ای قلنا لهم لا تتخذوا الخ، او يا مقدر به حرف سره دي والتقدير لان لا تتخذوا آه.

ذُرِّيَّةَ مَنْ حَمَلْنَا مَعَ نُوحٍ ۚ إِنَّهُ كَانَ عَبْدًا شَكُورًا ﴿٣﴾

منصوب دی په حذف د حرف ندا ای یا ذریة، اې اولاد د هغه چا چې بار کړې مو ړ دوی سره د نوح علیه السلام یعني په کښتئ کې، نو هغه ته مو نجات ورکړی له غرق څخه. په تحقیق ؤ نوح علیه السلام شکر کوونکی بنده.

**پوه سه:** چې "شکور" صیغه د مبالغې ده ای کثیراً شکراً.

**پوه سه:** چې په دې کې تذکیر دی د انعام د خدای جل جلاله پر بني اسرائیلو باندې په نجات ورکولو سره د نیکه ګانو ددوی له غرق څخه په واسطه د رکوب د نیکه ګانو ددوی سره د نوح علیه السلام په کښتئ کې.

**درویش وایي:** چې په صحیح حدیث کې چې روایت یې ابن مردویة له ابي فاطمه څخه کړی دی چې نبي علیه السلام وویل چې نوح علیه السلام به چې یو کار کاوه که لوی وای که کوچنی دا بې ویل "بسم الله والحمد لله" فسماه عبداً شکوراً، او طبراني د سعد بن مسعود الصحابي رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چې نوح علیه السلام چې خدای پاک عبداً شکوراً ویاله له دې سببه چې ده به خوراک وکړی یا به یې اوبه وڅښلې یا به یې کالي واغوستل. یا به یې نور ورته کارونه وکړه، نو د خدای پاک حمد به یې وایه.

**فائده:** په ذکر د حال د نوح علیه السلام خبرتیا ده د بني اسرائیلو چې تاسي خو هم د نوح علیه السلام له اولاده څخه یاست باید چې کړه وړه ستاسي د نوح علیه السلام وای یعني الحمد لله والشکر علی نعمه تعالی.

وَقَضَيْنَا إِلَىٰ بَنِي إِسْرَائِيلَ فِي الْكِتَابِ لَتُفْسِدُنَّ فِي الْأَرْضِ مَرَّتَيْنِ

حکم قطعي او وحې مبرم کړې دې موږ و اولاد ته د اسرائیل چې یعقوب یې نوم دی او اسرائیل یې لقب دی چې معنی یې عبد الله په عربي ژبه کې ده په تورات کې، تاسي به فساد کوئ په مځکه کې دوه واره یعني ارض الشام، او ابن عباس او قتاده رضي الله عنهم وایي چې "الی" په آیت کې په معنی د "علی" ده ومعنی الآیة قضینا (بالمعنی المذکور آنفا) پر بني اسرائیلو في الکتاب ای اللوح المحفوظ،

او "لتفسدن" جواب دی د "قضینا" لان القضا المقطوع جاري مجری القسم ده، او یا جواب دی د قسم محذوف ای والله لتفسدن.

**سوال:** افساد خو مذکر دی. نو مرتین په تانیث څرنګه راغلی؟

**ځواب:** په تاویل د افساد په افسادة سره.

**پوه سه:** چي اول افساد د بني اسرائیلو مخالفت ؤ د احکامو د تورات او محرمات یې بې پېخره کول او قتل د شعیب بن امضیا علیه السلام ؤ. او دوهم افساد یې قتل د زکریا او دده د زوی یحيٰ علیهما السلام او اراده د قتل د عیسیٰ علیه السلام وه، او بعض مفسران وایي اول یې قتل د زکریا علیه السلام و. او دوهم یې قتل د یحيٰ علیه السلام او قصد د قتل د عیسی علیهما السلام و.

## وَلَتَعْلُنَّ عُلُوًّا كَبِيرًا ﴿٤﴾

او تاسي به کبر کوی د طاعته څخه د خدای جل جلاله او د ظلم پر انبیا علیهم السلام.

**پوښتنه:** انزال او وحي خو موسیٰ علیه السلام ته کېدې نو ګرده بني اسرائیل یې څرنګه مخاطب کړه؟

**ځواب:** وحي و موسیٰ علیه السلام ته وحي دي ودوی ته "لانهم مخاطبون بما انزل الی موسیٰ لانه نبیهم"

## فَإِذَا جَاءَ وَعْدُ أُولَاهُمَا بَعَثْنَا عَلَيْكُمْ عِبَادًا لَّنَا

چي راسي یعني ورسېږي وخت د عقاب د اول وار. موږ به مسلط پر تاسي کړو بعض بندګان زموږ.

بعض مفسرین وایي چي اول د بندګانو سنجاریب ومن اهل نینوی والیه ذهب سعید بن جبیر رح. او قتاده رح وایي چي مراد جالوت وجنوده دي الذي قتله داود علیه السلام او ابن اسحاق وایي چي مراد بخت نصر البابلي دی بغوي رحمه الله وایي "وهو الاظهر.

## أُولِي بَأْسٍ شَدِيدٍ

چي د رکونکی به وي د جنګ او قوة سخت

**سوال:** مسلط پر بني اسرائیلو هر څوک چي ؤ هغه خو کافر ؤ، نو اضافت

خدای ﷻ وځان ته څه رنګه وکی "حیث قال عباداً لنا؟
**ځواب**: دا اضافت او نسبت د پاره د تشریف د مضاف نه دی بلکه دا نسبت په اعتبار د دې دي چي دغه عباد مظهر ده اسم الٰهي ای " المنتقم والمذل دی.
**پوه سه**: چي بخت نصر د مجوس شخصه د بابل ؤ او بخت معنا ابن او نصر د یو بت نوم دی چي دا هلک د هغه بت سره چا ابنی ؤ یعني ارمونی ؤ پلار یې نه وو معلوم، نو ځکه یې د نصر بت زوی وباله.

**فَجَاسُوا خِلَٰلَ ٱلدِّيَارِۚ وَكَانَ وَعۡدٗا مَّفۡعُولٗا ۝**

نو دوی یعني هغه دښمنان ستاسي به یرغل راوړي ګرځي به ستاسي د کورو په مابین کي (یعني ستاسي طلب به کوي چي قتل مو کړي) او دا وعده د عقاب ستاسي یوه وعده د جانبه څخه د خدای ﷻ ده چي خاماخا به کېږي.

**ثُمَّ رَدَدۡنَا لَكُمُ ٱلۡكَرَّةَ عَلَيۡهِمۡ**

وروسته رد کړه موږ تاسي ته یا بني اسرائیل غلبه پر هغو کسانو چي تاسي یې خلال الدیار کي قتل کولاست. بیضاوي رحمه الله وایي چي دا کرة او غلبه د بني اسرائیلو په دې ډول منځ ته راغله چي د بهمن د اسفند یار زوی چي سلطنت د نېکه کشتاسف بن لهزاسف په لاس ورغلی په زړه کي شفقت پر بني اسرائیلو پیدا سو، نو بهمن د بني اسرائیلو ټول بندیان رها کړه او دانیال یې پر دوی حاکم کړی. او هغه کسان چي په بیت المقدس کي موجود وه " من اتباع بخت نصر پر هغو په قتال غالب سوه او بعض مفسران وایي چي داؤد عليه السلام پر جالوت چي د اتباعو د بخت نصر ملک وو مسلط کړی او جالوت یې قتل کړی.

**وَأَمۡدَدۡنَٰكُم بِأَمۡوَٰلٖ وَبَنِينَ وَجَعَلۡنَٰكُمۡ أَكۡثَرَ نَفِيرًا ۝**

او مدد مرسته موږ وکړه د تاسي سره په مالو یعني اغنیا وګرځېدلاست او په زامنو سره (بنات خدای ﷻ نه کړی ذکر د دې سببه چي مخ ته د دښمن بنین دربېږي لا البنات) او موږ تاسي وګرځولاست ډېر نفر درلودونکي.
**پوه سه**: چي نفیر جمع د نفر ده لکه عبید جمع د عبد ده.


Scanned by CamScanner

**فائده:** نفر په اصطلاح کي هغه قوم ته وايي چي سره جمع سي د پاره د تګ و دښمن ته والمعنی ههنا چي تاسي موږ ډېر کړاست چي د دښمن د مقابلې توان او طاقت مو درکړې.

إِنْ أَحْسَنتُمْ أَحْسَنتُمْ لِأَنفُسِكُمْ وَإِنْ أَسَأْتُمْ فَلَهَا

که تاسي ښه کار وکړی یعني طاعت د خدای ﷻ او ځانونه منع کړئ د معاصي ؤ څخه دا هغه کار د ځانو د نفعې لپاره به وکړئ (ولي ثواب يې تاسو ته درکول کېږي او خدای ﷻ ستاسي د طاعت څخه غني دی کریمه" والله الغني وانتم الفقرا) او که تاسي بد کارونه وکړئ لکه "فساد في ارض الله" نو ضرر يې وتاسي ته راجع دی "في الدنيا والآخرة"

**پوښتنه:** د ضرر د رسېدو لپاره خو عليها يعني صلة د ضرر علی دی نو د څه حکمت الهي لپاره کلمه د لام ذکر سول؟

**ځواب:** لپاره د مناسبت ده "لانفسکم"

فَإِذَا جَاءَ وَعْدُ الْآخِرَةِ لِيَسُوءُوا وُجُوهَكُمْ

چي راسي وخت د عقوبت آخیره

**پوه سه:** چي کلمه د لام متعلق په محذوف پوري دی ولم يذكره لدلالة ماسبق عليه ای "بعثناهم"

**ترجمه:** چي در بد کړي موخانو ستاسي يعني چي اثار د غم به ستاسي په مخانو کي معلومېږي.

**درویش وايي:** چي دا علامه د شدت د مسائة او غم ده.

وَلِيَدْخُلُوا الْمَسْجِدَ كَمَا دَخَلُوهُ أَوَّلَ مَرَّةٍ وَلِيُتَبِّرُوا مَا عَلَوْا تَتْبِيرًا ⑦

معطوف دی پر "ليسوءا" باندي والمعنی او چي دوی يعني ستاسي دښمنان داخل سي ومسجد ته بيت المقدس واطرافه په داسي شان او شوکت لکه چي اول وار داخل سوي وه، او چي هلاک کړي هغه ځایونه چي بني اسرائيلو غلبه پر کړې وه.

**درویش وايي:** چي د دې ايتو په واقعاتو کي لوی اختلاف دی، نو زه به د

دوو معتبرو تفسيرو قولونه رانقل کړم، نوره فيصله دي په خپله علماً وکړي يو تفسير حسيني چي تصنيف د حسين الكاشفي رحمه الله دی چي په هرات کي يې مزار دی او دا تفسير ډېر قديم دی تر مظهري رحمه الله او روح البيان او روح المعاني وغيرهما مقدم دی لکن په فارسي لغت دی چونکه د اکثرو د پښتو ملا يانو او طالبانو د فارسي ژبي سره علاقه نسته، نو ځکه دا دا تفسير عزيز څوک نه هديه کوي، او بل تفسير بغوي دی چي د محمد بن اسحاق رحمه الله چي د مغازي وا او د سيرت نبوي ﷺ کامل تاريخ دان دی او لوی پوهان دی" والتوفيق من الله ﷻ دا قصه را نقل کړم.

**درويش وايي:** چي چونکه بيان د د فعه اول او د دفعه ثاني په مختصره ډول حسين کاشفي رحمه الله راوړی دی او په بعض ځايو کي د ده بيان د بيان سره د ابن اسحاق موافقت لري اول به د تفسير حسيني د ده فصيح خوږه ژبه فارسي بې را نقل کړم ولي چي اکثر پښتانه په فارسي ژبه پوهېږي ولي چي فارسي د ايران تولو وگړي په پوهېږي ولي فارسي يې ابائي ژبه ده او دغه رنگه په افغانستان کي شمالي برخه په ښه ډول په پوهېږي پاته وگړي د جنوبي افغانستان ماسوی د پښتو څخه په فارسي ژبه ښه پوهېږي پښتانه په خپله ملامت دي ولي فارسي نه زده کوي چي پنځ کتاب گلستان او بوستان سعدي شيرازي او ديوان حافظ هم وايي او مثنوي تر يو ځايه پر يو عالم متبحر فارسي دان ووايي مکالمه په فارسي که يې نه سي زده اما په فارسي عبارات په کتابو د لغتو يا د فارسي تفاسيرو لکه تفسير حسيني ډېر ښه پوهېدای سي او دغه کتابونه فارسي چي ما بيان کړه تر يوه کال په کم وخت کي ښه زده کولای سي علماً وايي چي افصح د ژبو وروسته تر عربي فارسي ژبه ده، نو زما خو تولو طالبانو پښتنو ته دا وصيت دی چي مذکوره فارسي کتابونه پر يو فارسي دان متبحر عالم ووايي تا چي تولو فارسي تفسيرو ته لار سمه سي او د لغت کتابونه چي ترجمه د عربي الفاظو په فارسي کوي لار به يې همواره سي.

دا دی اوس د حسيني کاشفي ډ بلاغت ډک الفاظ واوري (درين قصه اختلاف بسيار است وهر مفسري نقل كه باو رسيده ايراد نموده، وقول اصح واشهر كه در

مختار القصص والسیر وغیر آن از کتبي که در اخبار انبیا علیهم السلام نوشته چنانست چون سلطنت بني اسرائیل در ولایت شام وبیت المقدس بصدیقه (بضم الصاد وفتح الدال وسکون الیا وفتح القاف وفي آخره ها) رسید از اولاد سلما" و او مرد ضعیف الحال واعرج بوده ملوک اطراف طمع در ولایت ایلیا بسته متوجه ان شدند" اول سنجاریب ملک موصل بیامد ومتعاقب او سلما پادشاه ازربایجان رسید وهر دو تلاش قبضه بیت المقدس نمود بایکدیگر محاربه اغاز نمودند، آتش قتال میان ایشان اشتعال پذیرفت ودریاي مبارزت از صرر مخاصمت بموج در آمد، سپهداران سپه درهم فگندند، صدای مرگ درعالم فگندند. ز پیکان عالمي را ژاله بگرفت، زخون روی زمین را لاله بگرفت، عاقبت سطوت آلهي ظهور نموده هر دو لشکر از یک دیگر مهزم گشتند وغنیمت ایشان بدست بني اسرائیل افتاد، دیگر باره بادشاه روم وملک صقالیه وسلطان اندلس هر یک بالشکر کرار جرار همه تیغزن ونیزه گذار در بیت المقدس جمع شدند، وچون رتبه شرکت سلطنت بر نتابد ایشان نیز آغاز نزاع گردند، بلشکر ارایي وتبرد آزمایي قیام و اهتمام نمودند در افتادند همچون شیر غران، بگرز ونیزه وشمشیر بران. بنو اسرائیل دعایي: "اللهم اشغل الظالمین بالظالیمن واخرجنا من بینهم سالمین غانمین آغاز کردند. ونکبت ونکبای غبار ادبار بردیده آن خاکساران پاشید، هزیمت را غنمیت دانست دلهای شان بر فرار قرار گرفت از یکدیگر گریزان شدند. اموال ایشان بدست بني اسراییل افتاد چون غنائم پنج لشکر عظیم در حوزه تصرف اوردند" بحکم کریمه، ان الانسان لیطغی اراه ستغنی، سر تجبر از گریبان عصیان بر اورده ودست تغلب از استین طغیان بیرون کرده حکم تورات را بر طرف نهادند، هر چند ارمیا پیغمبر ایشان پنداد وگفت هر انچه در تورات مقرر شده آن کنید واین فساد مکنید و در معرض سخت آلهي مبائید نشنیدند. حق سبحانه تعالی بخت نصر مجوسي که کاتب سنجاریب بود وبعد از فوت او بحکم ووصیت سنجاریب ملک باو رسید بر ایشان یعني بر بني اسرائیل گماشت تا بیامد وبا ایشان حرب کرده غالب آمد ومسجد بیت المقدس ویران ساخت تورات را بسوخت وهفتاد هزار

کسان بني اسرائیل غلام وبنده گرفت واین عقوبت اول بود، بعد ازان کورش همداني که زني از بني اسرائیل در نکاح او بوده ازین حال خبر یافت مال بسیار گرفت وسه هزار (۳۰۰۰) بنا وسائر عمله باخود اورد وسي سال بعمارت بیت المقدس وولایت ایلیا اشتغال نمود تا بحال اول در آمد. ودیگر بار بني اسرائیل خوش وقت شدند واموال و اولاد ایشان رو بازدیا نهادند، باز سودای مخالفت از نهاد ایشان سر زد ویحیٰی معصوم بقتل رسانیدند وقصد قتل عیسیٰ علیه السلام کردند عقوبت دوم در رسید وطرطوس رومي بر ایشان غلبه کرده دیگر بار مسجد بیت المقدس خراب ومنهدم نمودند" و اندوختهای ایشان بغارت بردند کما قال الله تعالی " فاذاجا آء" دا ؤ عبارت د تفسیر حسیني.

**درویش وایي:** چي بغوي رحمه الله چي د محمد بن اسحاق څخه نقل کړی دی د دې دوو قصو هغه ډېر طویل بیان او په عربي ژبه دی زه به کوشش وکړم چي هغه عبارت چي ترجمه یې فی الجمله اسانه وي هغه به عربي عبارت ذکر کوم او کډ یې ترجمه گرانه وه د هغه عبارت به پښتو ترجمه کوم.

قال البغوي قال محمد بن اسحاق کانت بنو اسرائیل فیهم الاحداث والذنوب (نوي کارونه او گنهونه) وکان الله في ذالک متجاوزا عنهم محسنا الیهم (او خدای وو چي د دغو بد کار دوی ته عفو کوله او احسان یې ورسره کاوه) وکان اول ما نزل بهم بسبب ذنوبهم ان ملکا منهم کان یدعیٰ صدیقه (یو باچا د دوی چي په نامه د صدیقه بلل کېدی په ضمه د صاد او فتح د دال او قاف) وکان الله تعالی اذا ملک الملک علیهم بعث معه نبیا یسدده ویرشده (او عادت د خدای جل جلاله دا وو چي یو نوی بادشاه د دوی مقرر سو د هغه سره به یې نبي هم را استاوه چي هغه نبي وبادشاه لارښونه وکړي او پر سمه لار یې روان کړي) لا ینزل علیهم الکتب انما یؤمران باتباع التورات والاحکام التي فیها (پر هغو نبیانو کتابونه نه نازلېده بلکه مکلف په اتباع د توراة او د احکامو د تورات) فلما ملک ذالک الملک (یعني صُدیقه) بعث الله معه شعینا ابن امضیا وذالک قبل مبعث زکریا ویحیٰی وعیسیٰ علیهم السلام (د صدیقه په وخت کي خدای په نبوة را واستاوه

شيعا) وشعيا هو الذي بشر بعيسى ومحمد ﷺ (او شعيا هغه څوک چي زيري د نبوة د عيسى او محمد ﷺ يې بني اسرائيلو ته وکړی) فملک ذالک الملک بني اسرائيل وبيت المقدس زمانا فلما طال على بني اسرائيل الزمان والعيش "نو يې اثر د هغه آيت" ان الانسان ليطغى ان راه استغنى" ېبرته دوی نافرماني د ثروات او رنګارنګ ګنهونه يې او د شيعا بن امضيا ؑ وخبرو او وعظ ته يې اهميت نه ورکاوه. نو دخدای ﷻ د عذاب وخت ورسېدی، نو سنجاريب چي بادشاه د بابل ؤ چي شپږ لکه سپاه ورسره راهي سو او د بيت المقدس په شاوخوا وارول او صديقه په دغه وخت کي مريض سو پر پنډۍ يې يو دانه پيدا سوي وه، نو شعيا ؑ ورغلى صديقه ته وويل "يا ملک بني اسرائيل ان سنجاريب ملک بابل قد نزل بک هو وجنوده بستمائة الف راية (بيرغ) او بني اسرائيل ډېر وبېرېده او سره متفرق سوه، نو پر صديقه دا خبره ډېره درنه سوه، نو صديقه وشعيا ؑ ته وويل يا نبي الله تاته وحي نه دي راغلي د جانب څخه د خدای ﷻ چي ماته خبر راکړې چي زمونږ او د سنجاريب او د لښکر د ده تر مابين به خدای جل شانه څه فيصله وکړي شعيا ؑ ورته وويل چي وحي ماته نه دي راغلي لږ وخت وروسته شعيا ؑ ته خدای پاک وحي راستولې چي ورسه ملک ته د بني اسرائيلو ووايه چي وصيت وکړه او پر خپل ځای يو بل څوک ستا د اهل بيت څخه خليفه وګرځوه، نو شعيا ملک بني اسرائيل صديقه ته ورغلى او د وحي مضمون يې ورته بيان کړی چي ته مرې خليفه وټاکه دا خبر چي صديقه د شعيا څخه واورېدی نو يې غم زيات سو او مخ پر قبله سو دوه رکعته نفل يې وکړه او په زاريو او بغارو سو د خدای ته په مخلص زړه او داسې يې وويل " اللهم رب الارباب واله الآلهة (ای مالک د خدايانو باطله ؤ چي مراد ځني بتان دي) يا قدوس المتقدس يا رحمن يا رحيم يا رؤف الذي لا تاخذه سنة ولا نوم اذکرني بعملي وحسن قضائي على بني اسرائيل وذالک کله منک وانت اعلم به مني سري وعلانيتي لک وکان صديقه رجلا صالحا فاستجاب الرحمان دعائه.

**پوه سه:** چي صديقه چي حسن ثنا د خدای ﷻ وويل "اذکرني آه" د ذکر څخه

مراد یې کومک دی پر سنجاریب او لښکر د ده او دا چي وویل "بعملي وحسن قضائي علی بني اسرائیل" په دې کي مقصد دا دی چي حسن القضاً چي د عملي عطف تفسیر دی د خدای ﷻ ته شفیع گرځول "لان من حسن عمله مع عباد الله یحسن الله الیه" او په دې قول کي وذالک کله "منک" یعني بتوفیقک ایبای دفع د انانیت وځان ته وکړه، نو د دې سببه چي صدیقه غرض دعاً وه د کومک پر سنجاریب وعسکره په جواب کي دا عبارت وویل سو فاستجاب الرحمن دعائه "فافهم" وروسته خدای ﷻ وحي وکړې و شعیا علیه السلام ته چي خبر ورکړه صدیقه ته چي د ده خواست خدای ﷻ قبول کړی او رحم یې پر وکړی او ورته ووایه چي خدای ﷻ عمر د ده (۱۵) کاله نور اوږد کړی، او د سنجاریب څخه مې دی خلاص کړی، نو شعیا علیه السلام ورته راغلی او د رب ﷻ پیغام یې صدیقه ته ورساوه نو د دې پیغام آلهي په رسولو سره د صدیقه څخه بېره د زړه څخه ووتل او پر سجده وخدای ته پرېوتی او داسي یې وویل "یا الهي والهي ابائي لک سجدت وکرمت وعزمت انت الذي تعطي الملک من تشاً وتنزع الملک ممن تشاً وتعز من تشاً وتذل من تشاً عالم الغیب والشهادة انت الاول والآخر والظاهر والباطن انت ترحم وتستجیب دعوة المضطرین انت الله الذي اجبت دعوتي ورحمت تضرعي فلما رفع راسه" چي سر یې د سجدې څخه را پورته کړی شعیا ته خدای ﷻ وحي وکړې چي ملک صدیقه ته ووایه چي یو مریي د مریانو څخه خپل ته ووایه چي د انځر اوبه دي راوړي مانښام دي په ټپ یا دانه پوري ومونږي نو چي سحار کېږي جوړ به وي د هم داغسي وکړه او خدای شافي الامراض هم شفاً ورکړه.

**درویش وايي**: چي د هغه نورو الفاظو عربیه وو ترجمې ته ضرورت نسته "لمن له ادنی المام بلسان العرب" وروسته ملک صدیقه وشعیا علیه السلام ته وویل چي ته د خدای جلت قدرته سوال وکړه چي زمونږ او د سنجاریب به څه سر گذشت وي په آینده کي یعني جنگ به سره کوو که څه رنگه؟ خدای جل سلطانه وشعیا ته وحي وکړې چي ملک صدیقه ته ووایه چي ستاسي د دښمن چاره زه کوم او تاسي د دې لوی دښمنه څخه خلاصه وم او دا دښمن ستاسي ژر دی چي صباح ته به

هلاک سي او ټوله لښکر د ده به هلاک سي يو سنجاريب او پنځه کسه کاتبان د ده به ژوندي پاته سي چي صباح ورځ سوه يو سړي په زوره نعرې وهلې د ښار په دروازه کي "يا ملک بني اسرائيل ان الله قد کفاک عدوک فاخرج" د سنجاريب لوی فوج ټوله مړه پراته دي، نو ملک بني اسرائيل صديقه چي راووتی په سنجاريب پسي په مړو کي وکتل نه يې کی پيدا . نو ملک خلګ واستول په طلب کي د سنجاريب هغه خلګو سنجاريب او د ده (۵) کسه کاتبان په يوه غار کي د غره چي يو يې د کاتبانو بخت نصر ؤ. ټوله يې په يوه تناو سره تړلي ملک صديقه ته راوستل.

**پوښتنه**: په سر کي د قصې داسي وويل سول چي د سنجاريب شپږ لکه فوج ؤ نو دا چي ټوله په يوه وار مړه او صرف شپږ (٦) کسه ده مرګه څخه وساتل سوله، نو دا دونه مړي يې څه په وکړه ملک د بني اسرائيلو؟

**ځواب**: بعض مفسرين وايې چي ملک بني اسرائيل لوی لوی کندي ورته وکښلې او هغو کندو ته يې دا دست کړي جمعه واچول.

**درويش وايي**: چي دا جواب د هغه قصې سره ده بدر سمون خوري يعني په بدر کي چي اويا کسه په شمول د فرعون الامة ابو جهل مردار سول عليه الصلوة والسلام حکم وکړی چي دا ټوله مړي دي په سو ځا کي چي په بدر کي وو يعني د اوبو ځا نه وو وغورځوي او خاوري دي پر واچوي چي دا قصه په بخاري او مسلم او نورو کتابو د احاديث مبارکه وو کي بلتفصيل ذکر سوې ده، راسئ بېرته قصې ته د ملک بني اسرائلو ستون سو راوي وايې چي صديقه ملک بني اسرائل چي دا شپږ (٦) کسه په يوه تناو تړلي ولېدل پر سجده پرېوتی " من حين طلعت الشمس الى اول وقت العصر شکرا الله جل سلطانه" د سجدې څخه چي سر را پورته کړی سنجاريب ته يې وويل "کيف ترى فعل ربنا بکم" ايا تاسي يې نه کړاست بحوله وقدرته " ونحن وانتم غافلون" يعني نه موږ قبلا خبر ؤ او نه تاسي چي قادر متعال به تاسي په يوه شپه د مرګ وکندي ته سپاري، سنجاريب ورته وويل چي موږ ته راغلی ؤ خبر د رب ستا او کومک د خدای ستاسي د تاسي سره

او رحم د خدای چي پر تاسي يې کوي د مخه تر دې چي زه راو تلم لپاره د جنګ ستاسي "فلم اطع مرشداً" ما د لارښود په خوله ونه کړه.

**درويش وايي:** چي سنجاريب قصد وکړی د جنګ د نبي اسرائيلو او يرغل پر بيت المقدس د ده کهانو دي منع کړی چي دا قصد پرېږده هزيمت دي په برخه کېږي د دهغو خبره ونه منل.

**سوال:** کاهنان چي کافران وه دا غيب کار ودوی ته څه رنګه معلوم و؟

**ځواب:** په هغو زمانو کي استراق السمع و القائه الى الكهان جاري وه په زمانه کس د عيسى عليه السلام لږ بند بز پر ولګېدی د خدای ﷻ وروسته تر بعث د عليه السلام پوره بند بز پر ولګېدی "كما جاً في الاحاديث الصحيحة" سنجاريب ورته زياته کړه چي زه په دې بد بختي کي نه يم اچولی مګر خپل قلة عقل "ولو سمعت" که ما قول د مرشد قبول کړی وای او يا مي لږ عقل درلودای ستاسي د غزا نيت به مي نه وای کړی، نو صديقه ورته وويل چي ته او ستا پنځه کسه کاتبان خدای ﷻ د دې لپاره ژوندي نه پاست پرې ايښي چي تاسي پر خدای قدر درلودی بلکه د دې لپاره يې ژوندي پرېښو لاست "لتزداد الشقوة في الدنيا وعذابا في الاخرة" او د دې لپاره چي تاسي به خبر کړي په قدرت د خدای او په "مارئتم" سره "من ورائكم بفضل ربنا بكم" نو تاسي به وبهره وي خپل وګړي د اينده ورته قصد کولو څخه او که دا حکمت نه وای ما به تاسي وژلي وای صديقه ورته وويل چي ستا او د "من معك" وينه تويول اهون دی على الله "من دم قراد" (يعني منګوږ) وروسته ملک بني اسرائيل امر صادر کړی و خپلو اميرانو ته چي د دې (٦) کسانو په غاړو کي دست جمعي رسی وروا چوئ (٧٠) او يا ورځي د بيت المقدس او د ايليا په بازار او کڅو کي ګرځوي دوې اريشني پوډی فی نفر ورکوي، نو سنجاريب و ملک بني اسرائيل ته وويل "القتل خير لنا مما تفعل بنا" يعني چي رسی په غاړه مو په بازارو کي ګرځوي، يعني مرګ خو يو ګړی وي او دا چي ته يې د موږ سره کوې هره ورځ مرګ دی، نو صديقه دوی وبندي خاني ته د قتل واستول، يعني هوري يې مړه کي، نو خدای پاک وحي وکړې وشعيا

النبي ﷺ ته چي صديقه ته ووايې چي سنجاريب او ملګري د دمه قتل کوه،
تا چي دوى ژوندي ورسي خپل وطن بابل ته او او نور خلګ وبېروي د هغه کاره
څخه چي ده وکړی، يعني يرغل پر بيت المقدس او بني اسرائيلو باندي او بېه
عزت او اکرام يې وکړه او دوى تر خپل وطن پوري ورسوه، شعيا عليه السلام چي امر
الهي صديقه ته ورساوه صديقه هم هغسي وکړه خير خو سنجاريب او نور (۵)
کسـه کاتبان بابل تـه ورسېده هوري خلګ پر راجمع سوه حالات يې څنډي
وپوښتل سنجاريب ټوله ما جرى هغو ته بيان کړه، نو کاهنانو د ده وده ته وويل
يا ملک بابل موږ تاته قصي او خبرونه د رب د بني اسرائيل او حال د نبي د دوى نه
وو بيـان کړې يعني د مخه تر خروج ستا د بابل څخه په قصد د جنګ د بني
اسرائيل چي نبي د دوى يعني شعيا د دوى ژوندى ورسره دى تا زموږ خبره ونه
منل او دوى سنجاريب ته وويل چي دا سي يو امت دى چي د خداى ملګري دي او
د وحي دروازه ورته خلاصه ده، يعني د نبي په وجود سره، نو هيڅ څوک توان او
طاقت د جنګ د دوى نه لري.

**تفريع**: ورتله د سنجاريب د پاره د جنګ بني اسرائيل ته ضرف او صرف يو
بېرول د دوى وه "ثم کفا هم الله من قتاله اظهار لقدرته الباهرة" خير سنجاريب
(۷) کاله ژوندى و چي مړ کېدى د زوى زوى بخت نصر يې قائم مقامه ملک د
اهل بابل وټاکى او سنجاريب مړ سو.

**درويش وايي**: چي په قصه کي د محمد بن اسحاق خو بخت لمسى د
لمسي د سنجاريب ذکر سوى دى لکن نور اهل تاريخ وايې کما مر سابقا چي
بخت نصر ارموني و چي اصل يې بوخت چي په ده زوى دى او نصر د بت نوم دى
چي دا هلک وهغه بت ته زانيه مور اېښى و، نو معنى يې دا ده چي زوى د نصر
هغه وايې چي بخت نصر معتمد کاتب و د سنجاريب نو ځکه قائم مقام خپل يې
وټاکى ، والله اعلم بالصواب، (۱۷) کاله د پادشاهى د بخت نصر پوره سوه او
ملک محترم د بني اسرائيلو صديقه داعي الاجل ته لبيک ووايه وفات سو " انا لله
وانا اليه راجعون" او په بني اسرائيلو کي پر مملک جنګ او جدل پيدا سو او يو د

بله سره وژل او شيعا علیه السلام ژوندی وو هر څه نصيحت چي به يې دوی ته وکړی دوی هغه نه مانه. نو شيعا علیه السلام يو جامع بليغ نصيحت وکړی بني اسرائيلو ته شعيا علیه السلام چي د نصيحت څخه فارغه سو دوی حمله پر کول چي مړ يې کړي شيعا علیه السلام ځندي وتښتېدی په لار کي يوه درخته وه هغه پر مابين سره دوه ځايه سوه او شعيا په ننوتی شيطان يې يو ټوکر د کالو د شعيا پرې کړی، نو بني اسرائيل چي د ده د قتل لپاره پسي روان وه شعيا ځندي ورک سو شيطان د سري په بڼه دوی ته وويل چي شعيا په دغه درخته ننوتی دا يې د کالو نښانه ده نو بني اسرائيلو اره راوړه درخته يې پر مابين ورېبل او شعيا علیه السلام هم ورسره پر ميانځ دوه ځايه شو. انا لله وانا اليه راجعون.

وروسته خدای جل جلاله يو سړی د دوی د قوم څخه چي نوم يې ناشية بن ناموس خليفه او ملک وټاکی.

**درويش وايي:** چي معنی د ټاکلو د خدای دا ده چي د د دوی په زړو کي اتفاق پر دغه خليفه او ملک ورواچاوه، نو هغه خليفه سو او خدای جل جلاله ارميا بن حليقا د سبط څخه د هارون بن عمران اخي موسیٰ علیهما السلام نبي وټاکی تا چي ملک ناشية ته لار وربښيي او په وحي سره يې پر لار برابره وي.

**درويش وايي:** چي مظهري رح د ابن اسحاق څخه دا روايت چي ارميا د خضر اصلي نوم دی آه دا عجبه خبره ده که ابن اسحاق ته نسبت د مظهري صحيح او که نه دا خبره ده نصه څخه د قرآن مخالفه ده .ولي چي خضر خو هغه سړی دی چي موسیٰ علیه السلام يې طالب د ملاقات سو او څو زمانه ورسره ؤ بيا ځندي جلا سو "كما نطق به القرآن" او دا موجوده واقعات خو وروسته د موسیٰ علیه السلام تر وفات پيښي سوي دي، نو داسي خبري راوړه په تفسير کي ناوړه او نازيبا دي فتدبر.

راويان وايي چي بيا نوي نوي کارونه په بني اسرائيلو کي رونما سوه او د معاصي پر اوښانو سپاره او محارم د خدای يې تر پښو لاندي کړه، نو ارميا علیه السلام ته خدای پاک وحي وکړې چي ورسه قوم ته دي يعني بني اسرائيلو ته نو دوی ته بيان که ما امرک به او زما سابق نعمتونه ورته بيان کړه او دوی ته خپل معاصي او نوي کارونه

ورونبیه ارمیا علیه السلام وویل "رب اني ضعیف ان لم تقویني (که ته قوت نکړي را) عاجز ان لم تبلغني (عاجزیم که ته ښونه راته ونه کړې) مخذول ان لم تنصرني (زه د خلګو د مقابلې څخه ښوېدلی یم که کومک راسره ونه کړې)

خدای پاک ورته وویل چې ته نه یې خبر چې کارونه زما د مشیة او ارادې څخه پیدا کېږي او زړونه او ژبې زما په قدرت کې دي "اقلبها کیف شئت اني معک لم یصل الیک شیئ معی (زه ستا سره یم یعني بالعون والنصرة نه رسېږي یعني من الضرر چې زه معاون یم، نو ارمیا علیه السلام په مابین کې د قوم ودرېدی او حیران ؤ چې زه څه ووایم، نو خدای ﷻ الهام ورته وکړی فی الحال خطبة بلیغه" چې ارمیا علیه السلام بیان کړی قوم ته ثوابونه د طاعت د خدای ﷻ او عذابونه د معصیت د خدای په اخر د خطبې کې ارمیا د طرف څخه د خدای ﷻ وویل یعني خدای ﷻ :اني حلفت بعزتي (ما قسم اخستی دی په جپل عزت سره) لا قیضن لهم فتنة (زه به قضی کوم دوی لره یعني بني اسرائیلو لره په یوه فتنه سره) یتحیر فیها الحلیم (چې حیران به ګرځي په هغه فتنه کې برد بار عاقل سړی) ولا سلطن علیهم جبار اقاسیا (هر آینه زه به مسلطوم پر دوی یو لوی ظالم چې سخت زړه به وي) البسه الهیبة وانزع من قلبه الرحمة (چې په هغه کالي د هیبت واغوندم پر بني اسرائیلو او زه به باسم د زړه څخه د هغه رحمت او زړه سوی پر دوی) یتبعه عسکر مثل سواد اللیل المظلم (او د هغه سره ورسره لښکر لکه تاریکه د تاریکي شپې یعني لکه تاریکه ده شپې تاریکي چې سپوږمی نه وي پکښې تو له خلګ په لفیټ کې نسي د غه رنګه به د هغه فوج تو له بني اسرائیل په احاطه کې نسي) ثم اوحی الی ارمیا اني مهلک بني اسرائیل باهل بابل تسلط علیهم بخت نصر البابلي (هغه ؤ چې بخت نصر په شپږ لکه عسکرو پر دوی حمله وکړه و بیت المقدس ته داخل سو او شام یې هم تر پښو لاندې کړی او د بني اسرائیلو قتل عام یې شروع کړی حتی قریب الفنا یې کړه او بیت المقدس یې لوټي لوټي کړی او خپل لښکر ته یې امر وکړی چې هر یو دې خپل د سفر بخل ځولی د خاورو ډکه کړي په بیت المقدس کې دې و غورځوي او تورات یې په اور وسو، او بیا یې امر وکړی چې په بیت المقدس کې هر څه وګرې د

بني اسرائیلو چي وي ترلو یه تر کشتني ترنر او ښځي تپوله دي راجمع کړه سي؛
عسکر د بخت نصر هم د ده د امر سره موافق هغسي وکړه او بخت نصر او یا
زره تا بالغه هلکان د بني اسرائیلو جلا کړه نو چي غنیمتونه د لښکر د ده جمع
سول او ده اراده د تقسیم وکړه هغه بادشاهان چي د بخت نصر سره ملګري وه
هغو ورته وویل "ایها الملک الغنائم کلها لک واقسم بیننا الغلمان" نو بخت نصر
هم هغه او یا زره غلمان پر دغو بادشاهانو چي د ده سره په جنګ ملګري وه یې
وېشل هر سړي ته څلور هلکان ورسېدل. او بخت نصر بني اسرائیل باقي درې
حصې کړه یوه حصه شام ته واستول، او یوه حصه او مریان یې د ځان سره بوتلل
چي په هغو کي ناشیة بن اموص ملک بني اسرائیل هم و او یوه حصه یې قتل کړه
نو باره بابل ته ستا نه سو راوي وایي چي دا واقعه اولی وه "التي انزل علی بني
اسرائیل بسبب ظلمهم وعصیانهم کما قال الله عز وجل.
فاذا جاء وعد اولهما بعثنا علیهم عبادا لنا اولي بأس شدید" یعني بخت
نصر ومن معه من العساکر والملوک" او بخت نصر خپل بادشاهي پر مخ بېول.
راوي وایي چي اهل بابل وبخت نصر ته شکایت وکړی چي بنائسته هلکان د بني
اسرائیلو چي زموږ په غوښتنه تا موږ ته راکړه کما مر هغه چي زموږ کورو ته
راغلي دي زموږ ښځو مخ واړاوه او د دې اسرائیلیانو سره عشق بازي کوي دا
هلکان یا زموږ څخه وباسه او یا یې قتل کړه بخت نصر ورته وویل چي تاسي
پوهېږې او دوی که یې شړي که یې قتل کوي، خلګو هغه اسرائیلیان له کورو
څخه لاس تړلي راویستل د قتل و ځای ته، هغو و خدای ﷻ ته بغاري کړې، چي
موږ د بل یعني زموږ د پلرو د ګنهو په سبب قتل کېږو. بشاري هاتفي بږغ ورته
راغلی چي زه بیرته تاسي ژوندي کوم . خو خیر اهل بابل هغه اسرائیلیان چي
ددوی په کورو کي وه هر څو زره چي وه قتل یې کړه مګر نه هغه اسرائیلیان چي
بخت نصر د خپل دیار په کورو کي پرې ایښي وه چي دانیال. حنانیا. عزرایا او
عیتائیل وه. راوي وایي چي څه وخت چي د بخت نصر وخت د هلاک خدای پاک
رانژدې کړی، نو یوه ورځ ددغو مذکوره اسرائیلیانو څخه یې پوښتنه وکړه چي

دغه د بیت المقدس په نامه خونه چي ما خرابه کړه او دغه کسان چي ما هوري په قتل ورسول، تاسي ددې بیت او ددې خلګو حال ماته بیان کړي؟

هغو ورته وویل چي دا بیت الله وه او مقتولین د خدای ﷻ دوستان او اهل الله وه له اولادو څخه د انبیا کرامو علیهم السلام وه، لکن چي دوی او قوم زموږ ظلم شروع کړی او د انبیا لار یې پرېښول او د تورات احکام یې پست پشت وغورځول، نو ددوی د ګنهو په سبب خدای ﷻ ته پر مسلط کړې او چي ودې کړ هغه دي وکړه یعني "القتل والغارة والسبي" او ددوی خدای ﷻ ودوی ته عزت او کرامت ورکړی و چي هغه خدای مالک د اسمانو او مځکي دی. نو یې خیال نعمت چي صحت او عافیت او کثرة الاموال والبنین وه ځندي واختل یعني ته یې پر مسلط کړې، د بخت نصر جاهل دا خیال سو چي په اسمانو کي یو بادشاه ستړ چي دا کارونه کوي. نو بخت نصر دده په لاس کي ناموړو کسانو ته وویل چي زما خو د مځکي سلطنت په لاس راغلی تاسي دا راته وواياست چي زه به څرنګه اسمان ته وخېژم چي د اسمان د سلطان سره جنګ وکړم او په قتل یې ورسوم؟ هغو ورته وویل چي د اسمان ختل د چا له وسه نه ده پوره او خصوصاً د رب السموات سره جنګ کول د امکان له دائرې څخه وتلی کار دی، بخت نصر ورته وویل چي یا به ماته دغه لار رابنیاست یا مو زه وژنم، نو هغو ټولو کسانو خدای ﷻ ته بخاري کړې او تضرع یې وکړه "فبعث الله بقدرته بعوضة" یوه غوماشه چي د بخت نصر په پزه ننوتل او د سر و مغزو ته دده یې ځان ورساوه، کرار کرار یې دده په مغزو خیل نیښ جګاوه بخت نصر نه خوب کولای سوای او نه ارام. او سر یې له دیواله دیواله واهه سر یې دوه ځایه سو خلګو چي وکتل هغه غوماشه یې په مغزو اخته وه "لیری الله قدرته ویحی الله من بقی من بني اسرائیل فردهم الله الی الشام. خلګ وایي درویش یې ذمه وار نه دی چي هغه دمخه چي وژل سوي وه هغه کسان هم خدای ﷻ ور ژوندي کړه.

**یوه سه:** چي امام حافظ محدث مظهري رحمه الله وایي چي هغه دمخه چي باقیانده وروسته تر هلاک د بخت نصر وشام ته داخل سوه هیڅ د خدای ﷻ د

احکامو څخه نه وه ورته معلوم. او تورات د بخت نصر په حمله کي سوځل سوی ؤ
او عزیر علیه السلام بخت نصر د مریانو په توګه بابل ته بېولی ؤ، نو هغه هم شام ته راغلی
او پر حالت زار به یې د سبایاوو شپه او ورځ ژړل او له خلګو څخه به جلا ناست ؤ،
یوه ورځ یو سړی راغلی عزیر علیه السلام ته یې وویل "مایبکیک یاعزیر؟" ده ورته وویل
چي پر کتاب الله تورات باندي ژاړم چي زموږ په منځ کي اوس نسته او زموږ ددنیا
او د آخرت اصلاح په تورات پوري مربوط وه، هغه سړي ورته وویل چي ستا خوښه
ده چي تورات ستا په سینې او زړه کي قرار ونیسي ده ورته وویل نعم، هغه سړي
ورته وویل چي ته ولاړ سه روژه ونیسه او غسل وکړه او پاک کالي واغونده بله ورځ
دغه ځای ته راسه، عزیر علیه السلام ولاړی هغه سي یې وکړه بله ورځ چي هغه ځای ته
راغلی هغه سړی هم راغلی یو لوښی ورسره وو، او په هغه لوښي کي اوبه وې چي دا
سړی په حقیقت کي ملکه وه، هغه اوبه چي یې په عزیر علیه السلام وڅښلې په قدرت د
خدای عزوجل تورات مکمل دده په سینه کي ضبط سو، نو عزیر علیه السلام بني اسرائیلو ته
راغلی او تورات "عن ظهر قلب" یې دوئ ته ووایه. نو بني اسرائیلو زیات محبت
دده سره کاوه، او احکام د تورات بې ځندي زده کول، څو عمر وروسته عزیر علیه السلام
وفات سو، انتهی قول المظهري په پښتو ژباړه.

**درویش وایي:** چي مظهري رح دا قصه په نهایت اختصار سره د عزیر علیه السلام د
حال بیان کړې ده. ده هغه آیتونه پرې ایښي دي چي د عزیر علیه السلام په شان کي نازل
سوي دي، چي دی چي بیت المقدس ته راغلی پر خره سپور وو، او د ابو مشکولا
ورسره وه، او یوه بغل ځولی هم ورسره وه، او تخریب شده حال د بیت المقدس
او لوټي لوټي یې ولیدل داسي وویل "انی یحي هذه الله بعد موتها" څه رنګه به
خدای آباده کړي دا قریه پس له موت یعني له خراب څخه او دا خبره دده له جهته
څخه د شک په قدرت کي د خدای جل جلاله نه وه، بلکه د تعجب عادي د لاري او ده خر
په یو ځای کي وتاړه او د خرابي قریه درختو میوه لکه اینځر انګور پاخه وه، نو
څه اینځر یې وخوړل او څو دانې د اینځر یې په توکری یا بغل ځولی کي واچول
او څه انګور یې وخوړل او نور یې اوبه کړه په مشکولا کي واچول او دی د آرام

لپاره یو ځای بېده سو "قال الله فاماته مائة عام ثم بعثه" نو خدای جل جلاله دی مړ کړی
سل (۱۰۰) کاله وروسته یې بېرته ژوندی کړی لپاره د اظهار د قدرت عظیم
خپل جواباً لقوله "انی یحی هذه الله بعد موتها" که څه هم هغه د عزیر د شک لپاره
نه وه بلکه د تعجب د لاري خدای جل جلاله به په اعجب تر هغه جواب ورکړی، نو دی
د مرګ له اوږده خوبه سل کاله وروسته راپیدار سو، یعني خدای ژوندی کړی،
قال الله "کم لبثت قال یوماً او بعض یوم "خدای ورته وویل "کم" څو درنګ. ولته
کړی عزیر علیه السلام ورته وویل یوه ورځ یا بعض د ورځي قال الله" بل لبثت مائة عام"
قال الله "فانظر الی طعامک" یعني اینځر "و شرابک" یعني و لګ وروو لوسه لم
یتسنه" چي هېڅ تغیر یې په دا سل کاله کي نه ؤ کړی تازه په تازه پراته وه، و
دده د خره غوښي او پوستوکي ټول له خاوري سوي وه، صرف سپین هډوکي یې
پراته وه، قال الله "وانظر الی حمارک (او خره ته دي وګوره) کیف ننشزها ثم
نکسوها لحماً (چي خره رنګه به یې موږ هډوکي سره یو ځای کړو، او بیا به په
واغوندو غوښي قال الله تعالی "فلما تبین له ذالک قال اعلم ان الله علی کل شئ
قدیر" عزیر علیه السلام ته چي دا عجائب د قدرت معلوم سوه وه یې ویل چي زما یقین
سو چي خدای جل جلاله پر هر شي قادر دی "ومنها احیاً هذه القریة بعد موتها".

**درویش وایي:** چي دا بیان د اختصار د مظهري رح دی په قصه کي د
عزیر علیه السلام او دا قصه نوره هم پسي اوږده ده کما بین في موضع آخر.

**درویش وایي:** چي امام مظهري په خپل اوږد بیان کي یو خوب د بخت نصر
هم راوړی دی چي هغه له عقل او نقل دواړو څخه بعید دی او سره ددې چي
مظهري په صفحه (۴۰۵) کي ویلي دي "قال البغوي قال محمد بن اسحاق رح
والله اعلم بحقیقة الحال.

**درویش وایي:** چي اوس بیرته د بني اسرائیلو د پاته قصي پر لور، څه وخت
چي عزیر علیه السلام وفات سو بني اسرائیلو بیرته خپل احداث د دین او د تورات څخه
خلاف پر کار واچول، خدای جل جلاله خپل احسان له دوی څخه ونه سپماوه او رسول
یې یو په بل پسي ورته راواستول، نو دوی د نبیانو د یوې دلي تکذیب کاوه او بله

وله یې وژل حتی چې په اخیر کې زکریا. یحیی او عیسی علیهم السلام یې په نوبت سره راواستول او دا دري نبیان له آل څخه د داود علیه السلام وه. بعض راویان وایي چې زکریا علیه السلام په خدایي مرگ مړ سو څوک وایي دوی قتل کړی. خیر یحیی علیه السلام خو یقیناً دوی شهید کړی او د عیسی علیه السلام د قتل بندوبست یې هم کړی ؤ خو هغه خدای جل جلاله اسمانو ته ځندي پورته کړی چې قصه یې اوږده ده، په دې مکافات کې خدای جل جلاله پر دوی بل باچا د بابل پر مسلط کړی چې نوم یې خردوش ؤ، نو دې باچا اهل بابل د ځانه سره راوستل او شام ته داخل سو او بني اسرائیل یې له پښو واچول مغلوب یې کړه او خردوش خپل یو غټ قومندان فوجي چې نوم یې بیوزرذاذان ؤ چې پر فیل به سپرېدی. هغه ته یې وویل چې ما قسم کړی دی که ما پر بني اسرائیلو غلبه وکړه زه به دوی تر هغو پوري وژنم چې ویني ددوی زما د لښکر په منځ کې بهېږي الا ان لااجد احداً اقتله. نو فوجي قومندان ته یې د بني اسرائیلو د قتل عام امر ورکړی تر څو چې ویني یې د لښکر په منځ بهېږي، راوي وایي چې قومندان مذکور بیت المقدس ته ورغلی یو ځای یې ولیدی چې په هغه ځای کې به بني اسرائیلو د خیرات حیوانات ذبح کول، نو په هغه ځای کې قومندان مذکور ولیدل چې له مځکې څخه د وینو چینه راوځي، نو قومندان ورته وویل چې یا بني اسرائیل ما شان هذا الدم؟ یعني دا څرنگه وینې له مځکې راوځي؟ دوی وویل چې د خیرات د یوه حیوان وینه ده چې خدای جل جلاله زموږ څخه نه کړی قبول او دوی ورته زیاته کړه چې موږ اته سوه (۸۰۰) کاله کېږي چې پر دغه ځای حیواني خیراتونه کوو تو له خدای قبول کړه دغه یو یې نه دی قبول کړی، قومندان مذکور ورته وویل چې رشتیا مو نه دي راته ویلي، دوی ورته وویل که اوله زمانه زموږ وای دا خیرات به هم راځخه قبول سوی وای لکن زموږ بادشاهي او نبوت او وحي قطع سوې "ولذالک لم یقبل منا" بیا قومندان ورته وویل چې رشتیا مو نه دي راته ویلي، دوی ورته وویل چې داغه رشتیا ده، نو قومندان مذکور اووه سوه اوویا (۷۷۰) کسه د دغه وینو پر ځای قتل کړه وینه نه ودرېدل، قومندان مذکور بیا اووه سوه (۷۰۰) ځوانان ددوی راوستل او پر هغه ځای یې قتل کړه وینه ونه

دربدل اخير قومندان مذکور ورته وويل چي رشتيا راته ونه وايا ست ترڅو او تر بڼڅو پوري دومره سري والله که درپرېږدم چي اور پوه کوي "فلما رؤا الجهد اى عزم قومندان وشدة القتل" نو يې رشتيا ورته وويل، چي زموږ يو نبي ؤچي موږ يې له ډېرو منهياتو څخه منع کولو او د خداى ﷻ د عذاب الدنيا والآخرة بيان يې راته کاوه موږ يې تصديق نه کاوه اخير مو قتل کړى، قومندان ورته وويل چي نوم يې څه ؤ؟ دوى ورته وويل چي نوم يې يحيى ؤ دده د قتل را ايسته چي موږ دى دلته پر دغه ځاى قتل کړى وينه جاري ده، قومندان مذکور ورته وويل چي اوس مو رشتيا راته وويل، نو بيورزاذان پر سجده پرېوتى او بني اسرائيلو ته يې وويل چي دروازې د بيت المقدس وتړئ او د خردوش فوج وباسئ، نو دى او بني اسرائيل سره پاته سوه او ده وويل يا يحيى بن زکريا قد علم ربي وربک ما اصاب قومک من اجلک" يعني ستا د قتل له سببه. او داغه رنګه خداى خبر دى قه ماقتل منهم فاهدر باذن ربک، نو وينه ودروه په اجازه د خداى ﷻ دمخه تردې چي ستا له قوم څخه هيڅ څوک نه پاتېږي، نو وينه ودربدل باذن الله تعالى او بيورزاذان قتل د بني اسرائيل متوقف کړى، او قومندان مذکور داسي وويل "آمنت بما آمنت به بنو اسرائيل وايقنت انه لارب غيره" او بني اسرائيلو ته يې وويل چي خردوش ماته امر راکړى دى چي بني اسرائيل تر هغو پوري وژنه چي وينې ددوى د عسکرو په منځ وبهېږي او زه نه سم کولاى چي دده نافرماني وکړم ولي چي ما في الحال وژني، نو ده بني اسرائيل امر کړه چي يو خندق وکني او خپل ټول مالونه که غوايي وي که آسان وي که پسون، بزې، خره او غاطري وي په دې خندق کي ذبح کړي او په ګډه به خداى ﷻ ته عجز وکړو چي يو څه باران پر دغو وينو ود اوروي تاچي دغه وينې د خردوش تر عسکرو پوري ورسېږي، دوى هغسي وکړه او وينه د خردوش تر عسکرو پوري ورسېدله. ملک خردوش خپل قومندان ته امر ورکړى چي د بني اسرائيلو قتل بس کړه دده داګمان ؤچي دا ټولي سرې اوبه د بني اسرائيلو وينې دي. ثم انصرف خردوش الى بابل اوبني اسرائيل تقريباً وفناً ته نژدې سوه، راوي وايي چي دويم او اخيري عذاب د خداى ﷻ دى چي پر بني

اسرائیلو نازل کړی وهو معنی قوله تعالی "لتفسدن في الارض مرتين" اول وار تسلط د بخت نصر او دده د فوج ؤ او دویم وار تسلط د خردوش او دده د لښکرو، دا دویمه پېښه تر اولي ډېره بالا وه، وروسته د بني اسرائیلو بیرغ ختم سو او سلطنت پر دوی وه رومیانو او یونانیانو ته په لاس ورغلی، لکن په بیت المقدس کي او په نواحیو کي ددوی ریاست ؤ لکن نه وجه بادشاهي "وکانوا في نعمة من الله" تر څو چي بیا یې احداث شروع کړه او د تورات احکام یې پسټ پشت وګرځول بیا خدای جلاله طیطوس بن اسیانوس رومي پر مسلط کړی، نو ددوی ښارونه یې تولـه ورمنهدم کړه او دوی یې وشړل او بیت المقدس داغسي خراب پاته ؤ او د بني اسرائیلو لـه لاس څخـه ریاست او بادشاهي تولـه ولاړه او پر دوی جزیه ولګول سوه، حتی چي عمر بن الخطاب رضي الله عنه او مسلمانانو د هغه وخت بنا د بیت المقدس په اعلی پیمانه تکمیل ته ورسول.

**پوښتنه**: طغیان د بني اسرائیلو او یرغل پر دوی څو په بخت نصر او خردوش سره ختم سوه، نو حمله پر دوی د طیطوس رومي او منهدم کول د بیت المقدس کومه مرة ده؟

**ځواب**: خدای جلاله وايي "وان عدتم عدنا" دا حمله د طیطوس رومي په دغه آیت کي داخله ده، والله اعلم. بغوي رح وايي چا چي دا روایت کړی دی چي بخت نصر د بني اسرائیلو سره جنګ هغه وخت کړی دی چي دوی یحیی بن زکریا علیه السلام قتل کړی. غلط روایت دی په نېز د اهل د علم سیرت. بلکي علماً د علم سیرت متفق دي پر دې باندي چي بخت نصر چي غزاً وکړه د بني اسرائیلو سره هغه وخت ؤ چي دوی شعیا علیه السلام په وخت د سلطنت د ارمیا او له وخت څخه د ارمیا او د تخریب د بیت المقدس تر مولد پوري د یحیی علیه السلام څلور سوه یو شپیته (۴٦١) کاله فاصله وه.

عَسٰى رَبُّكُمْ اَنْ يَّرْحَمَكُمْ ۚ وَاِنْ عُدْتُّمْ عُدْنَا ۘ

شاید خدای ستاسي "یا بني اسرائیل" وروسته تر دې عذابونو پر تاسي دي رحم وکړي "یعني کـه مـو ایمان راوړی بمحمد صلی الله علیه وسلم او عملونـه مـو خپل وکړه

باتباع احکام القرآن" او که تاسي عود وکړی و معصیت ته او مخالفة الرسول" موږ به هم وګرځو انتقام ته ستاسي.

**درویش وایي:** چي خدای ﷻ رحم وکړی پر هغو کسانو چي ایمان یې راوړی پر علیه الصلوة والسلام لکه عبد الله بن سلام او دده د اکا زامن ﷺ وکعب الاحبار من الیهود والنجاشي ﷺ من الحبشة چي نوم یې اصحمة و. او نجاشي په اصطلاح د حبشې و هر باچا ته وایي "وغیرهم من المؤمنین، او خدای ﷻ په بل ځای کي د قرآن عزیز ددوی صفت کړی دی بقوله تعالی "من اهل الکتاب امة قائمة یتلون آیات الله اناء اللیل وهم یسجدون" او په بل ځای کي بقوله تعالی "واذا سمعوا ما انزل الیهم تری اعینهم تفیض من الدمع" بنو قریضه او بني النضیر او یهودان د خیبر او د فدک په مخاصمت د علیه الصلوة والسلام یې لاس پوري کړی او دده مبارک د قتل اراده یې وکړه او جنګونه یې ورسره شروع کړه او په علیه الصلوة والسلام یې جادو وکړی او په خیبر کي دده په خوړو کي یې زهر ور اچولي وه، نو خدای ﷻ عود و انتقام ته ددوی وکړی چي بني قریضه ټوله په قتل ورسول سوه "بایدي المؤمنین" او بنو النضیر یې جلا وطنه کړه او پر دوی یې جزیه مقرره کړه.

وَجَعَلْنَا جَهَنَّمَ لِلْكٰفِرِيْنَ حَصِيْرًا ۝

او موږ ګرځولی دی دوږخ د کفارو لپاره.

**یوه سه:** "حصیر" محبس یا بندي خانې ته وایي. یعني په قیامت کي د کفارو دوږخ ابدي بندي خانه ده چي هیڅ وخت نه سي ځندي وتلای، او "حصیر" بوریا ته هم وایي چي خلګ یې اوار کړي او پر کښېني. والمعنی دوږخ ددوی لپاره بساط مفروش دی.

اِنَّ هٰذَا الْقُرْاٰنَ يَهْدِيْ لِلَّتِيْ هِيَ اَقْوَمُ

په تحقیق دا قرآن منزل ښوونه یعني ټوله انس او جن ته ده.

**یوه سه:** چي د "التي" موصوف طریقه ده یعني هغه لاري ته چي تر ټولو لارو

سمه او سيده ده يعني دين الاسلام. او دا احتمال سته چي موصوف د التي دي كلمة
وي يعني هغه كلمې ته چي اعدل الكلمات ده يعني "لا اله الا الله محمد رسول الله"

وَيُبَشِّرُ الْمُؤْمِنِينَ الَّذِينَ يَعْمَلُونَ الصَّٰلِحَٰتِ أَنَّ لَهُمْ أَجْرًا كَبِيرًا ۝

او دا قرآن زيري كوي (عطف دى پر يهدي) مؤمنانو ته هغه مؤمنان چي اعمال صالحه كوي په دې سره چي دوى لره يعني د آخرت ثواب سته لوى چي جنت دى.

**درويش وايي**: چي اجر يې په كبير سره موصوف كړى "لان الجنة فيها ما لاعين رئت ولا اذن سمعت ولاخطر على قلب بشر رزقنا الله تعالى واياكم هذه النعمة العظمى بمحض فضله.

وَأَنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ أَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ۝

**پوه سه**: چي ددې آيت سره "يخبر" محذوف سته. نو عطف دى پر مبشر باندې يعني دا قرآن خبر وركوي وهغو كسانو ته چي ايمان نه لري پر ورځ د آخرت يعني له بعث بعد الموت څخه منكر وي په دې سره چي موږ اراسته كړى ددوى لپاره عذاب درد وركونكى.

**فائده**: "اليم" كه څه هم فعيل لپاره د مجرد دى لكن دلته يې معنا د مفعل دى چي اسم فاعل له بابه د افعال دى. او بعض مفسران وايي چي فعيل په معنى د فاعل له بابه د مجرد دى يعني درد كونكى "والتوصيف به جار على المبالغة مثل ظل ظليل، وليل لئيل".

**درويش وايي**: چي دا دوه تأويله جاري دي په ټوله قرآن كريم كي چي توصيف د عذاب وسي په اليم سره "فلا تغفل واكتبهما على قرطاس العقل بمداد الحفظ.

**پوه سه**: چي مفسرين وايي چي قرآن د اسم الله الهادي مظهر دى. او قرآن كتاب الله الصامت دى، او رسول كريم ﷺ كتاب الله الناطق دى. له ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دى "اذ ارتم العلم فأثروا القرآن فان فيه علم الاولين والآخرين" ترجمه: كه تاسي علم غواړئ نو مختاره كړئ قرآن، يعني قرآن زده

کړئ په تحقیق سره. ولي چې په قرآن کي علم د اولینو او اخرینو سته.
درویش لفظ د تحقیق ووایه چې بعض ملایان د عصر حاضر د ټوله قرآن ترجمه په څلو ښت ورځي کي کوي "ولهذا نسب الامام الاعظم ابي حنيفة رحمه الله:
جميع العلم في القرآن لكن .......... تقاصرت عنه افهام الرجال
او ابن مبارک رح په مدح کي د امام اعظم رحمه الله یوه قصیده ویلې ده چې په طور د نمونه مشت خروار دا یو بیت واورئ:
فما بالمشرقين له نظير .......... ولا بالمغربين ولابكوفة
وروسته تر هغه بیت
لقد زان البلاد ومن عليها .......... امام المسلمين ابو حنيفة رح
وانما نقلت هذا على زعم انف الوهابية وغيرهم.
**حکایت**: بعض اهل الله عارفان وایي چې په قرآن کریم کي به داسې آیت پیدا کړم چې د هغه حدیث نبوي ﷺ تائید په وسي چې علیه الصلوٰة والسلام فرمایلي دي "يخرج روح المؤمن من جسده كما يخرج الشعر من العجين" وځي روح د مؤمن د ده د بند څخه یعني په وخت کي د قبض د روح لکه چې یو وېښته چې وزي د خمیرو اوړو څخه یعني لکه وېښته چې سړی د خمیر اوړو څخه کاږي هغه ډېر په اسانئ سره کښل کېږي دا رنګه روح د مؤمن د جسد څخه د ده په اسانئ سره وزي، عارف رحمه الله وایي چې قرآن مبارک مي په ډېر غور سره ختم لکن تائید د حدیث مذکور مي نه کی پکښې پیدا دی وایي چې مابنام ما علیه الصلوٰة والسلام په خوب ولېدی ما ورته وویل یا رسول الله خدای جل شانه په قرآن کریم کي فرمایلي دي "ولا رطب ولا يابس الا في كتاب مبين" او ما مؤید د حدیث مذکور په قرآن کریم کي نه کړی پیدا فقال علیه السلام "قد اطلبه في سورة يوسف" دی وایي چې زه چې د خوبه را بیدا سوم سورة یوسف مي قرائت کی هغه د حدیث شریف تائید مي په دغه آیت کي پیدا کی "فَلَمَّا رَأَيْنَهُۥٓ أَكْبَرْنَهُۥ وَقَطَّعْنَ أَيْدِيَهُنَّ"
**ترجمه**: چې هغه ښځي چې پر زلیخا په محبت د یوسف چې د دې مریبې ژ غیبت کاوه، نو دې هغه ټولي میلمنې کړې او مالتې یا نارنج چې په چاکو پوستېږي

او د دوی هرې یوې په لاس یې تېره چاړه ورکړه یوسف علیه السلام یې پر را وایستی دوی د یوسف علیه السلام جمال ته کتل سترګي یې په ده کې سوې چړې یې پر خپلو لاسو تېرولې د نارنج په ځای کي او د قطع الید په خوړوالي نه پوهېدلې، نو دا فکر ما وکړی چي جمال د یوسف علیه السلام دوی دونه بېهوښه کړې چي د قطع الید په درد نه پوهېدلې، نو چي څه رنګه ملکي د زکندن په وخت کي ده ته درختي د جنت او ځای د ده په جنت کي ورښکاره کړي او نعیم د جنت او حوري غلمان په ووښي، نو مؤمن په الم د قبض څه به په پوه سي.

**درویش وایي:** چي د دې حکایت څخه دا معلومه سوه چي د قرآن وظیفه دې سړی په کامل فکر او تدبر سره کوي ځکه چي علیه الصلوة والسلام نهي کړې دي د ختم د قرآن په کم تر درې ورځي.

## وَيَدْعُ الْإِنسَانُ بِالشَّرِّ دُعَاءَهُ بِالْخَيْرِ

او غواړي انسان یعني ښرا کوي چي د ده پاره شر وي ځان ته د غضب په وخت کي مثلاً داسي وایي خدایه ما په سترګو ړوند کې چي زه بیا دا اهل او عیال نه وینم یا اهل ته چي ښرا کوي چي درد ورسي زوی ته وایې په سترګو ړوند سي یا کور دي خراب سه، لکه دعا بالخیر یعني په جد سره مثلا "ربنا آتنا في الدنيا حسنة وفي الاخرة حسنة وقنا عذاب النار" الی غیر ذالک من الادعیة الحسنة. لکن خدای جل سلطانه د ده په حال خبر دی چي دی په دعا د شر راضي نه دی بلکه غضب یې باعث د دغه دعا شر ګرځېدلی ؤ، نو یې دعا د شر نه قبلوي.

**پوه سه:** چي واو د "یدع" چي په لفظ کي حذف کي په سبب د التقا د دوو ساکنو چي یو واو او بل لام د الانسان یې د خط څخه حذف کړی که څه هم قیاس ده خط نه دی لکن خلاف القیاس یې حذف کړي لمتابعة خط المصحف العثماني. یعني د انسان دا عادت دی چي ډېر درد ورسي وځان ته ښرا کوي او فرزند او ماینې ته هم ښرا کوي.

## وَكَانَ الْإِنسَانُ عَجُولًا ﴿١١﴾

او دی انسان تلواري چي هر څه پر زره ورغله هغه په خوله وایې او په عاقبت کي فکر نه وي. چي ما چي زوی ته وویل په سترګو ړوند سې مثلا دا دعا که

قبول سي عاقبت به يې څه وي، ابن جرير د ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت کړی دی چې مراد د انسان څخه آدم عليه السلام دی ولې د ده روح چې تر نامه پورې دی ولاړ هدی باره غوڅار سو ولې چې روح يې تر نصف اسفل پورې نه و رسېدلی، او بعض مفسرين وايې چې مراد د انسان څخه کافر دی او مراد د دعا څخه يې دعا بالعذاب ده استهزاً لکه دا قول د نضر بن الحارث" ان کان هذا (يعني دين الاسلام) هو الحق من عندک فامطر علينا حجارة من السماءٔ" ولې چې دا حق خو مور نه منو نو ته د خپل را استولي حق مکافات د مور څخه واخله "فضرب عنقه يوم بدر صبرا" يعني نه په جنګ کې بلکه ژوندې مسلمانانو ونيوی او عليه السلام د ضرب العنق امر ورکړی. علماً دين وايې چې تعجيل اول وار ابليس کړی دی چې خدای جلت حکمته دی مامور کی په سجده و آدم عليه السلام ته بالفور بيله فکر وهلو د خدای ﷻ په حکمت کې جواب ورکړی "انا خير منه" ابی واستکبر وکان من الکافرين" مګر په شپږ ځايه کې تعجيل واجب يا مستحب دی (۱) د لمانځه کول چې وقت يې داخل سي يعنې الوقت المستحب (۲) ودفن الميت اذا حضر يعني داسې به وايې چې فلانی نه دی راغلی يا زوی يې مثلاً د قندهار را روان دی چې هغه راسي بيا به يې دفن کړو (۳) نکاح د بکرې ښځې چې مرانې ته ورسېږي بالحيض اوالسن يعني "اذا وجد الکفو" داسې به نه وايې چې په درې لکه روپۍ يې ورکوم يا دونه مقدار روپۍ زه خورم او دونه روپۍ په لور خرڅوم (۴) اداً کول د پور دی چې مدت يې پوره سي يعنې دا به نه ورته وايې صبا راسه مياشت بعد راسه چې دې ته امهال وايې (۵) ژر دوډۍ ورکول مېلمه ته چې ستا کور ته راسي يعنې که څه هم ستا عادت دا وي چې ته دوډۍ پر (۱۲) بجو مثلاً د شپې خورې لکن مېلمه چې راسي د ښې دوډۍ تياره وه او مړوه يې ولې چې ته څه خبر يې چې دی به وږی وي (٦) تعجيل د توبې چې ګناه در څخه وسي. قال الشاعر الفارسي رحمه الله.

توبه بکن امروز تو هر گز مگو فردا کنم
شايد بميری صبحدم فردا نيابی درشمر

**درویش وایي**: چي واقدي رح په مغازي کې د مولی (یعني مربيي) د عائشة رضي الله عنها او مولی د مذکوره عائشة رضي الله عنها داسې یو روایت کړی دی په شان نزول کې د دې آیت چي یوه ورځ یو بندي (کافر) راوستی کوړته او ماته یې وویل چي فکر پر کوه چي ونه تښتي دا وایې چي یوه ښځه راغله زه د هغې په مجلس اخته سوم بندي ده فهم ځنځه ووتی او هغه بندي تښتېدلی ؤ علیه السلام چي وروسته کوړته راغلی او د بندي پوښتنه یې وکړه ما ورته وویل خبره نه یم زه ځندي غافله وم نو دی وتلی دی، نو علیه السلام په دې الفاظو ښرا راته وکړه "قطع الله یدک" او فوراً باندې ووتی او نعره یې وکړه چي فلانی بندي تښتېدلی دی خلګو ته یې وویل چي چابک پسې وګورئ او پیدا یې کړئ خپر بندي خو خلګو پیدا کړی، بیا چي مابنام علیه السلام ژما خوني ته راغلی ما لاس کړاوه ده راته وویل چي څه کوې ما ورته وویل چي د ښرا ځنځه بېربېږم چي کله به مي لاس قطع سي، نو علیه السلام دواړه لاس د دعا لپاره پورته کړه او داسي یې وویل "اني بشر اسف واغضب (عطف تفسیر دی) کما یغضب البشر فأیما مؤمن او مؤمنة دعوت علیه بدعوة، چي زه ښرا ورته وکړم کما یدل علیه لفظه علي "لانها للضرر کما ان لفظه لام یدل علی دعاً الخیر کما في قوله دعوت له" فاجعلها له زکوة ورحمة (وګرځوي هغه ژما ښرا د هغه د پاره پاکي د ګناه ځنځه او رحمت. والله اعلم بمراده في کتابه.

**درویش وایي**: چي ناقل دی صاحب د جرح او تعدیل نه دی.

## وَجَعَلْنَا الَّيْلَ وَالنَّهَارَ اٰيَتَيْنِ فَمَحَوْنَآ اٰيَةَ الَّيْلِ

او ګرځولې دي موږ شپه او ورځ دوې علامې د قدرت چي پر یوه نسق رواني دي که څه هم کال په کال میاشت په میاشت د خپل اسلوب ځنځه تغیر کول ممکن وه.

**یوه سه**: چي اضافت د آیت ولیل ته بیا نیه ده الآیة التي هي اللیل والمعنی "وجعلنا اللیل مظلمة" تاریکه.

**سوال**: شپه چي ټوله شپه سپوږمی تابان وي خو مظلمة نه وي؟

**جواب**: که څه هم سپوږمی وي لکن مځکه خو درنه نه سي روښانه کولای لکه ورځ کما هو ظاهر" للدواب ایضا"

وَجَعَلْنَا آيَةَ النَّهَارِ مُبْصِرَةً

او موږ گرځولې ده آيت چي ورځ ده (فالاضافة ايضا بيانية) روښانه که څه هم عامه ورځ وي، او يا معنی دا ده "مبصرة للناس للكسب والتجارة والاجرة لعموم الناس فلا يرد ما يتوهم فافهم"

**پوښتنه:** په بل ځای کي د قرآن کريم خدای ﷻ داسي ويلي دي "وجعلنا ابن مريم وامه آية" يعني لفظ د آية يې مفرد راوړی دی او دلته يې تثنيه راوړه حکمت يې څه دی؟

**ځواب:** ليل او نهار خو سره ضد دي او عيسیٰ او مور د ده خو سره ضد نه وه، او دا هم سبب کېدای سي چي عيسیٰ علیه السلام او مور د ده په يوه وخت کي سره جمع وه "بخلاف الليل والنهار لانها لا يجتمعان ابداً.

لِتَبْتَغُوا فَضْلًا مِّن رَّبِّكُمْ

چي تاسي ډلب کي فضلاً د خدای ﷻ

**درويش وايي:** چي دا فائده مشترکه ده ليل او د نهار، نو د فضل څخه مراد استراحت دی د شپې او ځان فارغه کول دي ولمانځه ده تهجد ته چي افضل د نوافلو لمنځو دی "لعدم دخل الرياٗ والسمعة فيها اللهم الا ان يضم اليها المتهجد بالليل الرياٗ والسمعة بالقول" لکه چي ووايې چي د شپې داسي وختي راوښن سوم يا اوړد رکعت نفل مي د شپې وکړی او غير ذالک او د ورځي فضل علاوه پر لمنځو د ورځي طلب دی معاش او نفقه د عيال "بالتجارة المختلفة النوع والاجرة وغيرها.

وَلِتَعْلَمُوا عَدَدَ السِّنِينَ وَالْحِسَابَ ۚ وَكُلَّ شَيْءٍ فَصَّلْنَاهُ تَفْصِيلًا ﴿١٢﴾

دا هم فائده مشترکه ده چي تاسي پوه سئ په سبب د اختلاف الليل والنهار په عدد د کلو چي يو قمري حساب دی چي په هغه پوري امور دينيه مربوط لکه روژه او حج وغير ذالک او په شمسي حساب پوري "پسرلی او دوبی" او مني مربوط دي او ژمی هم چي د دغه فصلو په پيژندلو امور د دنيا لکه کښت کرل

او پېښل الى غير ذالك اړه لري" او هغه کسان چې په شمسي حساب نه پوهېږي لکه مالداران او عوام د پښتنو او د عربو هغه بیا د پېروني او د ستورو د حساب څخه کار اخلي یا د قمري میاشتو څخه او مراد د حساب څخه مطلق حساب دی که د هفتو وي که د میاشتو او که وعده د پوروي او هر شی د امورو څخه د دین او د دنیا چې انسان ورته محتاجه وي موږ یې تفصیل کړی په قرآن کې تفصیل شافي او کافي او بیان واضح.

**فائده:** یوه سنه چې سنه شمسي عبارت ده د رسېدو څخه د لمر و هغه تقطې ته چې د هغه نقل سوی لکه په اوسني عرف کې اول د حمل، او سنه شمسي درې سوه او پینځه شپیته ورځې او یوه ربع الیوم، او سنه قمري (١٢) میاشتې قمري ده چې مدت یې درې سوه او څلور پنځوس ورځې او دریم د ورځې ده کذا في کتب الریاضي.

## وَكُلَّ إِنسَانٍ أَلْزَمْنَاهُ طَائِرَهُ فِي عُنُقِهِ

**یوه سه:** چې لفظ د کل منصوب دی علی شریطة التفسیر کذا في کتب النحو، ابن عباس ﷺ یې تفسیر داسې کړی دی چې مراد د طائر څخه عمل د انسان دی وما قدر علیه لازم د ده سره دی چې د ده سره دی چې د ده سره به ورسره وي تر څو چې د ده حساب کول کېږي، او حسن وایي چې یمنه و شومه.

**درویش وایي:** چې د دې درو (٣) تفسیرو مرجع ویو د شي ته ده.

**فائده:** د انسان څخه مراد انسان مکلف دی که مؤمن وي که کافر، که نر وي که ښځه که عالم او که امي، که باچا وي که رعیت، که حر وي او که مریی.

**فائده:** طائر په اصل کې مرغه ته وایي د عمله د انسان څخه تعبیر په طائر سره وسو د دې سببه ګویا د عمله د ده چې مکلف اختیار سره کړی وي یو مرغه دی چې د ځالګی څخه د غیب او د قدر آلهي را الوتی دی.

**فائده:** عنق غاړي ته وایي چونکه ځای د ښائست غاړه ده په غارګی او په امیل وغیره سره چې عبارت د نیک عمل څخه دی، او د غه رنګه ځای د بد نامی غاړه ده چې په غاړه کې د انسان تناو چې عمل یې بولي اچول کېږي چې عبارت د بد عمل څخه دی، نو هم د دې سببه په اعضاؤ کې د انسان غاړه مختاره کړه،

والحاصل چي بنه عمل او بد عمل لکه غاړکی یا طوق د ده سره لازم "لا ینفک عنه الی یوم الحساب" نو د دې آیت الفاظ مبني پر مجاز او استعاره دي.

بیت:　که هر نیک وبد که از من آید ....... قلاده وغل در گردن آید

په کشاف کي وایي چي دا تعبیرات بناً دي پر اصطلاح د عربو د جاهلیت چي دوی به د یوسفر یا تجارت اراده وکړه فال به یې په مرغه سره کاوه چي دا مرغه دوی زجر باله، نو دوی به مرغه د خپله ځای څخه زجر کړی، نو که دا مرغه به د چپه لاس د خوا د زاجر د راسته لاس وخواته تېر سو. نو دوی به دې نیک فالي کوله اوودې ته دوی سانح وایه. او که راسته لاس د خوا به وچپه لاس وخواته تېر سو دوی بد فالي په کوله او دې ته یې بارح وایه. فلما نسبوا الخیر والشر الی الطائر استیر استعارة تصریحة لقدره تعالی وعمل العبد لانه سبب الخیر والشر"

**درویش وایي**: چي دا تفسیر د کشاف د روح المعاني. او تفسیر مظهري او بیضاوي غوره کړی دی او روح البیان هم په اختصار سره اشاره ورته کړې ده حاصل دا دی چي په دې آیت کي د استعارة او مجاز څخه چاره نسته او معنا چي مراد ده هغه ظاهر ده د تفسیره د ابن عباس ﷺ وغیره "من قدماً المفسرین کما ذکرناه. ومع هذا یقول الفقیر: الله جل سلطانه اعلم بمراده في کتابه. او تفسیر ددې آیت چي د فقیر له توان څخه کېدی.

## وَنُخْرِجُ لَهُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ كِتٰبًا يَّلْقٰىهُ مَنْشُوْرًا ﴿١٣﴾

او مونږ به راوباسو هر انسان لپاره د حساب په ورځ د قیامت یعني چي ورځ د حساب او کتاب ده، یو کتاب یعني عملنامه چي حفظه کرامو په کښې ټول خیر او شر ذره په ذره بېله نقصه او زیادته نوشته کړي وي. چي دا انسان دا کتاب وویني او پیدا به یې کړي خلاص یعني چي انسان مړ سي عملنامه یې ملکې سره وړېچي یا په علیین کي یا په سجین کي یې جمع کړي او په ورځ د قیامت یې خلاصه و انسان ته ورکړي اما بیمینه و اما بشماله او خلف ظهره.

# اِقۡرَاۡ كِتٰبَكَ ؕ كَفٰى بِنَفۡسِكَ الۡيَوۡمَ عَلَيۡكَ حَسِيۡبًا ؕ﴿۱۴﴾

ووایه ته یعني ملکي به ورته ووایي "اقرأ آه" او یا به په عمل نامه کي دا نوشته وي کافي دی تا لره ستا ځان. نو با زائده ده والاصل کفی نفسک نحو کفی بالله الآیة" نته ورځ پر تا بانذي من حیث الحساب نو حسیباً تمیز دی له نسبت څخه د کفی ونفسک ته او علی متعلق دی په حسیباً پوري، او حسیب یا په معنی د حاسب دی لکه صریم په معنی د صارم دی او یا په معنا د کافي دی.

**سوال:** دا عمل نامه او دا وینا خو نر او ښځي دواړو ته ده، نو دوه ځایه کاف د تذکیر څرنګه راوړی؟

**ځواب:** نفس په معنی د شخص دی، شخص نر او ښځي دواړو ته شامل دی ولهذا حسیباً یې هم مذکر راوړی.

**سوال:** که یو سړی خالص امي ؤ خط ویل یې نه وه زده هغه به څه کوي؟

**ځواب:** له قتاده څخه روایت دی چي په ورځ د قیامت امي نسته.

**پوښتنه:** څه حکمت الهي دی خدای پاک تفویض د حساب په خپله و بنده ته وکړی؟

**ځواب:** تاچي حجت پر ده لازم سي دده په اقرار سره یا نسبت د ظلم و ملکو ته ونه کړي، له عمر ﷺ څخه روایت دی چي ده به خلګو ته ویل "حاسبوا قبل ان تحاسبوا" ابن اصبهاني له انس ﷺ څخه روایت کړی دی چي علیه الصلوة والسلام وویل چي یو سړي ته به کتاب منشور دده ورکړي، دی به وایي این حسناتي کذا وکذا چي ما یې عمل کړی ؤ او په صحیفه کي نسته. خدای پاک به ووایي ما محو کړی په سبب د غیبت ستا د خلګو یعني ستا له عمل نامي څخه محو سوی او ستا مغتاب صحیفي ته نقل سوی، بیهقي له انس ﷺ څخه روایت کړی دی قال رسول الله ﷺ چي عمل نامي ټولي محفوظ دي تحت العرش چي ورځ د قیامت سي او یو باد به خدای پاک پیدا کړي چي ټولي عمل نامي چاته په راسته او چاته په چپه لاس کي ورکړي، یو محقق شاعر وایي:

تو نمیدانی حساب روز و شام ..... پس حساب عمر چون گویی تمام
زین عملها می بر ند نهج صواب ..... نیست جز شرمند گی روز حساب

**تنبیه**: د آیت فوق یعني "وکل انسان الزمناه الی ههنا" چي تاسي واورېدی او اختلاف د مفسرینو متقدمینو او متأخرینو هم تر نظر تېر سو او دده مجاز او استعارة په خلاصو دروازو کي هم داخل سواست، دا همه او تولـه د قرآن کریم معجزه ده او د فوق العادة بلاغت یوه نخښه ده، ولي چي په وخت کي د جاهلیت اوو ناموړو شعراؤ یو په بل پرله پسې اووه قصیدې جوړې کړې لپاره د فوقیت خپل په بلاغت کي د هرې قصیدې د یو شاعر بل شاعر یې مقابله بالمثل وکړه حتی چي اووه ته ورسېدې او د قرآن مبارک د یوه سورت مقابله او اتیان بالمثل چا ونه کړی، او هغه اووه قصیدې په یو کتاب کي د ادب عربي سره جمع دي چي نوم یې سبع معلقات دی چي په بعضو مدارسو کي په نظام درسي دا کتاب اوس هم موجود او داخل دی اما په هیڅ یو بیت کي دومره مغلقات او اختلافات او استعارات او مجازات نسته لکه په متلوه آیت کي چي مو واورېدلـه. وهذا نموذج من بلاغة القرآن الکریم الخارج من طوق البشر سورته فضلاً عن الکل مع کونه نازلاً علی النبي العربي الامي ﷺ.

**مَنِ اهْتَدٰى فَإِنَّمَا يَهْتَدِيْ لِنَفْسِهٖ**

که څوک پر راه راست برابر عمل وکړي دا اهتدأ ده د خپل ځان لپاره وکړه، ولي چي ثواب یې وده ته راجع دی او دده په اهدأ بل څوک لـه عذاب څخه نه خلاصېږي، مصرعه: پسر نوح بابدان بنشست ....... خانه نبوتش گم شد
یعني د نوح نبي علیه السلام په کمال اهتدأ سره کنعان دده زوی له عذابه خلاص نه سو.

**وَمَنْ ضَلَّ فَإِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيْهَا ۚ وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ أُخْرٰى ۗ**

او که څوک د گمراهی پر لار روان سي یا د کفر یا معاصي نو ضرر د ضلال وده ته راجع دی دده ضلال و بل چا ته سرایت نه کوي (ولي چي ضلال د آذر دده زوی ابراهیم علیه السلام ته تجاوز ونه کړی، مصرعه: گل از خارست ابراهیم ز آذر) او نسي

حمل کولای یو نفس گناه کار گناه د بل نفس.

**پوښتنه:** په حدیث صحیح کې راغلي دي چې که په اسلام کې یو سړی د یو ښه کار قانون مروج کړي، نو ده لره ثواب د هغه قانون سته. او ثواب د هغه چا چې دده په ښه قانون سره عمل وکړي الی یوم القیامة بېله دې چې د هغو له ثوابو څخه یو شی کم کړي، او داغه رنګه که په اسلام کې یو چا بد قانون رواج کړي فله وزرها (نو ده لره عذاب د هغه قانون دی) ووزر من عمل بها الی یوم القیامة (او عذاب د هغه چا دی چې دده پر طریقه عمل وکړي) من غیر ان ینقص من اوزارهم شیئاً، نو له اولې برخې څخه د حدیث مذکور دا معلومه سوه چې د بل د اهتدا نفع وسړي ته رسېږي فکیف توجیه فانما یهتدی لنفسه. او د دوهمې برخې څخه د حدیث مذکور دا معلومه سوه چې د بل گناه کاره بار پر اول گناه کار لوېږي فکیف توجیه قوله فانما یضل علیها وتوجیه قوله ولاتزر وازر آه؟

**ځواب:** په اوله برخه کې د حدیث چې واضع الطریقة الحسنة ثواب د من عمل بها رسېږي دا خو دده خپل فعل ثواب دی چې وضع الطریقة ده نه د بل د فعل ثواب او په دویمه برخه کې د حدیث هم ورته جواب دی فتفکر تدرک.

## وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِينَ حَتَّىٰ نَبْعَثَ رَسُولًا ﴿١٥﴾

موږ عذاب نه ورکوو چا ته تر هغو چې رسول ورواستوو. یعني دوی انکار څنې کوي، روح البیان ای وماصح وما استقامنا (نه ده صحیح او نه ده مستقیمه زموږ له خوا) بل استحال في عادتنا المبنیة علی الحکم البالغة ان نعذب احداً من اهل الضلال والاوزار اکتفاً بقضیة العقلي (بلکې محال ده په عادت کې زموږ چې مبني دی پر لویو حکمتو او مصالح چې موږ دی په عذاب کویو څوک له اهل څخه د ضلال او کفر یا گنهو والا په سبب د اکتفا په حکم د عقل لکه معتزله چې وایي یهدیهم الی الحق ویردعهم عن الضلال ویقیم الحجة ویمهد الشرائع قطعاً للمعذرة والزام الحجة (چې دا رسول ودوی ته هدایت وکړي او دوی منع کړي له کفر څخه او حجت پر دوی قائم کړي او د احکام شرعیه وو تمهید او بیان ورته ونه کړي تاچې قطع د عذر د دوی وکړل سي یعني په ورځ د قیامت هلا بعثت الینا رسولاً

تبعه، او پر دوى حجت د رسول د بعثت قائم سي) ثم قال وفيه دلالة على ان البعثة واجبة لا بمعنى الوجوب على الله بل بمعنى ان قضية الحكمة تقتضي ذالك لما فيه من الحكم والمصالح" په دې قول کې د خدای ﷻ دلالت پر دې دی چې بعثت د رسول واجب دی نه په دې معنی چې پر خدای ﷻ بعثت واجب دی ولې چې پر خدای ﷻ هيڅ شی نه دی واجب بلکې په دې معنی چې حکم د حکمت الهي دغه يعني بعثت الرسول غواړي، ولې چې حکمتونه سته او مصالح د بندگانو پکښې نغښتي دي انتهى عبارة روح البيان مع الترجمة. امام مظهري وايي د رسول د استولو په فائده کې "يبين الحجج ويمهد الشرائع فيلزمهم الحجة آه وقدم الترجمة لهذا القول" يا مظهري ويلي دي چې شافعي ددې له کبله وايي چې په دې آيت کې دليل پر دې دی انه لاوجوب لشيئ قبل البعثة بالعقل نو هغه چا ته خدای پاک عذاب نه ورکوي يعني نه په دنيا او نه په آخرت کې چې دعوت نه وي ورسېدلی (لکه ياجوج او ماجوج وغيرهما) نه پر شرک او نه پر نورو گنهو (لان العقل لغو عنده في ايجاب شيئ على العبد والدعوة لم يبلغه فهو معذور) او امام اعظم رحمه الله وايي چې حاکم خو خدای ﷻ دی "يعني بالوجوب والحرمة وغيرهما" لكن عقل قد يدرك بعض ماوجب عليه وهو ان للعالم خالقاً واحداً منزهاً عن العيوب والنقائص كما قال الشاعر الفارسي:

گر انبيا هم نامدی فی شرع بودی درجهان
واجب شدی بر مؤمنان ايمان به خالق مقتدر

ولې چې وجود د خالق واحد مقتدر منزه عن العيوب والنقائص له دلائل جمة في الانفس والآفاق فمن له عقل سليم يدرک ذالک. قال السعدي الشيرازي:

برگ درختان سبز درنظر هوشيار .... هر ورقی دفتريست معرفت کردگار

له يو اعرابي څخه چا پوښتنه وکړه چې څه دليل سته پر وجود د خالق العالم؟ ده ورته وويل البعرة تدل على البعير واثار الاقدام على المسير فكيف لايدل هذا العالم الكبير على العالم الخبير. قال فهذه الامور غير متوقفة على الشرع والا لزم الدور لان الشرع يتوقف على هذه الامور. قال فيجب على الانسان هذه

الامور قبل بعثة الرسل ویعذب المشرک وان لم یبلغه الدعوة.

**فائده:** ددې مدعی دلیل هغه حدیث د بخاري او مسلم دی چي علیه الصلوٰة والسلام وویل چي خدای ﷻ وواییي "یعني په ورځ د قیامت" یا آدم؟ فیقول لبیک وسعدیک والخیر کله بیدیک" جلا کړه برخه د دوزخ "یعني له خپل اولاد څخه" آدم علیه السلام ورته وواییي مابعث النار "څومره ده حصه او برخه د اور "خدای پاک وواییي چي په زر کي (۹۹۹) برخه د اور ده، صحابه کرامو ﷺ وویل اینا ذالک الواحد" یعني چي له زرو څخه نهه سوه نهه نیوي جلاسي څو یو پاتېږي هغه واحد به نو څوک په موږ کي وي؟ ددوی خیال دا ؤ چي له اهل اسلام څخه به له یوه زر څخه نهه سوه نهه نیوي د دوزخ برخه ده، نو ځکه یې وویل اینا ذالک الواحد، علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل ابشروا "خوشاله اوسئ" چي ستاسي د یوه رجل په مقابل کي نهه سوه نهه نیوي د یاجوج او ماجوج یعني هغه حصه د اور ده ستاسي په مقابل د یوه سړي، وجه الاستدلال بهذا الحدیث ان یاجوج وماجوج رجال وراَ السد (ای سد الاسکندر) لم یبعث فیهم رسول ولم یبلغهم الدعوة فلولا التعذیب علی الشرک قبل بعثة الرسول لما عذبت یاجوج وماجوج.

**درویش وایي:** چي تر دې وروسته مظهري رح خبره په اوراقو اوږده کړې ده کما هو دیدنه، صاحب المدارک وایي ددې آیت په تفسیر کي ما صح منا ان تعذب قوماً عذاب استیصال في الدنیا الا بعد ان نبعث الیهم رسولاً فتلزمهم الحجة انتهی، قال روح المعاني في تفسیر هذه الآیة وما کنا آه ای وماصح وما استقام منا بل استحال في سنتنا "ای عادتنا" المبنیة علی الحکم البالغة او ماکان في حکمنا الماضي "یعني في الامم الماضیة" و قضائنا السابق "في اللوح المحفوظ" ان نعذب احداً بنوع من العذاب دنیویاً کان او اخرویاً" چي موږ دي په عذاب کوو یو څوک په یو قسم له عذاب څخه که د دنیا وي او که د اخرت وي.

**درویش وایي:** چي له دې عبارت څخه د روح المعاني ښکاره ضعف د ما قال صاحب المدارک کمامر آنفاً چي ده عذاب مقید کړی ؤ په استیصال في الدنیا سره فافهم "علی فعل شيئ او ترک شيئ (پر فعل د یو شي لکه عبادت د بتانو یا زنی

وغيرهما او يا پر ترک د يو شي لکه ايمان يا لمونځ وغيرهما) اصلياً كان او فرعياً (كه اصلي وي دا فعل او ترک لکه ايمان او عبادة الاصنام اوكه فرعي وي لکه لمونځ او شراب خوري بعد الحرمة) حتى نبعث رسولاً يهدي الى الحق ويرد عن الضلال ويقيم الحجج ويمهد الشرائع وقد مر معنى هذه العبارة فتذكر.

**درويش وايي:** چي وروستنه صاحب د روح المعان ډېري اوږدې په اوراقو خبري کړي دي او سوالونه او ځوابونه يې رانقل کړي دي پر نورو مفسرينو چي د هغو په نقل کي وه مطالعه کوونکو ته د تفسير ايوبي هيڅ فائده او ګټه نسته. له هم دې سببه چي زړ خپل د تفسير متعلمين په تشويش کي نه واقع کوم. هغه د روح المعاني نقض او ابرام او طويل بيان مي نه کړی رانقل.

**تنبيه:** حاسدان به وايي چي په هغه طويل بيان به نه پوهېدلې چي نه دي کړی رانقل؟

**ځواب:** په صحيح وجه په پوهېدلم لکن ستا کم عقل مراعات مي وکړی والله جل سلطانه اعلم بمراد عباده.

**مسئله:** حنيفيان وايي چي مشرک ته عذاب د شرک ورکول کېږي که عاقل بالغ وي قبل ان تبلغه الدعوة كما يدل عليه قوله تعالى "ان الله لا يغفر ان يشرك به" فانه عام غير مقيد ببلوغ الدعوة كما لا يخفى.

القول الفصيل: عدم تعذيب قبل بعثة الرسل مخصوص بالمعاصي كالزنى واللواطة وترک الصلوة والصوم مثلاً دون الشرک لقوله تعالى "ان الله لا يغفر ان يشرک به ويغفر مادون ذالک لمن يشا" فتقدير ماكنا معذبين على المعاصي حتى نبعث رسولاً يبين لهم مايتقون. او بعض مفسرين وايي چي رسول دوه قسمه دی، يو رسول البشر دی کماهو المعلوم او يو رسول باطن دی چي عقل صحيح دی، ولي چي عقل هم د خدای ﷻ را استول سوی استازی دی چي بعض خير او شر په ده سره پېژندل کېدای سي بدون رسول البشر لکه وجود د خالق للعالم وتوحيده وتنزيهه كماهو، نو هغه واجبات چي په ادراک کي د عقل کافي وي كالمذكور خدای ﷻ عذاب ورکوي و عقل ته د هغو پر ترک باندي.

**تفريع**: له دې ايت څخه دا معلومه سوه چي خدای ﷻ عذاب نه ورکوي و لېونيانو ته او و کوچنيانو ته چي دوی ته تبليغ نه رسول البشر کړی وي او نه عقل کامل، که څه هم دا لېونيان او کوچنيان اولاد د مشرکانو وي، کريمه "ولاتذر وازرة وزر اخری" او بخاري له سمرة بن جندب ﷺ څخه په يوه حديث طويل کي نقل کړی دی چي عليه الصلوة والسلام پر يو شيخ باندي تېر پدی چي تر درختي لاندي ناست و، او دده شاوخوا کوچنيان ناست وه، نو جبرئيل و عليه الصلوة والسلام ته وويل "هذا ابراهيم عليه السلام وهؤلاء (يعني دغه اطفال) اولاد د مسلمانانو او مشرکانو دي، اصحابو کرامو ﷺ و عليه الصلوة والسلام ته وويل "واولاد المشرکين؟ قال نعم و اولاد المشرکين.

**يوه سه**: چي طيالسي له حضرت انس ﷺ څخه روايت کړی دی چي له ده څخه چا پوښتنه وکړه د اطفال المشرکين په باره کي، انس ﷺ ورته وويل قال رسول الله ﷺ لمن يکن لهم سيئات فيکونوا من اهل النار (ولي چي دوی مکلف نه وي) ولم يکن لهم حسنات فيجازوا بها (چي دوی ته دي داسي ثوابونه ورکړي لکه د نوور جنتيانو، نو دوی خادمان د نورو جنتيانو دي، ومثل هذا اخرج ابن جرير عن سمرة او د ابن مسعود ﷺ څخه هم ورته روايت راغلی دی.

**فائده**: امام جلال الدين السيوطي رحمه الله وايي چي اختلاف قديماً وحديثاً جاري دی په اطفالو کي د مشرکانو پر پينځه قوله (۱) اول دا چي دوی به په اور کي دي تبعاً لابويهم، او پر دې قول چي بعض علماؤ آحاديث راوړي هغه تول ضعيف دي دليل نسي کېدای (۲) دوی به په جنت کي وي (۳) يو قول دادی چي دوی به خادمانو د جنتيانو وي، مظهري وايي چي دا دوه قوله تعارض نه سره لري، ولي چي خادمان د اهل جنت خو به خود په جنت کي وي (۴) دا اطفال به په مشيت کي د خدای ﷻ وي لايحکم عليهم بشيئ من الجنة والنار، دا قول منقول دی د حماد او ابن المبارک و ابن راهويه والشافعي او امام نسفي دا قول د ابو حنيفه روايت کړی دی رحمهم الله تعالی اجمعين مبنی ددې قول پر احتياط د مظهري وايي چي صحيح داده چي دا حکم منسوخ دی پر دې ده دلائل راوړي دي

(۵) له دې څخه امتحان اخستل کېږي په ورځ د قيامت. مظهري وايي چي دا قول خامس له ضروریاتو څخه د دین خلاف دی. په دلیل د هغه حدیث چي روایت یې احمد، ابوداود او حاکم رحمهم الله په سند صحیح سره له عائشي رضي الله عنها څخه کړی دی قالت قال رسول الله ﷺ رفع القلم عن ثلاثة. عن المجنون المغلوب على عقله حتى يبرء، وعن النائم حتى يستيقظ، وعن الصبي حتى يكبر (رسول الله ﷺ وايي چي د تکليف الهي قلم پورته دی له درو کسانو څخه چي يو يې لیوني دی چي عقل یې مغلوب وي، یعني په شي يې سر نه خلاصېږي تر هغو پوري چي جوړ شي، او له بیده څخه تر هغو پوري چي دی ویښ شي، یعني که نائم په خوب کي کلمه د کفر ووايي نه کافر کېږي، او د کوچني یعني نابالغ څخه قلم پورته دی تر څو چي لوی شي. وكذا روى عن علي وعمر رضي الله عنهما بسند صحيح، او قریب اللفظ و حدیث مذکورته چي روایت یې احمد، ابو داود، نسائي، ابن ماجه او حاکم رحمهم الله د عائشي رضي الله عنها څخه روایت کړ دی چي حاکم یې سند صحیح ګڼلی دی راغلی دی. او دا غه رنګه په صحیح حدیث کي راغلي دي چي که څوک قصد د بد کار وکړی نه دی په ماخوذ چي عمل د هغه کار ونه کړي، نو څرنګه به ماخوذ سي چي نه قصد صحیح لري او نه په پوهېږي یعني مجنون او نائم او صبي. او آیت کریمه هم ددې تائید کوي لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا لَهَا مَا كَسَبَتْ وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ "وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَانِ إِلَّا مَا سَعَىٰ".

**فائده:** امت مرحومه پر دې خبره اجماع کړې ده چي موقوف علیه د تکلیف الهي عقل او بلوغ دي، او سیوطي وايي چي بعض علماً وايي چي اطفال د مشرکینو به په برزخ کي دي بين الجنة والنار او بعض وايي چي وروسته تر بعث خاوري کېږي پر دې دوو قولو هیڅ دلیل نقلي یا عقلي نشته.

**فائده:** اولاد د مسلمانانو اجماعاً په جنت کي به وي وهذا تحقيق هذا المقام والعلم عند الله تعالى.

وَإِذَآ أَرَدۡنَآ أَن نُّهۡلِكَ قَرۡيَةً أَمَرۡنَا مُتۡرَفِيهَا

هغه وخت چې موږ اراده وکړو چې هلاک کړو يوه قريه يعني اهل د قريې،

**پوه سه**: چې قريه په اصطلاح د قرآن وطن ته وايي که بلد او که بلاد وي او که کلي وي، نو موږ امر کوو هغه کسان چې جبابره او شتمن او سرداران د هغې قريې وي. پر ژبه د رسول ددوی کما قال قبل ذالک وما کنا معذبين حتى نبعث رسولاً. روح المعاني وايي هذا بيان لکيفية وقوع العذاب بعد البعثة يعني کما ذکر في السابقة.

**پوه سه**: چې مراد له ارادې څخه هغه اراده ازليه ده چې متعلق په وقوع پورې دې مراد وي په خپل وقت مقدر کې. ولې چې په منځ کې د شرط او د جزا مقارنة في الزمان شرط دی. والارادة الازلية لايقارنها الجزا وهو قوله ففسقوا، او نه مراد دی وجود د اراده بالفعل اذ لايتخلف عنها المراد بلکې مراد نږدې والی دی د هلاک د قريې.

فَفَسَقُواْ فِيهَا فَحَقَّ عَلَيۡهَا ٱلۡقَوۡلُ فَدَمَّرۡنَٰهَا تَدۡمِيرٗا ﴿١٦﴾

نو دوی فسق مختار کړی يعني طاعت د خدای جل جلاله ته غاړه نه ايږدي او په خپل عصيان کې تمرد پر کار واچوي. "کما هو ديدن وعادة المترفين والجبارين" نو ثابت سي پر دوی هغه کلمه سابقه په راتګ سره د عذاب پر دوی. حسين کاشفي وايي: پس واجب شود بر اهل آن ده کلمه عذاب. که سبقت ګرفته درحکم ازلي موجب عقوبت شدند "فدمرناها تدميراً" نو موږ هلاک کړو دا قريه په اهلاک د اهل ددې بالاستيصال.

**پوښتنه**: سرکښي د خدای جل جلاله له حکم څخه او د رسول له دعوت څخه خو مترفينو کړې وه يوازې نو عذاب د استيصال پر ټولو که مترفين وي او که غير ددوی خوار او غريب خلګ وه څرنګه مسلط سو؟

**ځواب**: خوار او غريب خو د مترفينو په متابعت هم کفر او عصيان کاوه او بل ځواب دا دی چې په حديث شريف کې چې بخاري له ام حبيبه بنت ابي سفيان زوجة النبي ﷺ. او هغې له زينب بنت جحش زوجة النبي ﷺ کړی دی چې عليه الصلوة والسلام ورغلی د زينب رضي الله عنها حجرې ته او فزع ؤ يعني اثار د ويرې يې پر

چهره مبارکه ښکاره وه، او علیه الصلوة والسلام داسي ویلنه "لا اله الا الله ویل للعرب من شر قد اقترب (یو شر چي اوس نژدې سوی دی) فتح الیوم من ردم یاجوج وماجوج (چي خلاص سو نن دده له دېوال څخه د یاجوج او ماجوج چي اسکندر ذو القرنین جوړ کړی ؤ) مثل هذه وحلق باصبعیه الابهام والتي تلیها (دومره قدر چي علیه الصلوة والسلام خپله بټه ګوته او ورته څرمه ګوته سره حلقه کړه) نو زینب ﷺ ورته وویل "یا رسول الله ﷺ انهلک وفینا الصالحون؟ قال علیه الصلوة والسلام نعم اذا کثر الخبث.

**درویش وایي:** چي پر دغو الفاظو چي ما حدیث رانقل کړی یعني انهلک وفینا، بصیغة المتکلم په بخاري کي موجود دی، او په تفسیر مظهري کي ایهلک وفیها، بصیغة الغائب، شاید دا غلطي به د کاتب وي والا فالمظهري محدث جلیل، او روح المعاني هم دا حدیث په صیغه د متکلم راوړی دی.

## وَكَمْ اَهْلَكْنَا مِنَ الْقُرُوْنِ مِنْ بَعْدِ نُوْحٍ

کلمه د "کم" خبري مفید د کثرت ده یعني ډېر له قرونو څخه موږ هلاک کړي دي، او "من" من القرون بیان او تمیز د کم دی لما فیه من الابهام، وروسته تر نوح علی نبینا و علیه الصلوة والسلام لکه قوم عاد او ثمود وغیرهم.

**یوه سه:** چي راغب اصفهاني وایي چي قرن هغه قوم ته وایي چي په یوه زمانه سره جوت وي. او په قاموس کي وایي چي قرن کل امة هلکت فلم یبق احد او بعض مفسرین وایي چي قرن هغه خلګو ته واي چي ولادت یې تقریباً په یوه زمانه کي وي او انقضاً د قرن داده چي د هغو یو نفر ژوندی پاته نه وي. او په مقدار کي د قرن لوی اختلاف دی عبد الله بن ابي اوفی وایي چي یوسل شل (۱۲۰) کاله دی، او کلبي وایي چي اتیا کاله یې مده ده، او ابن سیرین وایي چي څلوېښت کاله ده. او په حدیث مرفوع کي راغلي دي چي رسول الله ﷺ و یو ځاته دعاً وکړه عش قرناً، نو هغه سل کاله ژوندی پاته سو. او بعض وایي یوسل شل کاله ژوندی ؤ. حنیفیان په مدت کي د مفقود چي له کوره ورک وي درک یې نه وي معلوم نیوي کاله (۹۰) تاکلي دي. لکن صحیح روایت سل کاله

ده يعني دومره وخت د مفقود د عمر تېر سي كه يې مال درلودئ ورثه دې تقسيم كړي. او كه يې ماينه درلوده هغې ته د بل مېړه نكاح روا ده.

**پوښتنه**: چې له عجيبه وو څخه د اختلافاتو اختلاف دی په مدت كې د قرن لس كاله شل كاله دېرش كاله څلوېښت كاله پينځوس كاله شپېته كاله اوويا كاله اتيا كاله سل كاله يوسل شل كاله كذا في القاموس. واما قرن الصحابة ﷺ وقرن التابعين رحمهم الله، نو قرن د صحابه وو ﷺ دادی چې په حال كې د اسلام يې عليه الصلوة والسلام ليدلی وي رؤية حقيقية او حكمية لكه عبدالله بن ام مكتوم چې په سترګو ړوند و طالت صحبته مع رسول الله ﷺ او قصر روى عنه الحديث او لم يروى. او تابعي هغه څوک دی چې يو ياد پر صحابه كرام ﷺ د رسول الله ﷺ يې ليدلي وي والتفصيل في شرح نخبة الفكر، وايضًا في مقدمة البخاري لاحمد علي السهارنپوري رحمه الله.

**فائده**: په دې آيت كې ېېرول دي د كفارو د مكې.

**پوښتنه**: داسي نه وويل سول من بعد آدم لان نوحًا اول نبي چې قوم يې مبالغه په تكذيب كې دده وكړه مع طول مكثهم فيهم. او قوم دده اول قوم دی چې د خدای ﷻ د عقوبت عظمى ګرځېدلی دی وهو الغرق بالطوفان لان نوحًا دعى عليهم بقوله "رب لاتذر على الارض من الكافرين ديارًا" الآية.

**ځواب**: هغه دی چې تېر سو من قوله لان نوحًا آه.

**پوښتنه**: نوح عليه السلام سره د طول مكث او د رنج او تكليف ليدلو د قوم، ولې په اخير كې ده ښېرا د استيصال دوی ته وكړه؟

**ځواب**: له جهته د نااميدی ددوی له ايمان څخه قال الله تعالى لا يؤمن قومك الا من آمن.

وَكَفَىٰ بِرَبِّكَ بِذُنُوبِ عِبَادِهِۦ خَبِيرًۢا بَصِيرًا ﴿١٧﴾

كافي دی تا لره رب ستا، په ګنهو سره د بندګانو دده، تنبيه" حرف جر متعلق دی په مابعد سره على طريقة التنازع لخبيرًا وبصيرًا فيه، "خبيرًا" خبر دی كه څه هم پټ د زره ګنهونه وي "بصيرًا" يعني ليدونكی دی ای عالم بظاهر ذنوبهم،

لکن سره د هغه به پر دوی پرده د ستر غوړولې ده. امهالاً لا اهمالاً.

**پوښتنه**: خبیر خو متعلق دی په غیب سره وهو مافي صدورهم من العقائد الفاسدة والنیات الکاسدة. او بصیر متعلق بالمعاصي الظاهرة من اقوالهم وافعالهم. نو د حکمت لپاره خبیر پر بصیر د مخه راوړه سو؟

**ځواب**: متعلق د خبیر چې عقائد باطله دي او نیات فاسده دي سبب دی د معاصیو ظاهره وُ.

**فائده**: په دې آیت کي اشاره ده ودې ته چې بعث د رسولانو او امر ونهي لپاره د تحصیل د علم الهي نه دی په معاصیو سره ددوی لانه تعالی عالم في الازل بها بلکي لپاره د الزام الحجة پر دوی وقطع اعذارهم یوم القیامة. لولاذالک لقالوا هلا ارسلت الینا رسولاً.

**فائده**: په دې آیت کي تهدید او بېرول دی د کفارو خصوصاً مشرکی مکة شرفها الله تعالی. یو محقق شاعر وایي:

مرد ر کا ر ها چو کرد نظر .......... بهره اعتبار ازان برداشت
هرچه ازان سود مندبود گرفت .......... هر نا سو د بو د گذاشت

سعدي شیرازي وایي:

پند گیر از مصائب دیگران ........... تا نگیرند دیگران زتوپند

علماً دین په یوه خوله وایي چې لوی عاقل سړی هغه دی چې له بل شخخه عبرت واخلي. لقمان حکیم ته چا وویل چې دا دومره پوهي تا له چا څخه زده کړه؟ ده ورته وویل چې له جاهلانو څخه! هغه ورته وویل چې څرنګه؟ لقمان ورته وویل چې جاهل چې به یو قول یا عمل وکړی او خلګو به بد پر وویل ما هغه قول یا عمل نه کاوه.

مَنْ كَانَ يُرِيْدُ الْعَاجِلَةَ عَجَّلْنَا لَهٗ فِيْهَا مَا نَشَآءُ لِمَنْ نُّرِيْدُ

هغه څوک چې اراده لري د نعم د دنیا او عیش او استراحت دنیوي چې همت یې ټوله پر دې فاني نعمتو حصر کړي وي، ژر به ورکړو موږ وده ته په دنیا کي هغه شی چې زموږ اراده ورته وسي ټوله هغه چې دی یې تمنی لري یا بعض د

هغو يعني زما اراده کارفرماده نه دده غوښتنه "لمن نريد" وهغه چاته چي زموږ
ورته اراده سي دا قيد بدل بعض دی د "له" ددې قيد فائده داده چي هر سړی تو لـه
متمنی دده نه ورکول کيږي.

**درويش وايي:** چي وهذا شان الکافر کمايدل عليه مابعده.

## ثُمَّ جَعَلْنَا لَهُۥ جَهَنَّمَ يَصْلَىٰهَا مَذْمُومًا مَّدْحُورًا ﴿١٨﴾

وروسته گرځوو موږ ده لره يعني په اخيرت کي دوږخ چي دی به داخليږي په
اور کي د دوږخ په داسي حال کي چي بدوي اولېږي وي له رحمت څخه د خدای.

**فائده:** د اخيس الهمة خلگ دي په دې ډله کي کفره داخل دي او هم رياکاره او
هم مجاهدين لطلب الغنيمة او مهاجران د دنيا لپاره او هم اهل نفاق.

## وَمَنْ أَرَادَ الْآخِرَةَ وَسَعَىٰ لَهَا سَعْيَهَا وَهُوَ مُؤْمِنٌ

او څوک چي اراده لري د نعمتو د اخيرت من الجنة وحورها وقصورها
ومرضات الله او دی کوشش کوي د اخرت لپاره هغه کوشش چي مناسب وي د
طلب د آخرت سره چي اوامر د خدای ﷻ پر ځای کوي او له منهياتو څخه د دين
ځان ژغوري لابمجرد تمنى نعم الآخرة بدون العمل لها "وهو مؤمن" الواو للحال
والمراد بالمؤمن الکامل لاشرک معه ولانفاق ولاريا والسمعة وذالک هو العمدة
في طلب نعيم الآخرة.

**درويش وايي:** چي دا خلگ عالي الهمة خلگ دي. مرزا غالب وايي:

همت بلند دار که نيزد خدا و خلق ..... باشد باعتبار همت تو اعتبار تو

دا باران چي پر همه وو مځکو اوري ..... معتبر يې کړی ذات د کيميا ولي

## فَأُولَٰئِكَ كَانَ سَعْيُهُم مَّشْكُورًا ﴿١٩﴾

دغه کسان چي دا درې شرطه پکښې وي من ارادة الآخرة والسعي الجميل
لها والايمان د سعي ددوی مقبول عند الله فان الشکر اذا نسب الى الله ﷻ کان
بمعنى حسن القبول عنده تعالى.

كُلًّا نُّمِدُّ هٰٓؤُلَآءِ وَهٰٓؤُلَآءِ مِنْ عَطَآءِ رَبِّكَ ۚ وَمَا كَانَ عَطَآءُ رَبِّكَ مَحْظُورًا ﴿٢٠﴾

هر يو له دې دوو ډلو څخه، نو تنوين د "كلا" عوض له مضاف اليه څخه دی "نمد" موږ مرسته ورسره کوو مرةً بعد اخرى كمايدل عليه المضارع، دا ډله او دا ډله، دا دوه لفظه بدل كل دي د "كلا" له لفظ څخه "عطا" مصدر دی په معنی د مفعول ای المعطي د "ربک" د خدای ستا، كلمه د "من" متعلق ده په "نمد" پورې. او نه ده عطا د خدای ﷻ ممنوع له هيڅ چا څخه که مؤمن وي او که کافر، لكن في الدنيا تفضلاً من الله العزيز الحكيم. شيخ عارف سعدي قدس سره وايي:

اديم زمين سفره عام اوست ......... برين خوان يغما چه دشمن چه دوست

پس پرده بيند عملهای بد ......... هم او پرده پو شد بآلای خود

وگر بر جفا پیشه بر تافتی ......... کی از دست قهرش آمان یافتی

وفي موضع آخر

ای کریمی که از خزانه غیب ......... گرو ترسا وظيفه خورداری

دوستانرا کجا کنی محروم ......... تو که بادشمنان نظر داری

انْظُرْ كَيْفَ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ ۗ

وگوره ای محمد (ﷺ) چې څرنګه بالا کړي دي موږ بعض خلګ پر بعضو نورو په رزق او جاه وجمال و مال ومنال کې يعني په دنيا کې.

**پوه سه**: چې كيف منصوب دی په فضلنا سره على كونه حالاً.

وَلَلْاٰخِرَةُ اَكْبَرُ دَرَجٰتٍ وَّ اَكْبَرُ تَفْضِيْلًا ﴿٢١﴾

او هر آئينه آخرت او ورځ د قيامت لوده من حيث الدرجات او من حيث التفضيل، ولې چې د آخرت درجې په جنت کې يو تر بل بالا دي، او داغه رنګه درکات د دوزخ يو تر بل بالا دي، والله شمل علمه اعلم بذالک التفاوت في الآخرة.

آنانکه ذره وار بصورت محقر اند ......... فرد از خيال وناز بفروش ننگرند

وفي الحديث اكثر اهل الجنة البله ای العوام وعليون لذوی الالباب ای لاصحاب العقول والله اعلم المراد بهم العلماء العاملون كما في قوله عليه

الصلوة والسلام فضل العالم (اى بالمعنى المذكور) على العابد (اى الجاهل) كفضلي على ادنى كم، وفي رواية كفضل القمر ليلة البدر على سائر الكواكب. ابن عباس رضي الله عنه په تفسير كي ددې آيت "والذين اوتوا العلم درجات" وايي چې خداى جل جلاله عالم پر مؤمن (يعنې امي كه څه هم عابد وي) اووه سوه درجې پورته كوي چې په منځ كې د هر دوو درجو لكه د اسمان او د مځكې تر منځ چې مسافت وي، په تفسير بحر العلوم كې وايي چې په حديث شريف كې راغلي دي تعلموا العلم فالله تعالى يبعث يوم القيامة الانبيا ثم العلما ثم الشهدا ثم سائر الخلق على درجاتهم" او په بل حديث كې راغلي دي چې په جنت كې يوه درجه سته چې هغې ته نه سي رسېدلاى مگر دري قسمه خلك. امام عادل، و ذورحم واصل، و ذو عيال صبور" او په صحيح حديث كې راغلي دي "اعد الله لعباده الصالحين ما لاعين رئت، ولا اذن سمعت، ولاخطر على قلب بشر، وروى ابن عبد البر في الاستيعاب عن الحسن چې يوه ډله له اشرافو څخه د قريشو په وخت كې د جاهليت په خلافت كې د عمر بن الخطاب رضي الله عنه دده دروازې ته ورغله يعنې د يو كار لپاره، چې په هغه ډله كې سهيل بن عمرو القرشي ؤ چې يو له اشرافو څخه د جاهليت د وخت ؤ. او بل سفيان بن حرب ؤ چې لوى قومندان د جاهليت د وخت ؤ، او بعض نور مشائخ د قريشو، نو د عمر رضي الله عنه له خوا څخه اجازه د ورتلو صهيب، بلال حبشي او اهل بدر رضي الله عنهم ته وركړل سوه او د عمر رضي الله عنه دغه كسان ډېر محبوب وه او ده ته وصيت ددغو كسانو په باره كې سوى ؤ يعنې د عليه الصلوة والسلام له خوا، نو ابو سفيان رضي الله عنه وويل مارئيت كاليوم قط (يعنې ما دغسې ورځ نه ده ليدلې لكه نن ورځ) انه ليؤذن لهولاء العبيد ونحن جلوس لايلتفت الينا (شان داډى چې اجازه وركړل كېږي دغو مريانو ته يعنې چې پخوا مريان وه او موږ يعنې اشراف د قريشو ناست يو موږ ته التفات نه كړل كېږي يعنې د عمر له خوا څخه. نو سهيل چې ډېر هوښيار سړى ؤ په دوى كې "اني والله قد ارى الذي في وجوهكم (زه قسم په خداى دى چې په تحقيق زه وينم هغه شى چې په مخانو كې ستاسې معلومېږي يعنې خوامو بده سوه) فان كنتم

غضباناً فاغضبوا على انفسكم (كه تاسي ته درد درغلي وي، نو غضب پر ځان وكړئ) دعى القوم ودعيتم فاسرعوا وابطأتم (تولو قوم وبلل سو يعني و اسلام ته د عليه الصلوة والسلام، لخوانو دوى يعني هؤلاء العبيد تلوار وكړى په قبول كي د اسلام وابطأتم (او تاسي تاخير وكړى په قبول كي د اسلام) وفي الكشاف هذا باب عمر ﷺ فكيف التفاوت في الآخرة ولئن حسدتم على باب عمر لما اعد الله لهم في الجنة اكبر انتهى.

وقد قال العلماء ان العطايا على ظهر البلايا وفي رواية على متن البلايا.

## لَا تَجْعَلْ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ فَتَقْعُدَ مَذْمُوْمًا مَّخْذُوْلًا ﴿٢٢﴾

تـه مه گرځوه (خطاب و رسول الله ﷺ ته دى والمراد امتـه او لكل واحد من الناس اى لاتجعل ايها الانسان) سره له خدايه بل خداى (كه بت وي او كه ملكه وي او كه عيسى عليه السلام وي الى غير ذالک) تـه بـه وگرځې يا تـه بـه عاجزه سې، كما يقال قعد فلان عن الشيئ اذا عجز عنه "مذموماً" چي ملكې او مؤمنان به دي ذم كوي، څوک به هيڅ مرسته نه درسره كوي "دوارو لفظه پر صيغه د اسم مفعول دي.

## وَقَضٰى رَبُّكَ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّآ اِيَّاهُ وَ بِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا ؕ

او حكم جازم او قطعي كړى رب ستا يا محمد ﷺ (دا تفسير منقول دى لـه ابن عباس رضي الله عنهما او له قتاده او له حسن او لـه ابن انس رحمه الله څخه) چي تاسي پـه عبادت نه كوئ مگر دده، او د مور او پلار سره به ښه كوئ "وبالوالدين" معطوف دى پر "لاتعبدوا" پـه حذف د عامـل اى ان تحسنوا بالوالدين او يـا عامـل پـه "احسنوا" دى پر صيغه د امر. نو عطف يې پر لاتعبدوا پـه عطف د انشا پر انشا دى وان اختلف الانشا نهياً و امراً و ذالک جائز.

**بوه سه:** چي تر "ان" مدغمـه في الـلام دمخـه بـا مقدره ده، والتقدير بـان لاتعبد آه. ولي چي عبادت غاية التعظيم او تذلل ته وايي كوضع الجبهة على الارض، نو نه ښايي دا عبادت مگر د هغه چا چي غايت عظمت لري او نهايت انعام كوي وهو الله ﷻ المعبود بالحق لاغيره خصوصاً بتان چي جمادات دي

لاعظمت لهم ولا انعام بشئ منهم.

**درويش وايي:** چي امر د احسان د والدينو خداى ﷻ نهي سره د غير الله متصل راوړى لان الله هو المنعم الحقيقي والوالدين هما المنعم الظاهري لتعيش الاولاد فافهم. قال الامام الرازي رح في التفسير الكثير بر الوالدين افضل من الصلوة والصوم والحج والعمرة والجهاد في سبيل الله انتهى.

**درويش وايي:** چي مراد له مذكوره عباداتو څخه نفلي مراد دي فتدبر.

**الاعراب:** په تفسير روح المعاني كي وايي كه چېري وكتل سي و مفرد راوړلو ته د خطاب په وروسته كي يعني عندك. نو دلته تقدير د احسن بالافراد افضل دى تر "تحسنوا" يا "احسنوا" او كه معطوف عليه چي "لاتعبدوا" دى نظر وكړل سي. نو تقدير د "احسنوا يا تحسنوا" زيبا دى.

**پوه سه:** چي جار او مجرور يعني بالوالدين متعلق په فعل محذوف پوري دى اى فعل كان واليه ذهب الزمخشري في الكشاف. او زمخشري منع كړې تعلق د جار او مجرور په مصدر مذكور يعني احسانًا ولي چي مصدر ضعيف العمل دى معمول دده پر ده نسي دمخه كېداى. او واحدي دا ممنوع بولي يعني د زمخشري دليل چي تېر سو. او امام حلبي داسي فيصله كړې ده چي كه مصدر په تاويل د ان مع الفعل وي نو مذهب د زمخشري صحيح دى. او كه مصدر نائب د فعل محذوف وي نو قول د واحدي مقبول دى. ومع هذا د پر نحات ودې ته تللي دي چي كه معمول د مصدر چي ظرف وي. نو تقدم د معمول مطلقًا روا دى لتوسعهم في الظروف.

**سوال:** دلته خو معمول ظرف نه دى بلكې جار او مجرور دى؟

**ځواب:** جار او مجرور نحات وروده ظرف بولي. هذا تحقيق الاعراب.

**پوښتنه:** دا تحقيق به و عوامو ته د پښتنو بلكې و طالبانو ته بلكې هغه ملايانو ته چي تفسير د ټوله قرآن و طالبانو ته په يوه مياشت يا په څلوېښت ورځي كي كوي څه فائده وكړي؟

**ځواب:** زما له شخصي كسانو سره غرض نسته. زما غرض تفسير دى د

قرآن معجز په تحقيق سره، سعدي وايي:

تو گوی آنچه دانی سخن سودمند ..... وگر هيچ کس را نيايد پسند

## اِمَّا يَبۡلُغَنَّ عِنۡدَكَ الۡكِبَرَ اَحَدُهُمَاۤ اَوۡ كِلٰهُمَا

كاشفي ميگويد اگر برسد نزديک تو به بزرگ سالی وکبرسن يکی از ايشان ياهر دو ايشان يعنی بزيند تاپير شوند و محتاج خدمت تو گردند.

**ژباړه:** كه چېرې ورسېږي په نېز ستا و ډېر عمر ته يعني سپين ږيری سي پلار او سپين سرې سي مور يو له دوی څخه يا دواړه يعني ژوندي وه تاچي كلان سالي ورسېږي او ستا د خدمت محتاجه وګرځي.

**پوه سه:** چي روح البيان روح المعاني، مظهري بلكې تولـه مفسرين رحمهم الله وايي چي اصل د "اما" ان ما ؤ، او ان شرطيه دی ما زائده ده تاكيد لپاره پر زيات سو، بيا يې نون په ميم كي مدغم كړی كما هو القانون، اما سو، او لـه هم دې سببه صحيح سو الحاق د نون المؤكدة پـه فعل پوري يعني يبلغن، ولي كـه چېرې ان يوازي وای الحاق د نون ثقيله په فعل پوري په قانون نحوي نـه دی روا يعني داسي نه دی روا، ان تكرمن زيداً په لحوق د نون ثقيله په فعل پوري.

**پوه سه:** "احدهما" معطوف عليه دی، او "كلاهما" عطف دی پر احدهما.

**سوال:** خدای پاک حال د كبر د والدينو ذكر كړی او سره ددې چي احسان د والدينو سره واجب دی على العموم؟

**ځواب:** حال د كبر سن حال د حاجت دی على الغالب وعند عدم حاجتها الاحسان اليها مندوب، او په حال كي د حاجت فرض دی كذا في الاسئلة المقحمة.

**فائده:** حمزه او كسائي "يبلغان" په ضمير د تشبيه وايي، نو ضمير راجع و والدينو ته دی، نو پر دې قرآئت "احدهما" سره د معطوفه چي "كلاهما" دی بدل دی له ضمير څخه د تثنيـه پـه "يبلغـان" كـي، او پر قرآئت د جمهورو قراؤ چي "يبلغن" مفرد وايي، نو "احدهما" او "كلاهما" فاعل د "يبلغن" دی.

**درويش وايي:** چي روح المعاني په دې آيت كي پـه دې اړه اوږد قرائت بيان

کړی دی. او اختلاف د نحاتو او سوال و جواب یې بیان کړې دي چې تر راوړلو یې نه راوړل ددې تفسیر ایوبي سره ښایسته دي، ولي خاصو علماؤ ته هم څه فائده نشته پکښې فضلاً عن العوام الطلبة.

## فَلَا تَقُلْ لَّهُمَآ أُفٍّ وَّلَا تَنْهَرْهُمَا

ته مه وایه و دوی ته او نه هم و یوه ته د دوی کلمه د "أف" مظهري رح وایي چې دا کلمه د کراهته ده او صوت دی چې پر تفجر دلالت کوي. او بعض وایي چې اسم فعل دی په معنی د اتفجر دی انتهی. او روح البیان هم دغه دواړې معناوې ذکر کړې دي، په پښتو د تفجر معنی ده د زړه تنګي. او روح المعاني وایي چې دا کلمه اسم صوت دی ینبئ عن التفجر، او یا اسم فعل دی په معنی د اتفجر متکلم واحد دده چې زه دي غمجن کړم، یعني مور او پلار ته دا کلمه مه وایاست ولي چې دوی زهیرېږي او روح المعاني وایي چې په دې کلمه کې تقریباً څلوېښت (۴۰) لغته دي او په قراءات السبع کې درې متواتره او څلور شاذ راغلي دي ثم بین الکل "ولا تنهرهما" او منع کوه یې مه دوی دوه، چې پښتانه ترټل ورته وایي، یعني د زوی یې یو کار یا خبره نه وي خوښه او مور یا پلار یې وکړي ترټل دي نه ورکوي.

## وَقُلْ لَّهُمَا قَوْلًا كَرِيمًا ﴿۲۳﴾

او ووایه ته دوی ته قول حسن او نرم ویل ورته کوه، یعني لکه په پښتو کې چې وایي مور جاني یا مورکی، او بابا یا اغا یا بابکه ومثل ذالک من کلمات الادب. او مجاهد رح وایي اذا بلغا عندک الکبر فلا تقذرهما ولا تقل لهما اف حین تمیط عنهما الاذی، یعني غول او بولي یې ورپاکوئ. لکه دوی چې ته کوچنی وې داغه کارونه یې لره تا سره کول خصوصاً الام.

## وَاخْفِضْ لَهُمَا جَنَاحَ الذُّلِّ مِنَ الرَّحْمَةِ

او کښته کړه مور او پلار ته جانب د ذلت (یعني تواضع) او عاجزي ورته کوه، نو اضافت د "جناح" و "ذل" ته اضافت دی د مشبه به و مشبه ته. او زوی امر کړی په

كښته كولو سره، نو پر دې تقدير مراد له "جناح" څخه جانب دى، او روح البيان
وايي چي ذل استعارة بالكناية ده يعني ذل او تواضع يې مشابه كړه د مرغه سره
واثبت للذل الجناح يعني وزر. تخييلاً چي حاصل د معنى يې بيرته تواضع لهما
ګرځي يعني مرغه چي له هوا څخه را كښته كيږي وزرونه كښته ايله كړي. او چي
هوا ته الوځي وزرونه لوړ كړي. نو خفض الجناح فعل دى په تواضع كي، ابن
عباس ﷺ وايي چي د مور او پلار سره به داسي ژوند كوئ لكه يو مريى چي
ضعيفه او بيماره او ذليله وي او د بادار يې ډېر سخت طبعيت وي او شوخ وي "من
الرحمة" كلمه د من تعليلي ده يعني له سببه د ډېر زړه سوي پر دوى ولي نه ورځ
دوى وتاته محتاجه دي او ته په غايت كوچنيوالي دوى ته محتاج تر او دوى خپل
رحمت له تا څخه نه سپماوه، نو ته هم بايد خپل رحمت له دوى څخه نه وسپموې.

**مسائل حقوق الوالدين:** (۱) په نامه دي مور او پلار نه يادوي الا عند
الضرورة في غيابهما. ولي مخامخ يې نوم يادول ظلم دى او نهايت بې ادبي ده
(۲) اواز به ددوى په اواز نه پورې كوي بلكې كرار كرار به خبري ورسره كوي الا
كه دوى كانه وه كرار خبري يې نه سوې اوريدلاى (۳) د بل چا مور او پلار ته دي
ښكنځل نه كوي تاچه هغه مكافاتاً دده و مور او پلار ته ښكنځل ونه كړي (۴) او
په تريو تندي او په غضب دي مور او پلار ته نه ګوري، په صحيح حديث كي
راغلي دي "ما من ولد ينظر الى الوالد او الوالدة الا كان له بها حجة وعمرة" چا
ورته وويل كه څه زوى په ورځ كي زر واره ورته وګوري؟ عليه الصلوة والسلام
وويل "وان نظر في اليوم مأة الف" (۵) له ابو الدردا ﷺ څخه روايت دى چي
رسول الله ﷺ وويل "الوالد اوسط ابواب الجنة فحافظ ان شئت او ضع (رواه
احمد والترمذي وابن ماجه والحاكم بسند صحيح" والد هغه ښه او اعدله دروازه
د جنت ده. نو مراعات يې وكړه او وديې ساته كه يې خوښه وي يا يې ضائع كړه
يعني د والد سره كه احسان كوې او خدمت يې كوې او په ادب ګذاره ورسره
كوې، نو دروازه د جنت دي وساتله وعلى العكس، نو دي ضائع كړه يعني له
لاسه دي ووتله (۶) له عبدالله بن عمر ﷺ څخه روايت دى عن النبي ﷺ رضا

الله في رضا الوالد، وسخط الله في سخط الوالد (رواه الترمذي والحاکم)
ترجمه: راضي والی د خدای ﷻ په رضا کولو کي د والد دي او غضب د
خدای ﷻ په غضب کي د والد نغښتی دی (۷) بزار له ابن عمر هغه له ابي
سعيد الخدري ﷺ څخه روايت کړی دی چي قال قال رسول الله ﷺ لا يدخل
الجنة منان (چي چاته يو شی ورکړي او بيا احسان پر اچوي، يعني هر وخت دا
خپل احسان ورته ذکر کوي) ولا عاق ولا مدمن خمر (او نه د مور يا پلار يا د
دوارو ازاري. يا د شراب خوری عادت لري (رواه النسائي والدارمي)
**درويش وايي:** چي والله اعلم مراد په دې حديث کي دخول اولی دی لانه ليس
للمؤمن المحرومية من الجنة ابداً (۸) له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي چي
رسول الله ﷺ وويل "رغم انف رجل ذکرت عنده فلم يصل علي" ترجمه: په خاورو
دي وي، کناية عن الذلة پزه د هغه چا چي زما نوم دده په نېزد ذکر سي او درود پر
ما ونه وايي "ورغم انف رجل" چي دا هم کنايه ده له ذلت څخه چي مياشت د روژې
پر ده راسي او ده ته بخښنه ونه کړل سي، يعني اداب، فرائض، سنن او نور
عبادات پر ځای نه کړي چي سبب د مغفرت الهي وګرځي "ورغم انف رجل ادرک
ابويه الکبر فلم يدخلاه الجنة" او پزه دې په خاورو وي د هغه سړي چي مور او پلار
يې کبر سن ته ورسېږي او دی جنت ته نه کړي ورداخل يعني دومره احسان او
خدمت يې ونه کړي چي ددوی په دعاګوي سره دی جنت ته داخل نه سي (رواه
البغوي والترمذي والحاکم) او د مسلم او د احمد په روايت کي داسي راغلي دي
"رغم انفه ثم رغم انفه ثم رغم انفه قيل من يا رسول الله ﷺ قال من ادرک الکبر
عنده احد الوالدين او کلاهما ثم لم يدخل الجنة" (۹) له ابي امامه ﷺ څخه
روايت دی چي يو سړي له رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه "ماحق الوالدين على
ولدهما؟ قال هما جنتک او نارک (رواه ابن ماجه) ترجمه: له عليه الصلوة والسلام
څخه چا پوښتنه وکړه چي څه دی حق د والدينو پر ولد د دوی، عليه الصلوة
والسلام ورته وويل چي مور او پلار ستا جنت دي يعني سبب دخول د جنت که
احسان ورسره وکړې او خدمت يې وکړې، يا دوی ستا دوزخ دي يعني سبب د

دخول د دوږخ دي تالره که يې ازار کړي او ښیراوي درته کوي.

**درویش وايي:** چي په دمخه څو حدیثو کي لفظ د والد یعني مذکر لفظ راغلی و: نو په قرینه د وروسته حدیثو چي آنفًا تېره سوه له والد څخه والله اعلم، مور او پلار دواړه مراد دي په تاویل د شخص والد یعني تذکیر يې په سبب د تاویل بالشخص دی چي شخص لره او ښځي دواړو ته وايي (۱۰) له ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی ده وویل چي رسول الله ﷺ وویل "من اصبح لله مطیعًا في والدیه اصبح له بابان مفتوحان من الجنة وان واحداً فواحداً ومن امسی عاصیاً لله في والدیه اصبح له بابان مفتوحان من النار وان واحداً فواحداً قال رجل وان ظلماه؟ قال علیه السلام وان ظلماه وان ظلماه وان ظلماه"

**درویش وايي:** چي په دې حدیث کي والله اعلم بمراد رسوله ﷺ اصبح او امسی له افعال ناقصه وو څخه دی کما في کتاب الشمة وغیره، نو بنا عليه ترجمه د حدیث داده: که څوک وګرځي فرمانبرداره د خدای جل جلاله په باره کي د مور او پلار، وبه ګرځي ده لره دوې دروازې خلاصي د جنت. او که یو د مور او پلار و نو یوه دروازه به ورته خلاصه سي، او که څوک وګرځي "عاصیاً" نافرمانده د خدای جل جلاله په باره کي د مور او پلار (نو امسی تفنن في العبارة) دی، ده ته به وګرځي دوې دروازې خلاصي د اور "وان واحداً فواحداً" یو سړي و علیه الصلوة والسلام ته وویل که څه مور او پلار پر دوی ظلم کاوه؟ علیه الصلوة والسلام درې واره په ځواب کي ورته وویل وان ظلماه (۱۱) په صحیح حدیث کي راغلي دي چي یو سړي له علیه الصلوة والسلام څخه پوښتنه وکړه چي زه د کوم یوه سره د والدینو احسان وکړم؟ علیه الصلوة والسلام ورته وویل "امک" هغه سړي وویل بیا د چا سره؟ علیه الصلوة والسلام ورته وویل "امک" بیا هغه سړي داغه سوال وکړی، علیه الصلوة والسلام ورته وویل "امک" یعني درې واره سائل "ثم من" سره پوښتنه وکړه علیه الصلوة والسلام ځواب په "امک" سره ورکړی. څلورمه وار چي هغه سړي سوال په "ثم من" سره وکړی علیه الصلوة والسلام ځواب ورکړی "ثم اباک".

**درويش وايي:** چي ددې حديث سر علما كرام داسي بيانوي چي د زوى پر مور درې تكليفه راځي نهه مياشتي يا كم تر نهه د حمل تكليف دى، دويم د وضع الحمل دردونه او تكليف دى. او دريم د روزنې او پالني او شپې ورسره سبا كول په وخت كي د ناجوړى د ولد، او پاک ساتل له مردارى څخه د ولد كما هو الظاهر لكل واحد الى غير ذالك من تكاليف الاولاد على امهاتهم (۱۲) وعن ابي بكر ﷺ قال قال رسول الله ﷺ كل الذنوب يغفر الله منهما مايشا الا عقوق الوالدين فانه يعجل لصاحبه (اى العذاب) في الحيوة قبل الممات؟

**درويش وايي:** چي نور احاديث صحيحه په باره كي د احسان د مور او پلار سره او عقوق ددوى راغلي دي. كه زه احصا د ټولو وكړم اوراقي به نوري په بيره كي ونسي (۱۳) تر دې اندازې په حقوق كي د والدينو دا مسئله فقهاو رحمهم الله راوړې ده، كه سړى مسلمان وي او پلار يې مشرک وي. پلار زوى ته ووايي چي ما په شا كړه بت خانې ته مي بوزه چي زه د خپلو خدايانو عبادت وكړم. فقها وايي چي نه دې يې شا كوي، ولي چي دا مرسته ده پر شرک باندي. او كه پلار يخپله بت خانې د عبادت لپاره تللى ؤ چي راوتى زوى ته يې وويل چي ما په شا كړه كور ته مي ورسوه امتثال يې پر واجب دى.

**درويش وايي:** چي دا د مشرک پلار حق دى، نو د مسلمان پلار حق به تاسي اندازه ولګوئ.

**حكايت:** يو عالم وايي چي زما پلار چي هم عالم ؤ. او زما هم پلار او هم مي استاذ ؤ، وروسته تر مړيني دوه كاله تخمينا ما په خوب وليدى چي په قبر كي مريض دى. ما ورته وويل چي بابا ناروغه يې، ده راته وويل چي هو! ته ماته يوه دوا يا ګولى نه راوړې چي خداى پاک ما په جوړ كړي، زه چي له خوبه څخه بيدار سوم يوه سوم چي پلار تر دې دعا چي خدايه ما وبخښې او زما مور او پلار وبخښې مخصوص يو شى غواړي. نو مي خداى ﷻ ته خواست وكړى چي زما ټولې حسناتې كه فرضي وي كه نفلي او كه قولي او كه عملي او كه مالي وي ما خپل پلار ته بخښلي دي كه څه هم ماته يوازې سيئات راپاتـه سي، يو څو عمر

وروسته مې بیا پلار په خوب ولیدی په ښه لباس کې او په بدن تندرسته او خوشاله، عالم وایي چې ما پوښتنه ځنې وکړه چې بابا څرنګه یې؟ ده راته وویل چې هغه دوا او ګولۍ چې تا ماته را استولي وې د هري ښه راباندې ولګېدلې شکر دی اوس ډېر ښه یم خدای ﷻ دې تاته ثوابونه درکړي انتهی قول العالم.

وَقُلْ رَبِّ ارْحَمْهُمَا كَمَا رَبَّيَانِي صَغِيرًا ﴿٢٤﴾

یعني دعا کوه مور او پلار ته چې خدایه ته رحم وکړې زما پر والدینو یعني په آخرت کې چې باقي رحمت دی لکه دوی چې ماته په ډېر ښه رحمت تربیت راکاوه چې زه کوچنی وم او د حق او اسلام لار یې راوښوولـه. بغوي رحمه الله وایي چې په دې آیت کې مراد دادی چې مور او پلار د سړي مؤمنان وي، بیضاوي وایي چې که د سړي مور او پلار کافران وي او ژوندي وي مذکوره دعا ورته روا ده لان من رحمته تعالی ان یهدیهما الی الاسلام. او که پر کفر مړه وه دا دعا نه ده ورته روا لقوله تعالی "ماکان للنبي والذین آمنوا ان یستغفروا للمشرکین ولو کانوا اولی قربی" الآیة، په حدیث شریف کې راغلي دي چې یو سړي و علیه الصلوة والسلام ته راغلی او ورته وه یې ویل چې زما مور او پلار وداسي درجې ته د کبر سن رسېدلي، لکه دوی چې زما خدمت په غایت کوچنیوالي کې کاوه یعني زما مرداري به یې راپرېوله. او کالي به یې راپرېول الی غیر ذالک. زه ددوی خدمت پر هغه اندازه کوم، نو ما ددوی حق پر ځای کړی؟ علیه الصلوة والسلام ورته وویل "لا" ولي دوی چې ستا خدمت او پالنه کوله ستا د حیوة او د بقا لپاره یې کوله. او ته چې ددوی پالنه او خدمت کوې د دوی د موت لپاره یعني چې دا دي په خیال وي چې نن به مړه سي سبا به مړه سي.

رَبُّكُمْ أَعْلَمُ بِمَا فِي نُفُوسِكُمْ ۚ

رب ستاسي ښه خبر دی یعني تر تاسي چې ستاسي په زړو کي وي یعني البر الی الوالدین او اعتقاد پر دې چې پر تاسي واجب دی، یعني توقیر او تعظیم د والدینو.

**یوه سه:** چې دا تهدید دی و اولاد ته چې په زړه کې یې د مور او پلار څخه بد

کبرې او پر دراته وي لکن د خلګو له شرمه څخه بر او احسان ورسره کوي چې دا هم په حقيقت کي عقوق دی. او دا هم معنا د آيت کېدای سي چې خدای ﷻ خبر دی په نياتو ستاسي، نو که دا بر د والدينو احتساباً (يعني چشم باز داشتن وثواب ته) او د امتثال د امر الهي په بر کي د والدينو فأجره على الله تعالى وان كان لغرض من اغراض الدنيا فهو على مانوى.

**مسئله**: د مور پښې مچول لپاره د تواضع روا دي.

**حکايت**: استاذ ابو اسحٰق الاسفرائني رحمه الله ته يو سړی راغلی چې ته برايي شپه ما په خوب وليدلې چې د ږيرې په وپښتانو دي ملغلري او جواهرات ځړېږي. ده وويل چې دا خوب دي رشتيا دی. زما عادت وو چې کور ته به ورغلم زما د مور خونه زما د عيال تر خوني په مخ کي وه، نو به يو ګړی له مور سره کښېنستم احوال پرسي به مي وکړه. ولې که زه د مور تر خوني او تر احوال پرسي، دمخه د خپل عيال خوني ته تللی وای زه بېرېدم چې د مور به ګله راځخه وسي. هر وخت چې به ادې مور په مجلس ستړې سوه، دې به راته وويل چې زه بدېږم څه خپل عيال ته ولاړ سه، نو ما به ورته وويل چې موري راسه چې پښې دي درمچ کړم، پښې به مي ورمچ کړې او خپل عيال ته به ولاړم، برايي شپه زه د مېلمنو سره وځنډېدم چې کور ته راغلم مور مي بيده سوې وه، حيران سوم چې ستا دائمي وظيفه پاته سوه، لهٰذا خو به مي هم نسو ای راويښولای. نو مي کرار کرار ږيره ددې د پښو په خاورو پوري ومښل. نو هغه دی چې تا خوب وليدی کما ذکرت. نو زما يقين سو چې د مور د پښو خاوره زما د ږيرې جواهرات په نېز د خدای ﷻ دي.

**مسئله**: د مور او پلار خدمت به سړی په خپله کوي و بل ته به نه وايي چې دا کار وکړه، مثلاً مور يا پلار ده ته وويل چې اوبه راواخله زه تږې يم، زوی به بل چا ته نه وای چې دا اوبه ورته راواخله. ولي سړي ته دا عار او پېغور نه دی چې د استاذ يا د مور او پلار او د مېلمانه خدمت په خپله وکړي بلکې دا کمال انسانيت دی.

**مسئله**: فقها رحمهم الله وايي چې پلار ته دي امامت نه ورکوي الا بامره وان كان الولد افقه من الاب.

**مسئله:** که د چا پلار جاهل وي او دی مثلاً عالم وي، نسب له پلار څخه به نه بدلوي يعني چي زه د پلاني زوي يم يعني د غير د پلار نوم واخلي، ولي چي په حديث صحيح کي راغلي دي د داغسي چا په باره کي، فعليه لعنة الله والملائكة والناس اجمعين لا يقبل الله منه صرفاً ولا عدلاً يعني نه نفل او نه فرض، كذا في الاسرار المحمدية، وفي الحديث اذا ترك العبد الدعا للوالدين انقطع الرزق، وفي الحديث من زار قبر ابويه او احدهما كان باراً يعني في كل جمعة.

**درويش وايي:** چي په اوسني زمانه کي عادت غالبه دادی چي پلار يا مور چي د چا مړه سي يوه ورځ فاتحه خواني وي، دريمه ورځ ختم د قرآن مجيد پسي وكړي بالا نسياً منسياً يي وګرځوي، نه يي قبر ته ورځي الا في سنة مثلاً شيخ سعدي رحمه الله داسي وايي:

سالها بر تو بگذرد که گذر .......... نکنی سوی تربت پدرت

تو بجای پدر چه کردی خیر .......... تا همان چشم داری از پسرت

امام ابو حامد محمد الغزالي په احيا العلوم کي وايي چي اکثره علما پر دي دي چي مراعات د ابوينو واجب دی په شبهاتو کي او په حرام صريح کي دي اطاعت نه کوي، ولي ترک د شبهاتو خو ورع ده او د والدينو حق حتم او واجب دی،

**مسئله:** که ولد مراعات د حق د مور او پلار يا دواړو نسواى کولاى چي دوی سره مرور وه او هر يوه د هغه بل په مراعات ناراضه کېدی، نو حکم دادی که چېري د زوی سره د دواړو د نفقي توان نه وي، نو مور دي مقدمه کړي پر پلار په نفقه کي. ولي چي پر مور ډېري خواري تېري سوي دي د ولد يعني في الحمل والوضع وبعد الوضع كذا في فتح القريب.

**درويش وايي:** چي په روح البيان او روح المعاني کي دا حديث په مختلفو عباراتو راغلی دی چي يوه ورځ يو ځوان و عليه الصلوة والسلام ته د پلار په باره کي شکايت وکړی چي دی زما له کور او له مال څخه زما بي اجازي شی وړي، عليه الصلوة والسلام يي پلار راوغوښتی، فاذا هو شيخ يتوكأ على العصا، نو دده د زوی شکايت يي ورته بيان کړی، د سپين ږيري پلار سترګي د

اوښکو ډکې سوې او داسې يې وويل چې دا زما زوی ضعيف ؤ او زه قوي وم، دی فقير ؤ زه غني وم يعني په حال د طفوليت دده ما له خپل مال څخه له ده څخه هيڅ شي نه سپماوه. اوس زه ضعيف يم او دی قوي، او زه فقير يم دی غني، نو دی ولې زما سره بخل کوي په خپل مال سره. نو عليه الصلوة والسلام د شيخ ضعيف پر وينا وژړل او داسې يې وويل، چې پر دا قصه د سپين ږيري نه ډېري اوريدلي او نه لوتي مگر پر وه يې ژړل، آخراً آنحضرت ﷺ داسي حکم صادر کړی "انت ومالک لابيک"

**مسئله:** پلار لره پکار ده چې د زوی سره دي سخت برتاؤ نه کوي، او نه دي نامناسبه ښکنځل او خبري ورته کوي، تاچې زوی و عقوق ته مجبور نه سي، او بده گذاره دي هم نه ورسره کوي وکذالک الام.

**حکايت:** له يو عارف څخه نقل راغلی دی چې زه يو زوی لرم دا دېرش کاله دا دېرش کاله ما دی نه دی امر کړی (يعني په دنياوي امورو کي) په هيڅ شي سره د ډېري ددې چې نبايد دی به زما عصيان وکړي او عذاب به پر نازل سي.

إِن تَكُونُوا صَٰلِحِينَ فَإِنَّهُۥ كَانَ لِلْأَوَّٰبِينَ غَفُورًا ﴿٢٥﴾

يعني که قصد کونکی د ثواب عندالله یاست په بر کي د والدينو (بغوي رح) وايي چې پس له لږ تقصيره په هغه حقوق کي د والدينو چې پر تاسي لازم ؤ نو په تحقيق خدای ﷻ دی د توبه کونکو د معصيت په حقوق د والدينو بخښونکی د هغه معصيت دی، قال عليه الصلوة والسلام التائب من الذنب کمن لاذنب له" او دا هم احتمال سته چې دا آيت عام دی هر تائب لره من الذنب ويندرج فيه. هغه څوک چې په حقوق کي د والدينو لږ يا ډېر تقصير ځني سوی وي.

**پوه سه:** چې "اوابين" جمع د اواب ده چې هغه صيغه د مبالغې ده. نو څکه يې سعيد بن المسيب رضي الله عنه دا تفسير کړی دی "الاواب هو الذي يذنب ذنباً ثم يتوب ثم يذنب ذنباً ثم يتوب ثم يذنب ذنباً ثم يتوب" او سعيد بن جبير رضي الله عنه يې دا تفسير کړی دی "هو الرجاع الى الخير" ډېر رجوع کونکی د خير و کار ته.

**درویش وایي:** چي ددي دوو تفسیرو مآل یو دی. په صحیح حدیث کي راغلي دي چي علیه الصلوة والسلام وویل "رغم انفه" (یزه دي په خاورو وي دا کنایه ده له ذلت څخه) فقیل من یا رسول الله ﷺ؟ قال من ادرک والدیه عند الکبر احدهما او کلاهما ثم لم یدخل الجنة" (چا وویل چي څوک یا رسول الله ﷺ رسول الله ﷺ وویل هغه څوک چي والدین یې یا یو له دوی څخه سپین ږیرتوب ته ورسیږي او هنوز دی و جنت ته داخل نه سي یعني په سبب د بر او احسان د دوی سره، روح المعاني وایي چي له اسکندر څخه چا پوښتنه وکړه چي پر تا باندي ستا د استاذ منت او احسان ډېر دی که ستا د پلار؟ ده په ځواب کي ورته وویل الاستاذ اعظم منةً علي من والدي. ولي چي استاذ ډېره خواري او محنتونه پر ځان وړي دي زما په تعلیم کي حتی چي زه یې په نور د علم منور ګرځولی یم. واما الوالد فانه طلب تحصیل لذة الجماع لنفسه فاخرجني الی عالم الکون والفساد.

**درویش وایي:** چي دا د اسکند خبره روح المعاني رد کړې ده. دی وایي چي موږ ومنل چي په اول الامر کي مطلوب د پلار لذة الجماع وو. خو دا غم خوري د والد چي ایصال د خیراتو و زوی ته کاوه او دفع د آفاتو یې له زوی څخه کوله له اول وخته د زوی د راتلو و عالم وجود ته بیا تر هغه وخته پوري چي پلار سن ته د کبر رسېدی یعني سالخورده کېدی، دا ډېر لوی نعمت دی پر زوی تر ټولو هغو خیراتو چي اسکندر ذکر کړي دي چي منت د استاذ تر منت د پلار ډېر دی. په تائید کي د نظریې د آلوسي رح دا حدیث کافي دی چي یو سړی له یمن څخه و علیه الصلوة والسلام ته راغلی د جهاد في سبیل الله لپاره. علیه الصلوة والسلام ورته وویل "هل لک احد بالیمن؟ قال ابوای" علیه الصلوة والسلام ورته وویل هغو اجازه د جهاد درکړه؟ هغه ورته وویل یا! نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل چي ولاړ سه یمن ته له دوی څخه اجازه د جهاد وغواړه، که یې اجازه درکړه فجاهد والا فبرهما. او په حدیث کي د عبد الله بن عمرو رضی الله عنه راغلي دي چي یو سړی و علیه الصلوة والسلام ته راغلی د علیه الصلوة والسلام څخه یې اجازه د جهاد غوښتله علیه الصلوة والسلام ورته وویل "احي والداک؟ قال نعم

قال ففيهما فجاهد. وفي رواية جئت ابايعک على الهجرة وتركت ابوي يبكيان" عليه الصلوة والسلام ورته وويل ولاړ سه مور او پلار وخندوه يعني خوشاله يې كړه لكه دوى چې تا ژړولي دي يعني چې ستا په فراق دي غمجن كړي دي.

**مسئله:** كه يو سړي مايينه درلوده او پر گرانه هم وه او پلار دى امر كړي چې دا مايينه طلاقه كړه كه څه هم پلار له دې كبله دى امر كړي چې مايينه يې بې لمانځه ده مثلاً. نو كه زوى دده امتثال ونه كړى عاق خو نه دى لكن افضله داده چې طلاقه يې كړه امتثالاً لامر الوالد. په دليل د هغه حديث چې ابن حبان رح په خپل صحيح كې راوړى دى، چې يو سړى ابو الدرداء رضي الله عنه ته راغلى چې پلار په ما پسې ؤ چې واده به دروكړم خير خو واده يې راوكړى، او اوس وايي چې مايينه دې طلاقه كړه، ابو الدرداء رضي الله عنه ورته وويل چې زه نه حكم دركوم چې نافرماني د پلار وكړه او نه هم دا ويلاى سم چې مايينه طلاقه كړه لكن كه ستا خوښه وي زه به هغه حديث درته بيان كړم چې ما د عليه الصلوة والسلام څخه اورېدلى دى چې ده مبارک وويل "الوالد اوسط ابواب الجنة (يعني پلار ميانه يا ښه دروازه د جنت ده) فحافظ على ذالک اودع (يا محافظت وكړه د هغې دروازې يا يې پرېږده او داغه رنگه سنن اربعه والا محدثين يعني نسائي، ابن ماجه، ابو داود، ابن حبان رحمهم الله په خپل صحيح كې او ترمذي رح چې له اصحابو څخه د جرح او تعديل دى ددې حديث په باره كې ويلي دي "حسن صحيح" له ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دى چې زما مايينه وه چې ډېر محبت مې هم ورسره درلودى او زما د پلار عمر رضي الله عنه بد ښځي كېدل. ماته يې وويل چې طلاقه يې كړه ماته طلاقول، اخير زما پلار و عليه الصلوة والسلام ته ورغلى او دا موضوع يې ورته بيان كړه عليه الصلوة والسلام ماته وويل چې طلاقه يې كړه.

**درويش وايي:** چې دا ؤ مختصر بيان په بيان كې د حقوق والدين.

**وَاٰتِ ذَا الْقُرْبٰى حَقَّهٗ**

او وركړه و هغه چاته چې ستا سره قرابت لري حق د هغه يعني صلة الرحم

ورسره کوه او ښه ژوند ورسره کوه او احسان ورسره کوه په مال سره که دي له وسه پوره وه والا فبالقول الحسن والفعل الحسن.

**درویش وایي:** چي چي د عمومي ذوی القربی سره مرسته او کومک خو مندوب بالاجماع دی، او اکثره مفسرین دا آیت پر عموم او پر ندب حمل کوي لکن امامنا الاعظم وهمامنا الافخم ابو حنیفه رحمه الله وایي چي واجبه ده هر ذي رحم یعني چي قرابت نسبي د سړي سره لري او محرم هم که یو تر فرض کړل سي او بله ښځه نکاح یې ابدي سره حرامه وي، نو په دې سره هغه قریب چي قرابت نسبي نه سره لري که څه هم نکاح یې ابدي سره ناروا وي کالخالة نکاح خو یې ابدي و خوریي ته حرامه ده لکن چي له جلا قوم څخه وي ذي رحم نه ده. او په محرم سره هغه نسبي قریبان خارج سوه چي نکاح یې ابدي حرامه نه وي لکه د اکا زامن او لوڼې، نو امام اعظم رحمه الله وایي چي نفقه د ذی رحم محرم پر غني قریب واجبه ده که دی صغیر او فقیر وي یعني د پلار میراث نه وو ورپاته سوی یا ښځه وي بالغه فقیره او یا نر وي شل یا ړوند وي لکن فقیران وي. ولي چي په دغه انفاق بقا د دوی د ژوند ده وهو اصل البر وصلة الرحم، او بغوي رح له علي بن الحسین رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چي مراد په دې آیت کي اقارب د علیه الصلوة والسلام دي وکذا اخرج ابن ابي حاتم عن السدي رح، او طبراني او نورو روا تو له ابي سعید الخدري رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چي دا آیت چي نازل سو علیه الصلوة والسلام فاطمه رضي الله عنها راوغوښتل او د فدک ځمکه یې و هغې ته ورکړه، او ابن مردویه له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت کړی دی ابن کثیر مفسر کبیر او روح المعاني وایي چي دا خبره مشکله ده، ولي له دې بیان څخه دا معلومیږي چي دا آیت مدني دی ولي چي فدک خو په وخت کي د هجرت علیه الصلوة والسلام فتح کړی، والمشهور ان هذه الآیة مکیة. او بل دلیل یې دا راوړی دی چي مشهور او معتمد علیه دا ده چي فاطمه رضي الله عنها علیه الصلوة والسلام ته ورغله چي فدک زما پر نامه کړه، علیه الصلوة والسلام د فاطمې رضي الله عنها دا خبره ونه منل کذا روي عن عمر بن عبد العزیز رحمه الله، او ومظهري وایي که دا واقعه صحیح وای، نو خلفا راشدینو څرنګه فدک

له فاطمي ﷺ څخه ګرځاوه خصوصاً علي ﷺ في خلافته.

**درویش وایي:** چي مشهور داده چي فاطمه ﷺ شپږ میاشتي وروسته تر علیه الصلوٰة والسلام وفات سوه، نو که دا صحیح وي نو فاطمي ﷺ خو خلافت د خلفا راشدینو نه دی پیدا کړی الا ان یقال سلمنا وفاتها شپږ میاشتي وروسته لکن که فدک دې ته آنحضرت ﷺ ورکړی وای نو خلفا راشدینو به د فاطمي ﷺ و میراث خورو ته ورکړی وای یعني الحسن والحسین ﷺ چي ددې زامن وه. او علي ﷺ چي ددې زوج ؤ او ربع میراث دده حق ؤ!. والله اعلم بحقیقة الحال. په صحیح حدیث کي راغلي دي "البر والصلة یطیلان الاعمار ویعمران الدیار ویکثران الاموال" ترجمه: بر یعني ښه ګول د اقرباؤ سره او وصله رحمي کول ددوی سره عمرونه ډېروي، او سرایونه د بر او صله کونکو اباد وي، او اموال ددوی ډېروي.

**سوال:** عمر د هر سړي خو مقدر دی په اجل معلوم سره، نو څه معنی د عمر د پرولو په سبب د بر او صلة الرحم؟

**ځواب:** یوه قضا مبرم او قطعي ده چي په لوح محفوظ کي نوشته ده په هغه کي خو تغییر، تبدیل او زیادت او نقصان نه دی روا. والی هذا یشیر قوله تعالی "یمحوا الله مایشا ویثبت وعنده ام الکتاب" حاصل دا چي په بر او صله سره عمرونه زیاتېږي هغه د قضا معلق عمرونه دي فتدبر حق التدبر.

## وَالْمِسْكِيْنَ وَابْنَ السَّبِيْلِ

او تاسي ورکوئ مسکین ته خپل حق که څه هم بیګانه وي. اهل لغت وایي چي "من لاشئ له یعني من المال" که څه هم دون النصاب وي، او فقیر هغه دی چي ده لره مال وي لکن دون النصاب وقیل بالعکس. او د ابن السبیل لغوي معنی داده "زوی د لاري" یعني ملازم د لاري چي مراد څني مسافر دی چي په وطن کي خو مال لري او في الحال ورسره نه وي چي منقطع عن المال وي، او په دې قسم کي منقطع الغزات هم داخل دي فافهم.

وَلَا تُبَذِّرْ تَبْذِيرًا

او ته تر حق د انفاق المال تجاوز مه کوه چي مال په معصيت کي صرف کړې. لکه چي شراب په رانسي يا د زنا په اجرت کې ورکړې وامثال ذالک، مجاهد وايي چي که سرى تول مال په لاره کي د خداى ﷻ صرف کړي ماکان تبذيرًا او که يو مد يعني د صاع څلورمه حصه په باطل کي صرف کړي تبذير دى، له ابن مسعود رضي الله عنه څخه چا پوښتنه وکړه د تبذير د تفسير، ده ورته ووېل انفاق المال في غير حقه" او روح المعاني وايي چي دا هم تبذير دى چي مال وغير المستحق ته ورکوي لکه زکوة و اغنياؤ ته چي حق د فقراؤ او مساکينو دى.

**درويش وايي:** چي ددې يو ظاهره مثال دادى چي د اوسني زمانې پېدالان په زرهاؤ زکاتونه و قاضيانو، يا رئيسانو ته د مملکت ورکوي. لکه قومندان، تهانه دار او حزبي سرمايه داران چي بلـه ورځ دده کار پر مربوط وي. او يو مسکين چي ورسي په دېره څيگر خوني، يو پينځوس روپې څني بېلې کړي.

**مسئله:** که د يو چا د مسجد امام غني ؤ او دى په خبر هم ؤ، نو په نيت د زکات روپې ورکول تبذير دى کمامر من تفسير روح المعاني. او که زکوة ورکونکي د امام مسجد په غنى نه ؤ خبر او زکوة يې ورکړى. نو غاړي د ملا امام پندي دي چي حرام مال يې واخستى، بيت:

واعظان کين جلوه در منبر ومحراب ميکنند
چون بخلوت ميروند آن کاري ديگر ميکنند

**حکايت:** يو سړي په لار کي د خير د ېرې روپې، مسرف کړې بل سړي ورته ووېل لا خير في السرف. هغه ورته ووېل لاسرف في الخير، سعدي وايي:

نه هر کس سزاوار باشد بمال ......... يکى مال خواهد يکى گوش مال

يعني چي غني زکوة غواړي د زکوة په عوض کي د غوږ پېيچ ورکړه.

إِنَّ الْمُبَذِّرِينَ كَانُوا إِخْوَانَ الشَّيَاطِينِ ۖ وَكَانَ الشَّيْطَانُ لِرَبِّهِ كَفُورًا

په تحقيق سره مبذرين بالمعني المذکورة وروڼه دي د شيطانانو، او ؤ شيطان د خپل رب فرمان نه قبلونکى ؤ چي آدم عليه السلام ته يې سجده نه وکړه. بعد ان امره الله

بالسجود له. له وروړ ګلوی څخه مراد مثلیث دی په شرارت کې. بغوي وایي چې
هر څوک چې د بل قوم سنت او طریقه خپل کړي عرب وایي هو اخوهم.

## وَإِمَّا تُعْرِضَنَّ عَنْهُمُ

**یوه سه:** چې کلمه د "ان" په اما کې. ولي اصل د اما ان ما ؤ. ان شرطیه ده او
کلمه د ما زائده ده. والمعنی که چېرې ته یا محمد (ﷺ) اعراض وکړې "عنهم" له
دوی څخه یعني عن ذوی القربی والمساکین وابن السبیل کما یدل علیه سوق الآیة.

**یوه سه:** چې اعراض روې ګرداني ته وایي او مراد معنی لغوي نه ده بلکې
اعراض کنایه ده له عدم الانفاق څخه ده. او بغوي رح وایي چې دا آیت په شان کې
د مهجع. بلال او صهیب ﷺ نازل سوی دی. او داغه رنګه سالم او خباب ﷺ
چې دوی نهایت فقرا د مسلمانانو وه او د علیه الصلوة والسلام څخه یې غوښتنه
چې د مایحتاج الیه کوله. او د علیه الصلوة والسلام سره به هغه شی نه ؤ چې
دوی ته یې ورکړي یعني من المال والثیاب وغیر ذالک. نو علیه الصلوة والسلام
به مخ واړاوه حیاً او خبري به یې بندي کړې "واما تعرضن آه".

## ابْتِغَاءَ رَحْمَةٍ مِّن رَّبِّكَ تَرْجُوهَا فَقُل لَّهُمْ قَوْلًا مَّيْسُورًا ﴿٢٨﴾

لیاره د انتظار و رزق ته د خدای ﷻ. له جانبه څخه د رب ستا به امید ؤ چې
پیدا به سي. نو بیا به یې دوی ته ورکړې. نو دوی ته وایې قول نرم چې
خدای ﷻ به پر تا رحم وکړي لګه تا چې رحم وکړی پر سائلانو چې په قول جمیل
دي ورته وویل او غلظت دي په خبرو کې ورته ونه کړی کما هو عادة ابناً الزمان.
او بغوي رح وایي چې وعده ورسره وکړه چې که ماته خدای ﷻ مال راکړی زه به
یې پر تاسې قربان کړم. وهذا هو القول الجمیل په پښتو کې. او بعض مفسرین
وایي چې "میسور" مصدر میمي دی، وهو الیسر یعني دعاً د یسر ورته وکړه
مثل اغناکم الله ورزقنا الله وایاکم.

## وَلَا تَجْعَلْ يَدَكَ مَغْلُولَةً إِلَىٰ عُنُقِكَ وَلَا تَبْسُطْهَا كُلَّ الْبَسْطِ

مه ګرځوه ته خپل لاس تړلی د غاړې سره، کنایة عن البخل. او مه ګرځوه

لاس (ضمير راجع دی لاس ته چي مؤنث سماعي دی) خلاس په کامل خلاسېدو سره کناية عن اعطأ جميع عاعنده يعني توسط بين الافراط في العطأ چي کل البسط ورته اشاره ده، او په منع کي تفريط في العطأ چي يدک مغلولة ورته اشاره ده محمود دی في جميع الامور کما قال العلمأ.

فَتَقۡعُدَ مَلُومًا مَّحۡسُورًا ﴿٢٩﴾

ته به وګرځې ملامت ای عندالله وعند الناس په بخل سره فراخي د مال يا په اسراف سره "محسورا" قتاده رح وايي پښېمانه على افراط منک في الفعلين. او يا معنا داده چي ته ملوم وګرځې په نېز د سوال کونکو بالامساک په بخل سره د سعت الرزق چي شي ور نه کړې. د محسور معنی داده چي لاشئ عندک. نو دا لف او نشر مرتب دی فتدبر.

**درویش وايي:** چي په دې آيت کي عظيم اختلاف دی په منع کي د مفسرينو، بيضاوي وايي چي دا دوه مثالونه دي لمنع البخل مع القدرة واسراف المبذر منع منهما ونهي عنهما وامر بالتوسط بينهما الذي هو الکرم انتهى، او روح المعاني په اول وار داسي تفسير کړی دی لکه بيضاوي حيث قال تمثيلان لمنع الشحيح (اى البخيل) واسراف المبذر (تفسير يې دمخه تېر سو) او دا دوه کسان يې باعثه کړه پر اقتصاد (مابنه روی) بين الافراط والتفريط وذالک هو الجود والکرم الممدوح اذ خير الامور اوسطها. احمد رح او نور له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت کړی دی، قال قال رسول الله ﷺ ما عال من اقتصد "عيال نه درنېږي پر هغه چا چي ميانه روی کوي په انفاق د عيال. او بيهقي له ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت کړی دی، دی وايي چي رسول الله ﷺ وويل الاقتصاد في النفقة نصف المعيشة" وروی عن انس رضي الله عنه مرفوعا، التدبير نصف المعيشة (په انفاق کي فکر وهل نيمی د عيش دی) والتودد (محبت د خلګو د سري سره) نصف العقل والهم نصف الهرم (يعني غم نيمی د سپينږرتوب دی. پښتانه وايي چي عمر مي د ېر نه دی خو غمونو زوړ کړم) وقلة العيال احد اليسارين (او لږ والی د عيال يو د دوو غناؤ څخه دی يعني يوه په مال ده دويمه په قلة العيال ده، علمأ په يوه خوله وايي

چي حسن التدبير مع العفاف (ښه فکر وهل په انفاق کي سره د کف د حرامو څخه غوره دی خير من الغنى مع الاسراف. او ددې آيت په شان نزول کي سعيد بن منصور له سيار ابي الحكم څخه روايت کړی دی چي عليه الصلوة والسلام ته څه انواع د کالو (جامو) راغلي وه. چونکه عليه الصلوة والسلام معطي کريم و سمدلاسه يې هغه په منځ کي د حاضرينو مستحقينو وويشلې. وروسته چي نور مستحقين خبر سوه په اميد و عليه الصلوة والسلام ته راغله. خو پر ميدان شی من البز (يعني جامې) نه وُ پاته. نو دا آيت نازل سو. او روح البيان وايي چي قال اهل التفسير هما تمثيلان لمنع الشحيح (اى البخيل الحريص على المال) واعطا المسرف اى جميع ماعنده من المال زجراً لهما عنهما وامر بالتوسط بينهما کما في تفسير روح المعاني کما قال الشاعر المحقق في تفسير هذه الآية:

مبند از سر امساک دست در گردن .... که خصلتيست نکوهيده عند اهل بها
مکن بجانب اسراف نيزچندان ميل .... که هرچه هست بيکدم کنی زدست رها
چو در ميانه اين هر دوراه چندانی .... تفا وتست که از آفتاب تا بسها
پس اختيار وسط راه است درجميع امور .... بدان دليل که خير الامور اوسطها

په تفسير کشاف للعلامة الزمخشري په روايت د جابر ﷺ وايي چي په ديّ دوران کي زه ناستوم يعني په مسجد کي چي عليه الصلوة والسلام ته يو هلک راغلی. هلک وويل چي زما مور ستا څخه قميص غواړي. عليه الصلوة والسلام ورته وويل "من ساعة الى ساعة يظهر فعد الينا" (له يو ګړي څخه تر بل ګړي چي ښکاره کېږي بيا به راسې. نو کوچنی ولاړی مور ته يې ځواب د آنحضرت ﷺ ووايه. هغې ورته وويل ورسه ورته ووايه چي زما مور وايي دغه قميص راکړه چي تا اغوستی دی. نو عليه الصلوة والسلام حجرې ته ولاړی او قميص مبارک يې سره وپيچی د کوچني په لاس يې ورکړی او دی مبارک په يوه لنګ کي بې قميصه لڅ کښېنستی. بلال ﷺ اذان وکړی او د عليه الصلوة والسلام په انتظار خلګ په مسجد کي ناست وه. عليه الصلوة والسلام نه راووتی. نو دا آيت نازل سو.

**درويش وايي**: چي دا حديث بغوي ؒ هم راوړی دی. خو دومره عبارت

پکښې بالا دی فشغل قلوب اصحابه فدخل علیه بعضهم فرئاه عریاناً.

**فائده**: دې ښځې ولې دومره سپین سترګي د علیه الصلوة والسلام سره وکړه چې ستا اغوستی قمیص راکړه؟ ددې سوال جواب حسین کاشفي رح په تفسیر حسیني کې کړی دی چې زه به یې په پښتو درته بیان کړم. دی وایي چې یوه مسلمانه ښځه او بله یهودیه ښځه په یو کور کې سره ناستې وې یهودیه وویل چې موسی علیه السلام د ډېر سخي ؤ چې تر څان فاضل شی یې و سائل ته ورکاوه، مسلمانې ښځې ورته وویل چې علیه الصلوة والسلام د ډېر سخي دی حتی چې مایحتاج الیه هم له سائل څخه نه سپموي، نو ددې هغه کوچنی چې ورغلی چې وما مور وایي ماته قمیص راکړه او علیه الصلوة والسلام عذر ورته ووایه چې اوس ولاړ سه یو ګړی وروسته راسه. مور بیرته ورواستاوه چې ستا اغوستی قمیص راکړه، او علیه الصلوة والسلام هم ورکړی خپله لڅ کېناستی او مسلمانې ښځې یهودیه ملامته کړه. انتهی په پښتو ژباړه.

**درویش وایي**: چې پر دې ټولو تفسیرو روح المعاني داسې سوال کړی دی چې دا سورت خو په نېږ د ټولو قراؤ مکي دی او دا تفسیرونه چې بیان سول له دې څخه خو دا فهمیږي چې دا مذکوره آیت مدني دی. روح المعاني زیاته کړې ده چې دا آیت هیڅ چا مستثنی له دې مکي سورت څخه نه دی ګرځولی او ددې سوال ځواب ما په هیڅ تفسیر کې سره د ډېر تلاشه نه کړی پیدا.

**درویش وایي**: چې چونکه دغه احادیث مذکوره چې دلالت پر مدنیت ددې آیت کوي، ټولو مفسرینو په مختلفو اسانیدو روایت کړی دی او په منځ کې ددغو احادیثو جزوي اختلاف سته او سلسله د دغو احادیثو بېلو بېلو صحابه کرامو ﷺ ته رسول سوې ده، نو دا احادیث په درجه کې د شهرت دي نو کېدای سي چې دغه احادیث دې مخصص ددغه آیت سي په مدني والي سره که څه هم سورت مکي دی هذا ما خطر علی قلب هذا الفقیر في لیلة عید الضحی سنه (۱۴۲۹) هجري قمري والله اعلم بحقیقة الحال، ساعة (۸) تقریباً في حجرة داري.

إِنَّ رَبَّكَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَشَاءُ وَيَقْدِرُ

په تحقیق خدای ﷻ فراخه کوي و هغه چا ته رزق چې مشیت یې وسي د فراخی. د رزق چې تابع د حکمت الهي د خدای ﷻ ده، یعنې دا بسط او فراخي تا ته یا محمد ﷺ مفوض نه ده چې ته غم د فراخی. د رزق د چا وکړې "ویقدر" او تنګوي رزق علی من یشا حسب ما یقتضیه حکمته. یعنې یر تا ملامتیا نسته که ته بعض هغه شیان چې ته حاجت ورته لري له چا څخه منع کړې لکه هغه قمیص چې تا حاجت ورته درلودی سائل ته دې نه وای ورکړی.

إِنَّهُ كَانَ بِعِبَادِهِ خَبِيرًا بَصِيرًا ﴿۳۰﴾

په تحقیق خدای ﷻ خبر دی په احوالو د بندګانو خپل یعنې په سر او علانیه ددوی، نو خدای ﷻ خبر دی په مصالحو ددوی فیرزقهم علی حسب مصالحهم.

**درویش وایي:** چې تفسیر بحر العلوم له انس بن مالک ؓ څخه یو حدیث قدسي نقل کړی دی چې خدای پاک وایي چې زما د مؤمنانو بندګانو "من لایصلح ایمانه الا الغنی" که یې زه فقیر کړم دین به یې فاسد کړي "وان من عبادي المؤمنین من لایصلح ایمانه الا الفقر لو اغنیته لافسده ذالک، وان من عبادي المؤمنین من لایصلح ایمانه الا السقم ای المرض" که یې زه کامل جوړ کړم لافسده ذالک قال الله تعالی زه تدبیر د حال د خپلو بندګانو یعنې په غنا او فقر سره او په صحت او مرض سره کوم لعلمي بقلوبهم اني علیم خبیر.

**درویش وایي:** چې پر عاقل بنده لازمه ده تسلیم و امر ته د خدای ﷻ او رضا په قضا د خدای ﷻ او صبر په امورو کې د قبض او شکر په ځایو کې د بسط او انفاق حسب الامکان.

**پوه سه:** چې مظهري وایي چې دا قول د خدای ﷻ وان الله یبسط آه دي تمهید وي و دې قول ته د خدای ﷻ.

وَلَا تَقْتُلُوا أَوْلَادَكُمْ خَشْيَةَ إِمْلَاقٍ

"ولا تقتلوا اولادکم" روح البیان او روح المعاني دا خبره رد کړې ده، دوی

وايي كه تمهيد واى. نو بايد فلاتقتلوا ويل سوي واى. معنى ددې آيت داده چې مه وژنئ اولاد ستاسي.

**بوه سه:** چې لفظ د ولد كه څه عام دى نر او ښځې دواړو ته شامل دى لكن مراد ځنې لوڼې دي بقرينة ان اهل الجاهلية كانوا يفعلون قتل البنات او مراد له قتل څخه قتل بالوادي (يعني زنده درگور كردن) كما كان عادة اهل الجاهلية (خشية املاق) له يېرې څخه د فقر خداى ﷻ د رزق كفالت وكړى په دې آيت سره.

نَحْنُ نَرْزُقُهُمْ وَإِيَّاكُمْ

مونږ رزق وركوو ستاسي لوڼو ته او تاسي ته هم رزق دركوو يعني د لوڼو رازق ته نه يې بلكې د خپل ځان رزاق هم نه يې. يعني غم روزى ايشان مخور كه اورا جان دهد نان دهد. شيخ سعدي قدس سره وايي:

خداوندگارى كه عبدى خريد ........ بدارد فكيف انكه عبد آفريد

يعني يو سړى چې مريې رانسي ساتي يې. نو څرنګه به وي هغه څوک چې عبد يې پيدا كړي ويعني حق جلا وعلا.

ترا نيست اين تكيه بر كردگار ....... كى مملوک رابر خداوند گار

إِنَّ قَتْلَهُمْ كَانَ خِطْأً كَبِيرًا

په تحقيق وژل د لوڼو گناه ده لويه. په حديث كې د بخاري او مسلم راغلي دي عن ابن مسعود ﷺ دى وايي چې ما پوښتنه وكړه د عليه الصلوة والسلام څخه چې اى الذنب اعظم؟ قال عليه السلام ان تجعل لله ندا وهو خلقك (كومه گناه لويه ده. عليه الصلوة والسلام وويل چې ته خداى ﷻ ته شريک وواېه او په دلسي حال كې چې خداى ﷻ ته پيدا كړى يې) قلت ان ذالک لعظيم؟ (دا په حقه سره لويه گناه ده. بيا نو كومه گناه لويه ده؟ قال ان تقتل ولدک مخافة ان تطعم معک (چې ته ولد وژنې له يېرې ددې چې زما سره به دودى خوري) قلت ثم اي قال عليه السلام ان تزنى حليلة جارک (چې زنا كوې د مايني سره د همسايه چې په دې كې زنى خو يوه كبيره گناه ده او تلف د حق د همسايه بله كبيره گناه ده.

**پوه سه:** چي له اول څخه ددې آيت "ولا تقتلوا اولادكم" تر هغه ځايه پورې "ملوما مدحورا" چي لس آيته ته رسيږي، خداى ﷻ لس اخلاق ذميمه ذكر كړي دي چي بايد په لس خويه حميده سره بدل كړل سي د مذموماتو اول خوى بخل دى دويم يې طول امل دى و اليهما اشار الله تعالى بقوله ولاتقتلوا اولادكم خشية الانفاق فان البخل وطول الامل" دوى يعني مشركان پر دې باعثه كړه چي اولاد يې وژل. اما البخل فظاهر، واما طول الامل، ددوى خيال دا وچي زه به ژوندى يم اولاد به مې د ډېر سي نفقه به غواړي، خداى ﷻ يې دفع په سخا او توكل سره وكړه بقوله تعالى "نحن نرزقهم واياكم فافهم"

**مسئله:** كه څوك بخيل نه وي لكن د زهد او تقوى له لارې ډېر فراخ خواړه يعني ورجي او غوښي مثلاً نه خوري، نو ده ته اجازه شرعاً سته چي اهل البيت دي هم وزهد او تقوى ته راغب كړي كه هغو ورسره ومنل خو ډېر ښه او كه هغو لذيذ خواړه خوښول او ده دعوت يې نه قبلاوه، نو پر هغو دي تنگي نه راولي او فراخه رزق دي وركوي من غير التجاوز عن حدود الاعتدال الى الاسراف، او دى پوه سو څېل ځان يې.

## وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنٰٓى

او تاسي مه نژدې كېږئ و زنى ته.

**پوه سه:** چي زنى چي گناه كبيره ده او بل نژدې والى دى و زنى ته چي مقدمات د زنى پر لار واچوي لكه مچه، نظر بالشهوة الى عضو من المرئة لايجوز له النظر اليه، يا يې لاس وركښېكښل يا يې پر سينه لاس ايښوول الى غير ذالك چي دا ټول له صغائر گنهونه دي.

**فائده:** د زنى لفظ په قصر سره دى په مشهورو قرائاتو كي، او بعض يې په مد سره وايي "زناء" معنى يې يوه ده.

## اِنَّهٗ كَانَ فَاحِشَةً ؕ وَسَآءَ سَبِيْلًا ﴿۳۲﴾

دا زنى چي ده فعلة قبيحة ظاهرة القبح، او بده ده زنى از روى لار.

**پوه سه:** چي "سبيلا" تميز دى له فاعل څخه د "سآ" چي زنى ته راجع دى، او دا

تميز محول دی له فاعله څخه يعني بئس سبيل الزنى. ولي چي په زنى کي قطع د نسب راځي او له ډېرو فتنو سبب ګاهي وګرځي. په حديث کي د بريده ﷺ راغلي دي عن النبي ﷺ چي اووه اسمانونه او اووه مځکي لعنت وايي پر سپين ږيري زنی کار باندي، او لـه انس بن مالک ﷺ څخه روايت دی عن النبي ﷺ المقيم على الزنى (يعني دوام کونکي پر زنى کعابد صنم. رواه الخرابطي ؒ) وعن ابي هريرة ﷺ کما رواه ابو داؤد والترمذي والبيهقي والحاکم اذا زنى الرجل خرج منه الايمان کالظلة (سائيبان) نو چي لـه زنى څخه فارغه سي بيرته ايمان ورته راوګرځي، او بخاري او مسلم لـه ابي هريرة ﷺ څخه روايت کړی دی "لايزنى الزاني حين يزنى وهو مؤمن (اى کامل الايمان) ولايسرق السارق حين يسرق وهو مؤمن ولايشرب الخمر حين يشربها هو مؤمن"

له بعضي اصحابو ﷺ څخه روايت دی "قال اياکم والزنى (دا تحذير دی) ولي په زنى کي شپږ خصلته سته (۱) نقصان الرزق يعني په رزق کي برکت نه وي (۲) ونقصان العمر (۳) البغض في قلوب الناس. يعني په زنى که يې څوک هم نه وي خبر لکن بد يې ګڼي کيږي، دا دري په دنيا کي دي. او دري خصلته په اخرت کي دي (۱) فغضب الرب ﷻ (۲) شدة الحساب (۳) ودخول النار. او په حديث صحيح کي راغلي دي "العينان تزنيان. وهو النظر بالشهوة" واليدان تزنيان "يعني اللمس بالشهوة"

**حکايت**: په بصره کي يو سړی په مشکي سره مشهور ؤ يعني همېشه به يې د مشکو بوی تلی، دده څخه چي به چا پوښتنه د مشکو د بوی وکړه، ده به ورته ويل چي زه ډېر ښائسته وم او ډېر حياناکه وم. نو همېشه به په کور کي وم په سبب د حيا يا له خوفه څخه د فاجرانو نو. زما پلار ته خپلوانو وويل چي ستا زوی لکه ښځه په کور کي دی، او ته دنياداره سړی يې، نو دی چي په ډېره سي په هيڅ بيع او شرا او کار وبار په نه پوهېږي. په بازار کي يو د بزازي دکان ونسه دی د سره کښېنوه چي د دنيا په معامله وپوهېږي او له ځان سره بې دکان ته بيا يې او بيرته يې د ځان سره راوله، خوف د فاجرانو به هم نه وي او دده به يو څه حيا هم کمه سي. پلار مي دا

خبره چي معقول وه وه يې منل. او زه يې په دكان كي له ځانه سره كښېښولم، يوه ورځ يو سپين سرې ښځه راغله او ډېر قيمتي ټوكران يې رانيول روپۍ يې هم ورکړې او زما پلار ته يې وويل چې زه سپين سرې يم دا غوټه نسم وړلای، نو دا ستا زوی راسره کړه چې زما سره دا غوټه تر کوره پورې يوسي، پلار زه ورسره کړم سپين سرې د مخه زه په پسې يم، اخير يې زه لوی بنګلې ته وروستم غوټه په شا او د کور په يوه خونه کي يو پلنګ پروت وو ډېر ښائسته او قشنګ، او پر هغه پلنګ باندې يوه ډېره ښائسته ځوانه ښځه ناسته وه ما چې غوټه كښېښول هغې ښځې زه ځيګر ته کش کړم، ما ورته وويل الله، دې راته وويل هيڅ شی نسته، ما يو وخت ته پر خپل دكان وليدې دربانديې عاشقه سوم دا دومره كالي چې بوړې رانيول زما په روپو چې تا كور ته راولم، ما نن په ډېر تكليف بنګله د نرو او ښځو ځخه خالي كړه اوس تلای نسې چې زما سره زنی ونه کړې، هر څه زاری چې مي ورته وکړې نه يې منلې، اخير ما ورته وويل چې ښځې اودس ماته نيولی يم، بيت الخلا راوښيه چې زه خپل ځان سپک کړم، نو به زنی درسره وکړم، بوډۍ بيت الخلا را وښووله زه ورننوتم چکر مي په خپلو لاسو کي وواهه مخ او د ځيګر قميص مي په ولاړه چې راووتلم هغه ښائسته ښځې و بوډۍ ته وويل چې باسه يې دا ليونی دی، خير هغې دروازه را خلاصه كړه زه راووتم مخ او كالي مي په يو مسجد كي پرېولل او وچ مي كړل، دكان ته راغلم پلار مي په هيڅ نه كړی خبر، ماښام چې پرېوتلم يو ښائسته سړی مي په خوب وليدى چې زما پر مخ او بدن يې لاس راتېر كړی او دا يې راته وويل "اين انت من يوسف بن يعقوب عليه السلام" او ماته يې وويل چې تا ما پېژنې زه جبرئيل يم تا چې د خدای ﷻ له ېېرې خپل مخ او كالي په مرداريو ولړل خدای ﷻ تاته دا شرافت دركړی چې تر مرګه پورې به دې د مشكو بوی ولاړېږي، وهذا هو نتيجة الخشية من الله مع القدرة،

وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ ؕ

او تاسي مه وژنئ هغه نفس چي نر او ښځي دواړو ته شامل دی چي حرام كړی وي دا نفس يعني قتل دده (لان التحريم وغيره من الاحكام صفات الافعال لا

الاعيان) كه مسلمان وي او كه اهل ذمه او كه معاهد وي (الا بالحق) استثنا مفرغ ده اى بسبب من الاسباب الا متلبسا بالحق. لكه رجم د زاني محصن او يا قصاصا او يا باغي وي و حكومت اسلامي ته يا قاطع الطريق وي يا صحابه ﷺ ته بنكنځل او عيب پر وايي (لكه شيعه گان)

**فائده**: مرتد مما حرم الله نه دى لقوله تعالى "انما جزاؤ الذين يحاربون الله ورسوله ان يقتلوا الآية نزل في المرتدين، وقال الله تعالى قاتلوا التي تبغي الآية" په روايت كي د بخاري او مسلم او ابو داؤد او ترمذي او نسائي د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه راغلي دي، ده وويل قال رسول الله ﷺ "لا يحل دم امرء مسلم يشهد ان لا اله الا الله واني رسول الله الا باحدى ثلاث. الثيب الزاني" چي ماينه لري كه نر ؤ او يا ميره لري كه ښځه وه بيا زنى وكړي "والنفس بالنفس" يا يو سړى بل مړ كړي عمدا، نو هغه قاتل قصاصا وژل كيږي "والتارك لدينه المفارق للجماعة".

**پوه سه**: چي د مفارق الدين نه څخه مراد مرتد نه دى لانه ليس بامرء مسلم يشهد ان لا اله لا الله بلكي مراد تري هغه كسان دي چي په هوا نفسي كي غرق وي او له لوى جمعت څخه د مسلمانانو بر طرف وي كالروافض والخوارج وامثالها.

**فائده**: له ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دى چي عليه الصلوة والسلام وويل "اول ما يقضى يوم القيامة في الدماء (اول چي حكم الهي كيږي په ورځ د قيامت د ناحقه وينو په تويول كېدو) بخاري ومسلم عن براء بن عازب رضي الله عنه ان رسول الله ﷺ قال لزوال الدنيا اهون على الله من قتل مؤمن بغير حق" د ټولي دنيا خرابيدل سپك دى په نيز د خداى ﷻ تر قتل د مسلمان بيله حقه) رواه ابن ماجه بسند حسن. او له بيهقي څخه روايت دى كه اهل د اسمانو او اهل د مځكي ټول شريكان سي په قتل كي د مؤمن "يعني بغير حقه" لادخلهم النار. او نسائي حديث د بريده رضي الله عنه رانقل كړى دى وايي چي قال رسول الله ﷺ قتل المؤمن اعظم عند الله من زوال الدنيا.

**درويش وايي**: چي په صحاح سته وو كي او په نورو صحيح كتابو كي د احاديثو لكه صحيح د ابن حبان رح او صحيح د حاكم چي مستدرك يي نوم دى او

صحيح د بيهقي په باره کي د قاتل عمداً بغير الحق حديثونه ډېر راغلي دي چې جمع کول به ډېر مشکل وي، لکن مشت نمونه خروار دا نقل سوي حديثونه کافي دي، او تر ټولو دا آيت "ومن قتل مؤمنا متعمداً فجزائه جهنم خالداً فيها" کافي تهديد دی. لپاره د منع د قاتل له قتل عمد څخه که څه هم له خلود څخه په آيت مذکوره کې تابيد نه دی مراد په نيزد زموږ د اهل السنة والجماعة لکن غايت تشديد خو دی.

## وَمَنْ قُتِلَ مَظْلُومًا فَقَدْ جَعَلْنَا لِوَلِيِّهِ سُلْطَانًا

که څوک ووژل سو مظلوم چې مستحق د قتل نه ؤ يعني عمداً ووژل سو چې هغه دري ګنهونه چې قتل يې روا کاوه په دې مقتول که نه وه، نو په تحقيق موږ ګرځولی دی ولي لره د مقتول يعني ورثته. او که يې ورثه نه درلوده نو سلطان الوقت اذ قدور السلطان ولي من لا ولي له "سلطاناً" يعني تسلط او غلبه پر قاتل شرعاً که د ولي خوښه وي قاتل دي قصاص کړي او که يې خوښه وي عفوه دي ورته وکړي او که يې خوښه وي ديت دي واخلي لکن په رضا د قاتل.

## فَلَا يُسْرِف فِّي الْقَتْلِ

نو ولي دي اسراف نه کوي په قتل کې د قاتل يعني تر حدود د شرعي دي تجاوز نه کوي، يعني سره د قصاصه پزه، غوږونه او نور اعضا څني پرې کړي چې په عربي يې مثلث بولي. او يا غير له قاتل څخه په اقرباؤ کې د قاتل قتل کړي کما کان في الجاهلية. حسين کاشفي رح په تفسير حسيني کې وايي: درجاهليت چون کس کشته شدی وارث مقتول قاتل نمی کشتی بلکه مهتر يعني سردار قبيله قاتل راميکشتی انتهی. او يا داسي اسراف چې دا هم په جاهليت کې رواج ؤ مقتول به ظلماً يو شريف سړی ؤ ورثه د مقتول به دده په ځای دوه کسان ووژل بلکې يو جماعت له قريبانو څخه د قاتل به يې وژل.

## إِنَّهُ كَانَ مَنصُورًا ﴿٣٣﴾

په تحقيق دې ولي د مقتول ظلماً کومک ورسره کړل کېږي يعني شرع شريف

معاون ده چي ده ته یې اجازه د قتل د قاتل ده قریب، او امیر د مسلمانانو یې هم کومکي دی چي ولي ته مقتول قاتل طوعاً وکرهاً په لاس ورکوي.

**فائده:** (۴) له خصالو مذکوره وو څخه غضب دی، ولي د پر غضب باعث د قتل بغیر الحق گرځي کما قال الله تعالی "ولا تقتلوا النفس التي حرم الله الا بالحق.

**پوښتنه:** د قاتل نفس عمداً توبه به څه وي؟

**ځواب:** په حدیث کي د انس رضي الله عنه راغلي دي چي علیه الصلوة والسلام وویل "اما ان یقتل، واما ان یعفی عنه، واما ان یؤخذ منه الدیة. فاي هذه الخصال فعل فهي له توبة" چي توبه د قاتل عمداً په درو شیانو کي ده. یا به وژل کیږي یعني قصاصاً، یا به عفوه ورته کیږي یعني مقتول د ولي له خوا. یا به دیت څني اخستل کیږي.

**درویش وایي:** چي د حدیث معنی داده چي توبه د قاتل عمداً هغه سي نه ده لکه توبه د شرب الخمر او یا لواطة وغیرهما چي الندم هو التوبة.

## وَلَا تَقْرَبُوا مَالَ الْيَتِيمِ إِلَّا بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ

او مه نژدي کیږئ ومال ته د یتیم فضلاً عن اکله. مگر نه په هغه خصلت سره چي احسن وي یعني چي نفع د یتیم پکښې وي چي محافظت د یتیم د مال یعني د یتیم په روپو مال رانیول او په گټه یې ورکول ولو کان بالاجل لان الفقهاً جوزوا زیادة الثمن بسبب الاجل فافهم.

**فائده:** یتیم په انسانانو کي هغه دی چي پلار نه لري که یې څه هم مور ژوندی وي، او یتیم په حیواناتو کي هغه دی چي مور یې مړه وي که یې څه هم پلار ژوندی وي. او یتیم په جواهراتو کي هغه دی چي مثل نه لري کما یقولون هذه درة یتیمة یعني لا نظیرلها.

**پوښتنه:** که د یتیم باغ یا مځکه پاته وه، نو به ولي د یتیم څه په کوي؟

**ځواب:** که ولي د یتیم غني ؤ بلا اجرت دې ور روزي، او که فقیر ؤ په قدر د معتاد في الناس دي باغواني یا بزگري څني اخلي تاچي ولي دده په باغ یا د مځکي په کښت گرځي. اخته سي، نو د عیال نفقه حسب المعتاد دده په مال کي ده قاله الفقها رحمهم الله؟

## حَتّٰى يَبۡلُغَ اَشُدَّهٗ

دا غایت د تصرف د ولي په مال کي د یتیم چي دی ورسیږي و زماني تمد قوت عقلي چي د تصرف نافع او ضار فرق وکړای سي چي له اتلسو کالو څخه نیولي بیا تر د پرشو کلو پوري باعتبار تفاوت عقول الیتامی.

**فائده:** "اشد" مفرد دی لکن پر صیغه د جمع ګانک ولانظیر لها کما في القاموس.

## وَاَوۡفُوۡا بِالۡعَهۡدِ‌ ۖ اِنَّ الۡعَهۡدَ كَانَ مَسۡـُٔوۡلًا ۝

او تاسي وفا کوئ په وعده سره چي پر تاسي خدای ﷻ لازم کړي دي من تکالیفه او تاسي یې هم التزام کړی دی بقول لا اله الا الله. ویندرج فیه سنن النبي ﷺ لانه لا ینطق بالهوی انما هو وحي یوحی" او تاسي یې التزام کړی دی بقولکم محمد رسول الله ﷺ. او داغه رنګه وفا کوئ په هغو وعدو سره چي ستاسي او د خلګو تر منځ وي، ویندرج فیه العقود کلها من البیع والاجارة، وغیرها "ان العهد کان مسؤلا" په تحقیق سره د عهد سوال کړل کیږي له جانبه څخه د خدای ﷻ او د خلګو.

## وَاَوۡفُوا الۡكَيۡلَ اِذَا كِلۡتُمۡ

تاسي وفا کوئ په پیمانه چي تاسي چا ته په پیمانه سره ورکوئ یعني په کمه پیمانه یې مه ورکوئ چي په عربي یې بخس بولي. دا په هغه شیانو کي دی چي په عرف کي د عربو په پیمانه ورکول کیږي لکه غنم، جوار، وریجي، خورما وغیرها.

**درویش وایي:** چي که څه هم دا عادت په پښتنو کي نسته بلکي ددغو خوراکي موادو بیع او شرا او قرض وغیره تول په ترازو سره کوي.

## وَزِنُوۡا بِالۡقِسۡطَاسِ الۡمُسۡتَقِيۡمِ

او وزن تلل کوئ په هغه ترازو سره چي سم وي یعني په سېرو او نورو منو وغیره کي کمبود نه وي او دا په هغه شیانو کي دی چي وزني وي لکه سره زر سپین زر وسپنه وغیرها من الوزنیات، مجاهد ؒ وایي چي قسطاس لغظ رومي دی عربو یې استعمال په عربي ژبه کي کړی دی.

**سوال:** ددې رومي لفظ استعمال به په قرآن بـه منافي د هغـه آيت سره نه وي "انا انزلناه قرآناً عربياً"؟

**ځواب:** يا! لان اللفظ العجمي اذا استعمله العرب، او د عربي الفاظو احکام پر جاري کېږي من التعريف والتنکير صار عربياً. او اکثره علما وايي چي دا لفظ عربي دی ماخوذ دی له قسط څخه چي په معنی د عدل دی چي تراوز آله د عدل ده.

**ذٰلِكَ خَيْرٌ وَّاَحْسَنُ تَاْوِيْلًا﴿۳۵﴾**

او دا کيل او وزن په صحيح طريقه خير دی يعني تاسي لره په دنيا کي، ولي په دې سره خلګ ستاسي سره معامله کولو ته رغبت کوي او ذکر جميل مو کوي او ښه از روی مآل يعني د خدای ﷻ عقاب او عذاب ستاسي څخه دفع کوي في يوم القيامة.

**پوه سه:** چي پينځم د افعال مذمومه څخه چي اسراف دی چي خدای ﷻ نهي ځني وکړې بقوله فلا يسرف في القتل آه. او شپږم له افعال مذمومه څخه حرص د دنيا دی چي خدای پاک نهي ځني وکړې بقوله "ولا تقربوا مال اليتيم آه" ولي باعث پر تصرف په مال کي د يتيم حرص د دنيا دی او هغه بدل کړی په قناعت سره بقوله تعالی "الا بالتي هي احسن" او (۷) نقض العهد دی فبدله بقوله و اوفوا بالعهد ان العهد کان مسؤلاً. او (۸) د خصال مذمومه و څخه خيانت دی فبدله الله بالامانة بقوله تعالی "واوفوا الکيل اذا کلتم الآية".

**فوائد شتی:** (۱) نوشيروان وايي چي څلور خويه بد دي، او دا څلور خويه په څلورو کسانو کي ډېر بد دي (۱) بخل په بادشاهانو کي (۲) درواغ په قاضيانو کي (۳) حدت يعني شدة الغضب په علماؤ کي (۴) والوقاحة، بې شرمي او بې حيايي په ښځو کي.

**فائده:** اسراف په شي کي بد دی. له عبدالله بن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی چي عليه الصلوة والسلام تېرېدی سعد رضي الله عنه اودس تازه کاوه. نو عليه الصلوة والسلام ورته ووېل "لاتسرف" هغه ورته ووېل "افي الوضوء اسراف؟ قال نعم وان کنت علی نهر جار".

**فائده:** يو پوه سړي ته يو چا ووېل چي دا څه سر دی چي د سپين ږيري پر

دنیا ډېر حرص وي تر ځوان؟ حکیم ورته وویل چي شیخ خو ډېر خوندونه د دنیا څکلي دي چي ځوان هغه نه دي لیدلي، صائب وايي:

ریشه نخل کهن سال از جوان افزون تر است
پیشتر دل بستگی باشد مدنیا را

له سفیان ثوري رح څخه روایت دی "من باع الحرص بالقناعة فقد ظفر بالغنى"

**درویش وايي:** چي په حریص د دنیا کي به دا عیبونه خامخا وي، اول به دروغ وايي خلګو ته به وايي چي زه ډېر مسکین یم عیال راپسې دی او سره ددې چي دی به في الواقع غني وي، دویم اضحیه به پر واجبه وي د خلګو له بیري چي بیا به مانه فقر نه راکوي نه یې ذبح کوي. دریم له خلګو څخه به زکوٰة غواړي او سره ددې چي دا ته به حرام وي په سبب د غنی. څلورم په هیڅ ذلت به نه شرمېږي خلګو ته به یې لمن د فقر همېشه خلاصه نیولې وي. دا خو حریص دی چي غیر مشهور په غنی سره وي، او حریص د دنیا په اغنیاؤ کي دادی چي د دنیا په جمع کولو کي د حلال او حرام فرق نه کوي، او بیوع فاسده یې عادت وي، او زکوٰة برای نام په زرو کي یوه حصه و مسکینانو ته ورکوي، او نهه نیوي (۹۹) حصه قاضیانو او رئیسانو ته د حکومت او لوی لوی صاحب منصبانو ته ورکوي چي بلمه ورځ دده دنیاوي کارونه پرې مربوط وي او نور ورته کارونه کوي، برین عقل ودانش باید گریست.

وَلَا تَقْفُ مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ ؕ

او ته متابعت مه کوه (مشتق د قفا یقضوا څخه دی اذا تبع اثره) چي نه وي تا لره پر هغه علم، یا په حس سره یا په خبر صادق سره او یا دلیل عقلي قوي چي په اصطلاح یې برهان بولي پر هغه.

**پوښته:** چي په دغه آیت سره دلیل هغه کسان وای چي عمل په دلائل ظنیه وړ سره کوي مثل الخبر الواحد في الاحادیث وقیاسات المجتهدین نه دي روا.

والجواب عنه چي مراد په دې آیت له علم څخه اعتقاد راجح دی چي په اصطلاح یې ظن بولي چي سند لري که قطعي وي او که ظني، او لفظ د علم په دې معنا کي په کثرت سره مستعملېږي، او بعض علما وايي چي علم په معنی د یقین خو دی

لکن دا آیت مخصوص په عقائدو پوري دی چي په هغو کي نه خبر واحد او نه قیاس د مجتهد او نه تقلید کار فرما دی. او بعض علماً وایي چي ددې مراد دا دی شاهدي په درواغو مه اداً کوئ چي یقین دي نه وي. او پاکو ښځو ته نسبت د زنی مه کوه په مجرد ظن تر څو چي یقین دي نه وي. او قتادهؒ وایي چي داسي مه وایه چي ما ولیده او نه دي وي لیدلي. او داسي مه وایه چي ما واورېدل او نه دي وي اورېدلي. او یا زه پر دې خبره علم لرم او علم نه پر لرې. مظهري وایي چي عمل په احادیثو احادو سره چي شرائط معتبره په راویانو کي د حدیث پکښې وي او په قیاس صحیح سره د مجتهد او حکم په شهادت د دوو نرانو یا یو نر دوو ښځو روا دی او ثابت دی په نصوصو قطعیه وو سره او په اجماع د امت مرحومه.

**درویش وایي:** چي مانع د عمل په قیاس د مجتهد یا په خبر واحد اهل ظواهر الحدیث او سلفیان. او وهابیان او پنج پیریان دي. زه وایم چي دوی له تقلید څخه څرنګه انکار کوي او ائمه اربعه رحمهم الله ته ډېر د سپکاوي الفاظ استعمالوي. او په حقیقت کي دوی هم مقلدان یا د ابن تمیه او یا د محمد بن عبدالوهاب دي چي تر خیر القرون الثلثة په سوو کلونه وروسته پیدا سوي دي. او ابو حنیفه او مالک بن انس او احمد بن حنبل رحمهم الله په خیر القرون کي داخل دي.

**درویش وایي:** چي دلیل د قبول د خبر واحد یعني په خیر القرون و درجې ته د شهرت یا تواتر نه وي رسېدلي دا قول د رب جلیل دی "لولا نفر من کل فرقة (ولي نه وزي په طلب د علم پسي له هر لوی قوم څخه) طائفة لیتفقهوا في الدین ولینذروا قومهم اذا رجعوا الیهم الآیة" یوه کوچنی ډلګی چي فقاهت او پوهنه حاصله کړي دغه کوچنی ډلګی په دین کي یعني احکام او احادیث نبویه وغیرها. او تا چه وېېروي دغه ډله چي په دوران کي د سفر په طلب د علم کي دین زده کړي و قوم ته خپل یعني چي پر کور ناست و لپاره د معیشت دنیاوي چي چاره یې نه څني درلوده هغه وخت چي هغه ډله چي علم دین حاصل کړي و خپل قوم ته رجوع وکړي. دا وه پښتو ژباړه د آیت مذکوره.

**پوښتنه:** دا څرنګه دلیل دی د قبول د خبر واحد بالمعنی المذکور آنفاً؟

**ځواب**: په دې آيت كې طائفه راغلې ده لفظ د طائفه له درو څخه نيولې پر هر څو كسانو يې اطلاق روا دى. او موږ پوهېږو چې د درو يا څلورو يا پينځو حتى تر لسو كسانو پورې شهرت او تواتر نه پيدا كېږي، نو كه خبر واحد بالمعنى المذكور حجت نه واى نو ددې عبارت قرآني "ولينذروا" به څه وجه واى فتامل. او دليل د عمل بالقياس دا آيت مبارك دى "فاعتبروا يآ اولى الابصار" ولې د اعتبار معنى فقها وايي چې پر اصل مورد د آيت يا د حديث بل شى چې په هغه نص نه وي معتبر او قياس كړي، ومزيد التفصيل في الآيتين المذكورتين في كتب اصول الفقه. او د شهادت د قبلېدلو دليل دا آيت دى "فاستشهدوا شهيدين من رجالكم الآية".

**سوال**: دا تفاسير د اصولو الفقه خو طوائف مذكوره نه مني. ولې چې دوى فقه يا اصول الفقه نه مني، نو ددوى تفسيرونه به څرنګه ومني؟

**ځواب**: زما مقصد هم ددوى قناعت نه دى بلكې ددوى د ګمراه كن سوالو څخه مقلدين ساتم والله اعلم. او بل جواب د قبول د خبر واحد بالمعنى المذكور دادى چې په تواتر دا ثابته ده چې عليه الصلوة والسلام احاد د صحابه ﷺ استول لپاره د تبليغ د احكامو د دين د اسلام. نو خو دا معلومه سوه چې اتباع د دغو آحادو صحابه ﷺ كافي ده او پر خلګو يې متابعت لازم دى.

**درويش وايي**: چې تر ټولو د تعجب خبره داده چې ګاهي په احاديث مباركه وو كې تعارض راسي، نو دا تعارض به اصحاب ظواهر الحديث په څه شي دفع كوي. نو خو دوى مجبور دي په نقل د قول اماما نو ددوى به رفع كوي نو خو دوى هم مقلدين سوه.

إِنَّ السَّمْعَ وَالْبَصَرَ وَالْفُؤَادَ كُلُّ أُولَٰئِكَ كَانَ عَنْهُ مَسْئُولًا۝

په تحقيق چې سمع يعني قوت سامعه والبصر قوت باصره او زړه ټوله د دغو اعضاؤ او قوى څخه دى عنه سوال كرده شده في الآخرة، روح البيان د سمع ترجمه په ګوش سره كړې ده چې په پښتو يې غوږ بولې، او د بصر ترجمه يې په چشم سره كړې ده چې په پښتو يې سترګې بولې او معنى د فواد يې په دل سره كړې ده چې زړه دى. او د كل ترجمه يې داسې كړې ده "كل واحد من هذه

الجوارح" حاصل دادی چي د سمع او بصر څخه معنی مصدري نه ده مراد یا قوت سامعه، کما قلنا اولاً یا اعضاً مذکوره یعني غوږونه، سترګي او له فواد څخه هم یا قوت دراکه في القلب مراد دی یا خو دي جارحه د زړه ده والله اعلم.

**سوال:** اولئک لپاره د ذوی العقول مستعملیږي او دا قوي او اعضاً خو ذوی العقول نه دي؟

**ځواب:** چونکه سوال ځني کېږي نو نازل منزله العقلا يې وګرځول، او روح المعاني د کل داسي ترجمه کړې ده ای کل من هذه الاعضاً.

**درویش وایي:** چي مظهري وایي چي ضمیر د عنه ومصدر ته د لاتقف چي قفو راجع دی د "ان" وفیه تکلف وخلاف الظاهر وخلاف جمیع المفسرین کمامر، والظاهر ضمیر د عنه وکل ته راجع دی. روح البیان وایي کان عنه ای عن نفس تلک الاعضاً او عما فعل به صاحبه یعني از ایشان خواهد پرسید که صاحب شما باشما چه معامله کرده، از سمع سوال کنند چه شنیدی واز چشم پرسند که چه دیدی وچرا دیدی. واز دل پرسند که چه دانستی وچرا دانستی انتهی، تفسیر روح البیان بعبارته.

**پوه سه:** چي دا قول ولا تقف آه اشاره ده و نهم ته د خصال مذمومه وو وهو الظلم وهو وضع الشئ في غیر موضعه. فیدل الله تعالی بقوله ان السمع والبصر والفواد کل ذالک کان فیه مسؤلاً، نو ظلم د سمع استعمال دی د سمع په اورېدلو کي د غیبت والبهتان واللغو والرفث والقذف والملاهي، یعني ساز او ناروا غزل. والفواحش وعدله استعماله في استماع القرآن والاحادیث والمواعظ والامر بالمعروف والنهي عن المنکر والنصیحة والعلوم والقول الحق.. بیت:

گذرگاه قرآن وپند است گوش ...... به بهتان وباطل شنیدن مه کوش

وظلم البصر النظر الی المحرمات والشهوات، او یا کتل و ما فوق ته په دنیا کي اویا کم تر ده په دین کي و الی متاع الدنیا وزینتها، وعدل البصر النظر في القرآن والنظر في کتب العلوم الشرعیة، او نظر و مخ ته د علماً او صلحاؤ الی اثار رحمة الله کیف یحی الارض بعد موتها..... بیت:

دو چشم ازپی صنع باری نکوست .... نه عیب کسان را فرو گیر ودوست
له حضرت عثمان ﷺ څخه روایت دی چي ما درواغ نه دي ویلي له هغه وخته څخه چي اسلام مي راوړی دی او ما نه دی مسه کړی په خپل رسته لاس فرج له هغه وخته څخه چي ما په رسته لاس بیعت د رسول اللهﷺ سره کړی دی او نه مي ګندنه او اومه پیاز خوړلي دي چي ما قرآن ویلی دی "وظلم الفؤاد" البغض والحسد وحب الدنیا. والتعلق بما سوی الله. وعدله تصفیته من الاوصاف الذمیمة المذکورة وغیرها. او بناًسته کول دي د زړه په اضدادو د صفاتو ذمیمه وو.

**پوښتنه**: دا قوی او اعضاً خو قابل د سوال نه دی کما هو الظاهر؟

**ځواب**: روح المعاني ددې سوال و جواب ته په دې عبارت سره اشاره کړې ده کل الضمائر راجعة لکل. ای کان کل من ذالک مسؤلاً عن نفسه فیقال له هل استعملک صاحبک فیما خلقت له املاً یعني ته د هغه شي لپاره چي خدای تعالی ته د هغه لپاره پیدا کړی یې صاحب ستا ته په هغو شیانو کي استعمال کړی یې او که نه وذالک بعد جعله یعني بقدرة الله اهلاً للخطاب والسؤال. دا ځواب له سوال څخه دی فافهم.

**پوه سه**: چي عنه متعلق دی په مسؤلاً پوري والتقدیر کل اولئک مسئول عنه قدم لرعایة الفواصل.

**پوښتنه**: د مورزاده ړانده یا د مور زاده کاڼه یا د مجنون اصلي څخه ددوی د سمع او بصر او فؤاد سوال به څرنګه کېږي؟

**ځواب**: هغه مفسرین چي تفسیر د سمع یې په قوت سامعه سره کړی دی او د بصر یې په قوت باصره سره او د فؤاد یې په قوت دراکه سره کړی دی دا سوال وارد نه دی کما لایخفی. او هغه مفسرین چي تفسیر په غوږ او سترګو او زړه سره کړی دی که څه ظاهراً دا سوال پر وارد دی لکن هغه ویلای سي چي بناً د تفسیر پر اکثر اغلب ده. او مذکوره کسان نادر دي والنادر کالعدم.

وَلَا تَمْشِ فِي الْأَرْضِ مَرَحًا

او ته مه ګرځه ایها المخاطب په مځکه کي په مرحاً سره. مرح چونکه مصدر

دی څکه مفسرین یې په ذا مرح سره کوي، مرح کبر او اختیال ته وایي.
**پوه سه:** چي "مرحاً" حال دی له فاعل څخه د لاتمش.

**إِنَّكَ لَن تَخْرِقَ الْأَرْضَ وَلَن تَبْلُغَ الْجِبَالَ طُولًا ﴿٣٧﴾**

تعلیل للنهي ته نسي څیرلای مځکه چي پښې د مځکي وهې د تکبر له کبله او ته نسي رسېدلای چي سر دي په هوا نیولی دی له کبره او له خیاله و غرو ته په جګواله. یعني راتګ د متکبر سړي چي پښې د مځکي وهي او سره یې په هوا نیولی وي صرف دده خر ګري ده "لاتفید شیئاً" له عیاش المجاشعي رضي الله عنه څخه روایت دی ان رسول الله ﷺ قال اني اوحيَ اليَّ ان تواضعوا حتی لایفخر احد علی احد ولا یبغی احد علی احد. رواه مسلم"

**درویش وایي:** چي کافي ده په قبح کي دا چي اول من صدر عنه الکبر هو ابلیس حین لم یسجد لآدم علیه السلام بامره تعالی وقال انا خیر منه... بیت:

تکبر عزازیل را خوار کرد ....... بزندان لعنت گرفتار کرد

له ابن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل "لایدخل الجنة من کان في قلبه مثقال ذرة من کبر" چا پوښتنه وکړه چي د هر چا دا خوښه ده چي ښه کالي او ښې چوټي دې وي، علیه الصلوة والسلام ورته وویل "هذا جمال والله یحب الجمال، والکبر بطر الحق" حق ته غاړه نه ایښوول "وغمط الناس" او خلګ تر ځان حقیر ګڼل، او کما قال علیه السلام رواه مسلم ..... بیت:

تواضع کند هوشمندی گزین ....... نهد شاخ پر میوه سر بر زمین

له سلمه بن الاکوع رضي الله عنه څخه روایت دی ده وویل قال رسول الله ﷺ لایزال الرجل یذهب بنفسه حتی یکتب في الجبارین فیصیبه ما اصابهم. رواه الترمذي"

**درویش وایي:** چي کبر (١٠) بد خوی دی د لسو ذمیمه خیو څخه فبدله الله بالتواضع بقوله انک لن تخرق الجبال الآیة ...... ابیات:

زخاک آفریدت خداوند پاک ...... پس ای بنده افتادگی کن چوخاک
تکبر زدانا بود ناپسند....... غریب این معنی از هوشمند
کسی راکه خصلت تکبر بود....... سرش پر غرور از تصور بود

وفي الحديث "من تعظم في نفسه واختال في مشيته" كه څوک ځان لوی بولي په خپل زړه کي، او خيال کوي په تګ کي "لقى الله وهو عليه غضبان" د خدای ﷻ سره به ملاقي سي په ورځ د قيامت چي هغه به ورده ته په غضب وي .. بيت:

تکبر بود عادت جاهلان ...... تکبر نيايد ز صاحب دلان

وعن عمرو بن سعيب ﷺ عن ابيه عن جده عن رسول الله ﷺ يحشر المتكبرون امثال الذر في صورة الرجال يوم القيامة يغشاهم الذل الى اخير الحديث" او له امير المؤمنين عمر ﷺ څخه روايت دی چي ده پر منبر نبوي ﷺ وويل "يا ايها الناس فاني سمعت رسول الله ﷺ يقول من تواضع لله رفعه الله فهو في نفسه صغير وفي اعين الناس كبير" كه چا تواضع او كم نفسي وكړه لپاره د خدای ﷻ . نو دی به پورته کړي خدای ﷻ . دی به په خپل زړه کي ځان خوار او عاجزه بولي، مګر د خلګو په سترګو کي به دی محترم او معزز سړی وي "ومن تكبر وضعه الله فهو في اعين الناس وفي نفسه كبير حتى لهو اهون عليهم من كلب او خنزير" او څوک چي کبر کوي خدای ﷻ بې کښته کړي يعني خوار صغير او ذليل بې وګرځوي، نو دی به په سترګو کي د خلګو حقير وي او دی په زړه کي ځان ډېر لوی شخصيت بولي حتى دی سپک وي پر خلګو تر سپي يا تر سرکوزي.... ابيات في التواضع:

دلا ګر تواضع کنی اختيار ....... شود خلق دنيا ترا دوست دار
تواضع زيادت کند جاه را ........كه از مهر پر تو بود ماه را
تواضع كند مرد را سرفراز ....... تواضع بود سروران را طراز[1]
تواضع بود حرمت افزائي تو ........كند در بهشت برين جای تو

ابيات درباب تکبر:

تکبر مکن زينهار ای پسر ....... که روزی ز دستش درايي بسر
چو دانی تکبر چرا میکنی ....... خطا میکنی و خطا میکنی
تکب ز دا نا بود ناپسند ....... غريب ايد اين معنی از هوشمند

---

[1] يعني د سردارانو زيور دی

له اسما بنت ابوبكر رضي الله عنهما څخه روايت دى دا وايي سمعت رسول الله ﷺ يقول بئس العبد عبد تخيل واختال ونسي الكبر المتعال الحديث.

كُلُّ ذٰلِكَ كَانَ سَيِّئُهٗ عِنْدَ رَبِّكَ مَكْرُوْهًا ﴿٣٨﴾

**يوه سه:** چي "سيئة" په رفع سره قرائت دى د كوفي قراؤ، كما في المصاحف المطبوعة، نو دا اسم د كان دى خبر يې ما بعد دى، او ذالك اشاره ده د خصال مذكوره وو ته من قوله تعالى "ولا تجعل مع الله الهًا آخر" الى اخير الخصال العشرة په تاويل د كل واحد. او ضمير د سيئه راجع و كل ته دى، وجه د اضافت د سيئ و كل ته داده چي په دغو خصالو كي منهي عنها يې بد دى "فان من الاشياً المذكورة منهي عنها ومامور بها" ترجمه: ټول له دغه شيان چي ذكر سول هغه چي سيئه دي هغه په نيز د رب ستا مكروه دي مراد له مكروه څخه مبغوض دى.

ذٰلِكَ مِمَّآ اَوْحٰى اِلَيْكَ رَبُّكَ مِنَ الْحِكْمَةِ ؕ

**يوه سه:** چي مظهري تفسير د "ذالك" داسي كړى دى اى الاحكام المتقدمة. وفيه ان المناسب ح ء لفظ تلك. او روح البيان يې تفسير داسي كړى دى "اى الذي تقدم من الاحكام والتكاليف المفصلة فراعى تذكير ذالك" او روح المعاني يې دا تفسير كړى دى اى المتقدم في التكاليف المفصلة. نو د رعايت د تذكير د "ذالك" كړى دى. او توجيه د قول د مظهري داده اى كل واحد من الاحكام المتقدمة.

**يوه سه:** چي حكمت علم الشرائع ته وايي او هغه دوه قسمه دى. يو حكمت نظري بولي چي مقصود اعلى او عمده يې معرفت دى د معبود بالحق دى په وحدانيت او په ستايلو په صفاتو د جلال او جمال. او بل حكمت عملي دى چي پېژندل او زده كړه د اعمال صالحه وو ده للعمل بها. او دا هم احتمال سته چي مراد من الحكمة دي دا وي الاحكام المحكمة التي لايتطرق اليها الفساد والاتيان بالمثل. او په قاموس كي وايي چي حكمة بالكسر العدل. والعلم والحلم والعقل والنبوة والقرآن. مظهري مختاره كړې ده چي مراد څني علم نافع دى.

**درويش وايي:** چي علم نافع شامل دى و حكمت نظري او عملي دواړو ته كمامر آنفًا فتامل.

وَلَا تَجْعَلْ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ فَتُلْقٰى فِيْ جَهَنَّمَ مَلُوْمًا مَّدْحُوْرًا ﴿۳۹﴾

او ته مه ګرځوه سره د خدای ﷻ سره معبود بل. که پتان وي او که ملائکه وي که عیسی علیه السلام وي (والمراد لاتعبد غيره تعالى والمخاطب ههنا هو نفس انسان) ته به واچول سې په دوږخ کې په داسي حال کې چي ته ایها الانسان پر ځان ملامتیا وایه، او خدای ﷻ به دي هم ملامت او خاسر بولي والخلائق كلها. او ته به ترټلی یې له رحمت عامه څخه د خدای ﷻ.

**پوښتنه:** دا توحيد خو دمخه هم تیر سو "لاتجعل مع الله الهًا آخر" نو د تکرار فائده یې څه ده؟

**ځواب:** فائده د تکرار تنبیه ده پر دې چي توحید د خدای ﷻ اصل الاصول دی او شرط د صحت د ټولو اعمالو ظاهره وباطنه ؤ مالیه وجسدیه ؤ دی او پای هم د ټولو اعمالو دی، ولي هغه څوک چي یو کار کوي یا یې پرېږدي لغیر وجه الله سعي یې ضائع ده، او که مؤمن وي ریاء یې کوي که د خدای ﷻ یخښنه نه وي ځای یې دوږخ دی، نتیجة، علم التوحید علم مقصود لذاته دی او نور علوم شرعیه مقصود لپاره د عمل دي.

اَفَاَصْفٰىكُمْ رَبُّكُمْ بِالْبَنِيْنَ وَاتَّخَذَ مِنَ الْمَلٰٓئِكَةِ اِنَاثًا ؕ

آیا تاسي مختاره کوئ خدای ﷻ.

**پوه سه:** چي دا خطاب دی و هغه مشرکینو ته چي وایي ملکي د خدای ﷻ لوڼې دي او د هغو عبادت کوئ، او دوی وایي چي خدای ﷻ د پېراتو د سردارانو لوڼې په نکاح کړي دي، او ملکي ټولي لوڼې یې پیدا سوي دي.

**پوه سه:** پوه سه چي استفهام لپاره د انکار دی، یعني داغسي نه ده بلکي خدای ﷻ منزه دی له ولد څخه که نر وي او که ښځه لعدم المجانسته والمناسبته بين واجب الوجود والممكن بلکي عباد مكرمون او مخلوق د خدای ﷻ دي.

**فائده:** حروف عاطفه که واو، فا او که ثم وي چي وروسته تر همزه استفهام راسي چي مقتضی د صدارت د کلام کوي معطوف دي پر محذوف باندي چي په

هر ځای کي هغه مقدر مناسب د مقام سره مقدر یږي. والتقدير فاصفكم بالبنين واختاركم "ربكم" بما هو الصفوة من الاولا اى "بالبنين" چي د هر انسان خصوصاً العرب والمشركين تر لونبو زامن خوښ دي "واتخذ" لپاره د ځان اخس الاولاد عندكم "من الملائكة اناثاً" له ملكو ښځه لوني او دا تقسيم خلاف د انصاف دی او ستاسي د عادت كريمه "الكم الذكر وله الانثى تلك اذاً قسمة ضيزى"

إِنَّكُمْ لَتَقُولُونَ قَوْلًا عَظِيمًا ﴿٤٠﴾

تاسي وایاست په حق كي د سبحانه خدای ﷻ لوی قول یعني په قباحت كي، ولي نسبت د اولاد و خدای ﷻ ته بد ترین د اقوالو دي او تشبیه د خدای د حیواناتو سره ده.

وَلَقَدْ صَرَّفْنَا فِي هَٰذَا الْقُرْآنِ لِيَذَّكَّرُوا وَمَا يَزِيدُهُمْ إِلَّا نُفُورًا ﴿٤١﴾

والله په تحقيق مونږ مكرر بيان كړې ده دغه خبر په ډېرو آياتو كي د قرآن په قسم قسم عباراتو سره چي خدای ﷻ منزه له اولاد ښځه دی. او یا معنی داده چي په قرآن كي مونږ بيان كړي دي عبرتونه، احكام، امثال او دلائل د توحيد او د تنزيه من التشبيه وغير ذالک مما لا يليق بشانه تعالى "ليذكروا" چي دوی پند واخلي او نسبت د داسي شیانو و خدای ﷻ ته نه وكړي چي د شان عظيم سره د خدای ﷻ مناسب نه وي بلكې مخال وي. او دوی يعني مشركينو ته دی زيات دا مكرر بيان د قرآن هيڅ شي فائده ونه كړه مګر نه نفرت او لېري والی له حق ځخه او اختيار د باطل كالغذا الجيد اللذيذ لا يزيد للمريض الا شدة المرض.

قُلْ لَوْ كَانَ مَعَهُ آلِهَةٌ كَمَا يَقُولُونَ إِذًا لَابْتَغَوْا إِلَىٰ ذِي الْعَرْشِ سَبِيلًا ﴿٤٢﴾

ووايه يا محمد (ﷺ) و مشركانو ته د مكې چي له توحيد ځخه د خدای ﷻ منكر دي، كه وای سره د خدایه خدايان لكه مشركين چي وايي چي زمونږ بتان د خدای ﷻ سره په استحقاق د عبادت شريكان دي، "اذاً" ظرف دی وروسته لپاره چي لا ابتغوا دی یعني اذا كان كذالك لكه تاسي چي وایاست، نو دي خدايانو به غوښتي وای و خالق ته د عرش لار يعني مقابلة لكه د بادشاهانو چي عادت دی،

مثل: خلګ وايي شل فقيران په يوه تلتک کي ځايږي او دوه لوى باچهان په يوه لوى مملکت کي نه سره ځايږي.

**درويش وايي:** چي دا آيت دليل د برهان تمانع اشاره ده لکه په بل آيت چي هم راغلى دى "لو كان فيهما" (اى التصرف في الارض والسما) الهة الا الله لفسدتا (د ځمکي او اسمانو نظام به خراب سوى واى) پوره بيان د برهان تمانع په کتابو کي د علم کلام دى لکن دلته مجملاً دا قدر ويل کيداى چي که متصرف د ځمکي او اسمانو کم عدد دوه خدايان واى، نو ددوى تر منځ اختلاف خو ممکن دى، نو که دوى په جنګ سره بخت سوي واى يا به دواړه عاجزه سوي واى يا يو وهو مناف للالوهية فافهم.

سُبۡحَٰنَهُۥ وَتَعَٰلَىٰ عَمَّا يَقُولُونَ عُلُوّٗا كَبِيرٗا ﴿٤٣﴾

پاک دى خداى ﷻ له تمانع څخه د بل خداى او له عجزه څخه. او بلند دى خداى ﷻ له هغه شي څخه چي مشركين يي وايي من ان الاصنام شركاً لله تعالى په لويه بلندي سره چي امكان يي نسته. امام دينوري رحمه الله په تفسير کي ددې قول د خداى ﷻ "وجنبني وبني ان نعبد الاصنام" وايي چي د مشركانو اصنام خو معلوم دي لکن علاوه تر هغو نور هم اصنام سته "منهم من صنمه نفسه" چي بت يي خپل نفس وي يعني د نفس په خواهشاتو کي لګه زنى. لواطت. شرب الخمر وغيرها اطاعت د خداى ﷻ پرېږدي كما اشير اليه في قوله تعالى "ارئيت من اتخذ الهه هواه" "ومنهم من صنمه زوجته" يعني په محبت کي د ماينې اطاعت د خداى ﷻ پرېږدي مثلاً خداى ﷻ زامن امر کړي دي په اطاعت د مور او پلار لکن د بعضي ښځو او ماينو د مهره مور او پلار نه وي خوښ، نو دى ددې په اطاعت مور او پلار له ځانه وشړي او په کور کي يي نه پرېږدي كما يشهد به التجربة. "ومنهم من صنمه تجارته" مثلاً خداى ﷻ تاجران منع کړي دي له خيانت او له بيوع فاسده وو څخه. او له سود اخستلو څخه وغيرها من الامور الممنوعة في التجارة لکن بعض تجاران د خپل تجارت د پرمخ بيولو لپاره د حلال او حرام فرق نه کوي. مثنوي:

اى تو بنده اين جهان محبوس جان ... چند گويى خويش را خواجه جهان

خدمت دیگر کنی هر صبح و شام... و انگهی گویی که من حق را غلام
بنده حق در درسش باشد مقیم... باخلوص و اعتقاد مستقیم

تُسَبِّحُ لَهُ السَّمٰوٰتُ السَّبْعُ وَالْاَرْضُ وَمَنْ فِيْهِنَّ

تنزیه او پاکي وایي خدای (جل جلاله) لره اسمانونه او مځکه او هغه څوک چي په اسمانو کي وي که ذوی العقول وي لکه ملکي په اسمانو کي او که غیر ذوی العقول وي لکه ستوري، او په مځکه کي بیا که ذوی العقول وي لکه انسانان او که غیر ذوی العقول وي لکه نباتات جمادات.

**سوال**: کلمه د "من" خو نحات وایي چي په ذوی العقول پوري خاصه ده، نو غیر ذوی العقول ته یې شمول څرنګه صحیح دی؟

**ځواب**: تسبیح چي خدای (جل جلاله) تولو ته ثابته کړه چي په ظاهره خاص په ذوی العقول پوري ده، نو تول ګویا بل حقیقةً په دربار کي د خدای (جل جلاله) ذوی العقول دي فافهم.

وَاِنْ مِّنْ شَيْءٍ اِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهٖ وَلٰكِنْ لَّا تَفْقَهُوْنَ تَسْبِيْحَهُمْ

او نشته یو شی له شیانو څخه مګر تسبیح او تنزیه وایي د خدای (جل جلاله) عما لایلیق بجلال ذاته وکمال صفاته متلبساً بحمده، یعني سبحان الله وبحمده، لکن تاسي په تسبیح د هر شي نه پوهیږئ. ولي تاسي لره یو سمع د ظاهر سته سمع د باطن نه لرئ لکه اهل الله چي یې لري.

**درویش وایي**: چي علماً د ظاهر تفسیر ددې آیت داسي کوي لکه چي روح المعاني وایي والمراد بالتسبیح الدلالة بلسان الحال ای تدل بامکانها وحدوثها دلالةً واضحةً علی وجوب وجوده تعالی ووحدته وقدرته وتنزهه من لوازم الحدوث والامکان آه. او علماً د باطن وایي لکه شیخ علي السمرقندي قدس سره في تفسیره بحر العلوم حیث قال وذهب السلف الصالح ان التسبیح في الآیة في المحلین محمو علی الحقیقة ای التسبیح بالقول. او زمخشري او بیضاوي او ابو السعود ومن یلیهم من العلماً الظاهر له تسبیح څخه في الموضعین تسبیح حالي مراد بولي او صاحب د روح البیان او مظهري لکه صاحب د بحر

العلوم له تسبيح څخه په دواړه ځايه کي تسبيح قولي مراد بولي.

**درويش وايي:** چي په صحيح حديث کي د بخاري وغيره راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام دمخه تر منبر نبوي يوه وچ لرګي ته د خورما تکيه کوله. چي منبر جوړ سو، عليه الصلوة والسلام پر منبر کښېنستی، نو هغه وچ لرګي ځګېروی شروع کړی پر فراق د عليه الصلوة والسلام، راوي وايي "حتى يكاد ان ينشق" عليه الصلوة والسلام بيرته له منبر څخه ورته راغلی لاس مبارک يې پر کښېښو حتی چي کرار کرار لرګی ساکت کېدی. راوي وايي "كالصبي الذي يسكت" اخير يې ژړا بس کړه. وفي المثنوي:

استن حنا نه از هجر رسول ..... نعره ميزد همچو ارباب عقول

گفت پيغمبر چه خواهی ای ستون ..... گفت جانم از فراقت گشت خون

وفي رواية البخاري عن عبد الله ابن مسعود ﷺ قال كنا نعد الايات بركة اي المعجزات النبوية وانتم تعدونها تخويفًا كنا مع النبي ﷺ في سفر فقل الما فقال اطلبوا فضلة. يعني د چا سره که بالا اوبه وي فجاؤا بانا فيه ما فادخل يعني رسول الله ﷺ" او بيا يې وويل چي راځئ مبارکو اوبو ته "والبركة من الله" راوي وايي چي ما وليدلې اوبه د ګوتو په منځ کي د رسول الله ﷺ راوتلې. راوي د حديث وايي چي موږ اورېدل تسبيح د طعام په هغه وخت کي چي موږ به خوړله. او مجاهد وايي چي ټوله شيان که حي وي او که جماد وي تسبيح د خدای ﷻ وايي. او تسبيح "سبحان الله وبحمده" ده، او ابراهيم نخعي وايي چي نسته يو شی که جماد وي او که حي الا يسبح بحمده. وايضًا قال الله تعالى في شان داؤد ﷺ "يا جبال اوبي معه والطير" او طبراني له ابن مسعود ﷺ څخه روايت کړی دی چي عليه الصلوة والسلام وويل چي يو غر و بل غره ته ناره کوي چي "هل مربک رجل ذكر الله" چي هغه غر ورته وايي نعم. هغه بل غر خوشاله سي. مظهري وايي چي په لسان حال تسبيح کمامر خو مسلم ده، نو پر يوه قسم تسبيح حصر کول يعني لسان الحال تقصير دی، او په صحيح حديث کي راغلي دي عليه الصلوة والسلام وايي چي زه هغه ډبره پېژنم په مکه کي چي زه به تېرېدم دې به السلام عليكم راته

ووايه دمخه تر دې چي زه نبي سوی وم. اوس يې هم پيژنم، او له ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی في قوله تعالى "انا سخرنا معه الجبال (اى لداود عليه السلام) يسبحن بالعشي والاشراق" ابن عباس رضي الله عنه وايي چي داود عليه السلام چي به تسبيح شروع کړه غرونو به څواب د تسبيح ورکاوه، وفي الحديث "ما اصطيد صيد في البحر ولاطائر يطير الا بما يضيع من تسبيح الله كما في تفسير المدارك" ترجمه: نه ښکاره کول کيږي يو صيد په درياب کي لکه ماهيان او نه هم مرغه چي الوزي مګر نه په سبب د ضائع والي د تسبيح د خدای جل جلاله.

**مسئله**: په باب کي د جنائز د خلاصة الفتوى راغلي دي چي مکروه دی پريکول د درختي يا د وښو چي لانده وي له قبره څخه د ميت بيله حاجته لانه يسبح فينتفع به الميت.

**درويش وايي**: چي هم دا سبب دی چي د هر خلګ د خپلو اقاربو مړو وسرو ته شنغزيان شنه کوي، ولي شنغزی خو محدوده زمانه اوبه غواړي چي دده ربښي و اوبو ته ورسيږي بيا تر ابده اوبه نه غواړي.

**فائده**: په فتح القريب کي راغلي دي چي برکت په تسبيح سره د نباتاتو مړي ته فائده رسيږي، فالقرآن الذي هو اشرف الاذكار اولى بحصول البركة والنفع خصوصاً اذا كان من رجل صالح. ولهذا استحب العلماء قرائة القرآن عند القبر.

چون بخاکم بگذری دامن کشان ..... از سر اخلاص الحمد بخوان

وعن ابي ذر رضي الله عنه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم حبس في مكان معه ابوبكر وعمر وعثمان رضي الله عنهم، نو عليه الصلوة والسلام اووه دانې شيګي راواخيستې په خپل مبارک لاس کي يې ونيولې، هغو شګو تسبيح شروع کړه حتى چي دوی واوريدله تسبيح ددې شيګو لکه د مچ مچی اواز، بيا عليه الصلوة والسلام هغه شيګي کښېښولې هغو تسبيح قطع کړه، بيا يې په لاس کي د ابوبکر رضي الله عنه کښېښولې بيا يې تسبيح شروع کړې، بيا يې په لاس کي د عمر رضي الله عنه او بيا يې په لاس کي د عثمان رضي الله عنه هم هغسي د شيګو تسبيح جاري وه، وهذا من باهر معجزاته صلى الله عليه وسلم.

**درويش وايي**: چي حکايات د اوليا الله د امت مرحومه په اوريدلو کي د

تسبیح د جماداتو نباتاتو بیخي ډېر دي، نو چونکه وهابیان او خوارج او مجسمه دي حکایاتو ته غوږ نه نسي بلکې پر خاندي، له دې کبله هغه حکایات درویش صرف نظر کړه چي دغه ولي بیا زما دوستانو ته ښه غورږ کوي چي ستاسي شیخ په تفسیر کي خرافات لیکلي وه. ولي چي دغه ولي پر امام المسلمین ابو حنیفة رحمه الله باندي تنقید کوي. نو عبید الله چي د امام اعظم رحمه الله د صف النعال په ولړ کي دی څوک دی.

## اِنَّهٗ كَانَ حَلِيْمًا غَفُوْرًا

په تحقیق خدای ﷻ لوی حلم والا دی چي ژر عقوبت ستاسي پر شرک نه درکوي ایها المشرکین "غفوراً" لمن تاب منکم من الشرک. وقال لا اله الا الله بالصدق والاخلاص بدون النفاق.

## وَاِذَا قَرَاْتَ الْقُرْاٰنَ جَعَلْنَا بَيْنَكَ وَبَيْنَ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ حِجَابًا مَّسْتُوْرًا

او چي ته یا محمد (ﷺ) تلاوت کوې د قرآن (ای علی مشرکی مکة) موږ ګرځوو په منځ کي ستا او د هغو کسانو چي ایمان نه لري پر آخرت (یعني بعث بعد الموت) یوه معنوي او باطني پرده چي ددوی زړونه له فهم څخه د ماقرئت علیهم منع کړي او نفع هم نه پر اخلي، چي دا حجاب پټ دی له سترګو څخه معنی چي پر دې حجاب سربېري بل حجاب دی، چي دوی په قرآن نه پوهېږي فهم تدبر وقبول. او په دې هم نه پوهېږي چي موږ نه پوهېږو (یعني پر خپل جهل هم علم نه لري چي دې ته جهل مرکب وایي) کما قال الشاعر:

آن کس که نداند و بداند که بداند ..... در جهل مرکب ابد الدهر بماند
وآن کس که نداند وبداند که نداند .... او اسپ خود از ګنبذفیروزه جهاند

چي دې ته جهل بسیط وایي ددې پوهېده اسانه دي لانه یعلم جهله فیطلب دفعه، او بعض اهل التفسیر وایي چي مستور په آیت کي په معنی د ساتر دی کما في قوله تعالی "کان وعده مأتیاً" ای آتیاً او محي السنة البغوي وایي چي

انه روي عن سعيد بن جبير ﷺ چي څه وخت چي دا آيت نازل سو "تبت يدا ابي لهب و تب" الى ان "وامرئته حمالة الحطب" نو مایننه د ابي لهب چي جمیله یې نوم ؤ راغله او ډبره ورسره وه او په حرم شریف کې نبي ﷺ له ابوبكر صديق ﷺ سره ناست ؤ، د ابو لهب مایني عليه الصلوة والسلام نه ليدی او ابوبکر ﷺ يې وليدی، نو ابوبکر ﷺ ته یې وویل این صاحبک، ماته رسېدلي ده چي ده زما او زما د مېړه هجو کړې ده (تعني بد يې راباندي ويلي دي كما هو مضمون السورة المذكورة) ابوبکر ﷺ ورته وویل والله ماینطق بالشعر ولايقوله (يعني دغه سورت چي ستاسي هجو پکښې ده نه شعر دی او نه د عليه الصلوة والسلام خپل قول دی، بلکې دا وحي اسماني دي يعني خدای ﷻ ستاسي هجو نازله کړې ده) نو دا بیرته رهي سوه او وه یې ویل چي ما دغه ډبره را اخستې وه چي دده سر به ورمات کړم، دا چي ولاړه نو ابوبکر ﷺ و عليه الصلوة والسلام ته وويل چي دې ته نه ليدلې قال ﷺ لا زما او ددې تر منځ ملک ولاړ وه ترڅو چي دا روانېدل زه یې له دې څخه پټ کړی وم.

**پوښتنه**: همېشه به کفارو عليه الصلوة والسلام په وخت کې د قرائت القرآن نه ليدی؟

**ځواب**: دا يوه واقعه وه نور وختونه همېشه په وخت کې د تلاوت القرآن او وعظ به کفارو عليه الصلوة والسلام ليدی.

## وَّجَعَلْنَا عَلٰى قُلُوْبِهِمْ اَكِنَّةً اَنْ يَّفْقَهُوْهُ وَفِيْٓ اٰذَانِهِمْ وَقْرًا

او مونږ ګرځولي وې پر زړو ددوی پردې چي ادارک د حق او قبول د حق یې نه کاوه "ان يفقهوه" ای کراهة ان يفقهوه. او په غوږو کې ددوی کڼوالی دی يمنعهم عن سماع القرآن سماع قبول.

**سوال**: چي خدای ﷻ داسي او داسي کړي وه نو دوی په ایمان نه راوړلو کې معذور نه وه او که څرنګه؟

**ځواب**: روح المعاني او روح البيان دواړه وايي چي د روح المعاني عبارت دادی وهذه كما قال بعض المحققين تمثيلات معربة (ای مظهرة) عن كمال

جهلهم بشؤن النبي ﷺ (چي دوی کامل جاهلان وه په حالاتو او کمالاتو د علیه الصلوٰة والسلام) وفرط تبو قلوبهم عن فهم القرآن الکریم المعجز (او ډېر لیرې دي زړونه ددوی له فهم څخه د قرآن. نو ګویا ددوی پر زړو اکنه دي چي مانع له فهم څخه د قرآن دی حق فهمه) ومج اسماعهم له (او بد وړو غوږو د دوی له اورېدلو څخه د قرآن، نو ګوا ددوی غوږونه کاڼه دي) جيئ بها بیانًا لعدم فقهم فصح المقال (رانګ وکړه سو په دې مثالو سره دده د بیان د نه پوهېدلو ددوی په فصیح د خبرو چي قرآن عزیز دی) او په اخیر کي روح المعاني ویلي دي چي حمل پر تمثیلاتو پر هغه تقدیر دي چي په ماقبل کي مراد له تسبیح څخه تسبیح حالي وي. وعلی جعله لفظیًا لایحسن حملها علی التمثیلات انتهی.

**درویش وایي**: چي موږ حمل د تسبیح پر تسبیح لفظي قولي په کامل تحقیق او تفصیل سره وڅېړل کمامر عنقریب. نو په قرار د اقرار د روح المعاني باید دلته هم د "اکنة" او "وقر" څخه معنی حقیقي مراد وي لکن دا "اکنة" او "وقر" د سوء اختیار ددوی کفر او شرک لره.

**سوال**: قرآن مبارک خو عربي دی دوی په پوهېدله. او دوی کاڼه هم نه وه، کریمه "اذ یستمعون لک" نو ظاهري کنان پر زړو ددوی او ظاهري صمم پر غوږو ددوی به څرنګه صحیح کېږي.

**ځواب**: فهم د ظاهر عباراتو د قرآن او اورېدل د ظاهر الفاظو د قرآن منافي ده کنان ظاهري او د صمم ظاهري سره منافات نه لري کما لایخفی علی من تأمل جدًا وهذا مقام وعر یحتاج الی تأمل دقیق.

## وَإِذَا ذَكَرْتَ رَبَّكَ فِى الْقُرْءَانِ وَحْدَهُۥ

او چي ته ذکر کړې "ربک" په قرآن کي یوازې یعني ددوی آلهه نه کړې ورسره ذکر ای تقولوا لا اله الا الله.

**پوه سه**: چي وحده مصدر دی په ځای کي د حال راغلی دی. اصله تحده وحده بمعنی واحدًا ای منفردًا نو هغه فعل یې حذف کړی چي اصلاً حال ؤ او مصدر یې په ځای کي ور وه دراوه.

وَلَّوْا عَلَىٰٓ أَدْبَارِهِمْ نُفُورًا ﴿٤٦﴾

او گرځي کافران تر شا چي تښتي له او ور پدلو ځخه د توحيد او نفرت يې ځني کيږي، نو "نفوراً" مفعول له دی، او يا "نفوراً" په معنی د تولیه دی، نو مفعول مطلق دی او يا نفور جمع د نافر ده، نو بيا منصوب علی الحالية دی.

نَّحْنُ أَعْلَمُ بِمَا يَسْتَمِعُونَ بِهِۦٓ إِذْ يَسْتَمِعُونَ إِلَيْكَ وَإِذْ هُمْ نَجْوَىٰٓ

موږ خبر يو په هغه طريقه چي قرآن دوی په هغه طريقه اوري چي دوی لپاره د استهزاً په تا (يعني عليه الصلوة والسلام) او په قرآن سره غوږ درته نيولی دی.

**يوه سه:** چي "اذ" ظرف دی اعلم. والمعنی هغه وخت چي ته وايه او دوی ستا و قرائت ته غوږ نيولی وي، او هغه وخت چي دوی په خپل منځ کي خبري سره کوي ستا په باره کي.

**يوه سه:** چي نجوىٰ مصدر دی په تقدير د ذو خبر دی د "هم".

**سوال:** "هم" جمع دی او "نجوىٰ" مفرد دی؟

**ځواب:** چونکه "نجوىٰ" په اصل کي مصدر دی، په مصدر کي جمع او مفرد برابر دي، او بعض مفسرين وايي چي "نجوىٰ" جمع د نجي ده، فلا يرد السوال المذکور، په يوه روايت کي راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام چي به قرآن وايه دوه کسه د بني عبد الدار به يې راسته بغل ته ودريدل او دوه پر چپه بخل، نو به يې چکچکي او شيپلکی او غزلي ويلې تا چي پر عليه الصلوة والسلام قرائت گډوډ کړي.

**درويش وايي:** چي زموږ د زمانې په ملايانو کښ ځوک مخامخ پسخند روهي بيا به هيڅ کله نصيحت ونه کړي.

إِذْ يَقُولُ ٱلظَّٰلِمُونَ إِن تَتَّبِعُونَ إِلَّا رَجُلًا مَّسْحُورًا ﴿٤٧﴾

هغه وخت چي وايي ظالمان يعني وليد بن المغيرة واصحابه او نورو خلگو ته، تاسي متابعت نه کوئ يعني مسلمانانو ته وايي يا کافرانو ته وايي علی الفرض والتقدير، يعني که يې تاسي فرضاً متابعت وکړئ مگر د هغه سړي چي

سحر په کړه سوی دی او عقل يې زائل سوی دی. او مجاهد رح وايي چې د مسحور معنی مخدوع ده يعني يو چا خطا يستلى وي. او بعض يې ترجمه په مصروف عن الحق سره کوي والمآل واحد.

انْظُرْ كَيْفَ ضَرَبُوا لَكَ الْأَمْثَالَ فَضَلُّوا فَلَا يَسْتَطِيعُونَ سَبِيلًا

وګوره يا محمد (ﷺ) څرنګه بيانوي کفار مکه ستا د امثال يعني بعض دي شاعر بولي، بعض دي ساحر بولي، بعض دي لېونی بولي بعض دي کاهن بولي او بعض دي مسحور بولي او بعض دي مفتر بولي، نو له دوی څخه لار ورکه سوه چې پر تا يې داسي نومان کښېښول چي ته يې مصداق نه يې. او نه ستا ور دي، نو دوی طاقت نه لري چې لاري ته د حق دي ورسېږي او يا لاري دي د طعن او عيب په تاکي پيدا کړي... بيت:

هر که تعظیم حق کند دائم ...... شود از دل بامر او قائم

وَقَالُوا أَإِذَا كُنَّا عِظَامًا وَرُفَاتًا أَإِنَّا لَمَبْعُوثُونَ خَلْقًا جَدِيدًا

او وويل مشرکانو د مکې په مقابل کي د تبليغ د عليه الصلوة والسلام دوی ته بالبعث بعد الموت والثواب والعقاب على الايمان والاشراک. آيا چې موږ سو يعني وروسته تر مرګ خالي هډوکي يعني غوښې مو خاوري سي يا چينجيان يې وخوري او هډوکي مو هم ټوټه ټوټه سي. او مجاهد رح وايي چې يعني خاوري سو. آيا موږ به بيا ژوندي کړه کېږو نوی مخلوق يعني کما کنا في الدنيا والاستفهام للانكار.

**پوه سه**: چې بعض مفسرين وايي چې نصب د خلقًا بنا پر مصدريت دی يعني مفعول مطلق د مبعوثون من غير لفظه کما في قعدت جلوسًا او ما چې اول ترجمه وکړه بنا پر دې وه چې خلق په معنی د مخلوق دی او منصوب على الحالية دی.

قُلْ كُونُوا حِجَارَةً أَوْ حَدِيدًا ۝ أَوْ خَلْقًا مِمَّا يَكْبُرُ فِي صُدُورِكُمْ

ته ووايه په ځواب کي د دوی چې تاسي د عظام رفات بيا ژوندي کېدل بعيد

بولې او سره ددې چې دغه هډوکي په حيوة الدنيا کي تازه او ژوندي وه تاسي تر دي بعيد عن الحيوة شيان سئ لکه ډبري يا وسپنه چي له حيوة څخه ببخي لېري دي او يا بل مخلوق لکه مس وغيره، يعني هغه شيان چي ستاسي په زړو کي حيوة ناممکن معلومېږي. لکن بيا هم به مو خداى ﷻ ژوندي کوي، ولي چي قدرت د خداى ﷻ قاصر نه دی له هيڅ ممکن شي څخه او احياً د اجسامو هر جسم چي وي که عظام رفات وي او که وسپنه وي او که ډبره وي که غر او که له ممکناتو څخه وي.

**پوښتنه**: دا امر چي "کونوا حجارة آه" دا خو تکليف بالمحال دی وهو لايجوز شرعاً؟

**ځواب**: دا خو امر تکليف او الزام نه دی بلکي امر تقدير والفرض دی ای افرضوا انفسکم کذا او کذا ومجرد الفرض ممکن کما في قولهم ان کان زيد حماراً فهو ناهق.

فَسَيَقُولُونَ مَنْ يُّعِيدُنَا ۖ قُلِ الَّذِىْ فَطَرَكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ ۚ

ژر دی چي دوی به درته ووايي چي څوک به موږ ژوندي ته راگرځوي؟ ته ورته ووايه (يا محمد ﷺ) چي هغه څوک چي تاسي يې پيدا کړي واست اول وار يعني د مور په رحم کي بيا په دنيا کي.

فَسَيُنْغِضُوْنَ اِلَيْكَ رُءُوْسَهُمْ وَيَقُوْلُوْنَ مَتٰى هُوَ ۖ

نو ژر دی چي دوی به درته وښوروي سرونه خپل (يعني تعجباً او استهزاءً) او دا به درته ووايي چي کله دی يعني بعث بعد الموت يعني نېټه يې راوښيه.

قُلْ عَسٰٓى اَنْ يَّكُوْنَ قَرِيْبًا ۝

ته ورته ووايه چي ښايي ژوند بعد الموت دي نژدې وي، يا له دې سببه چي هر راتلونکی شی نژدې دی وانما البعيد هو الماضي، او يا معنا داده چي شايد نژدې به وي تر ابتداً د خالق العالم.

**بوه سه**: چي قريباً منصوب دی خبر د عسى دی، او يا له دې سببه چي څوک

چي مړ سي فقد قامت قيامته، ولي انسان چي مړ سي نو د قيامت کبرى نخښي او نښاني به وويني لانه يرى الجنة والنار کما جاً في الحديث الصحيح، او ملکي به هم وويني يعني نکير او منکر چي په قبر کي له مړي څخه سوال کوي "من ربک ومن نبيک وما دينک کما جاً في الحديث الصحيح، او مړي تر مرگ وروسته پر هيڅ عمل قدرت نه لري، لکه د قيامت کبرى په ورځ او پر عمل يې که کفر ؤ او که اسلام، که طاعت ؤ او که عصيان مهر ولگول سي فيقوم يوم القيامة على ما مات عليه فطوبى لمن کان خاتمته بخير ..... بيت:

عبيد را خاتمه بالخير گردان ..... بحق مصطفى وچار ياران (ﷺ)

ابوبکر الواسطي رح وايي چي بادشاه گاني دري دي (۱) بادشاهي د ژوند ده چي ژوند تول په طاعت کي د خداى ﷻ تېر کړي (۲) بادشاهي د عند الموت چي روح يې په شهادت ده لا اله الا الله له بدن څخه رخصت واخلي (۳) بادشاهي د يوم الحشر والقيامة، هغه دا چي زېرى کوونکى ورته راسي په جنت سره عند بعثه. او پاته کافر او عاصي چي بې توبې مړ سي بېروونکي د اور ورته راځي يا ابداً لکه کافر او الى ماشاً الله که مؤمن عاصي ؤ.

**فائده:** خداى ﷻ و عليه الصلوة والسلام ته په ځواب کي د کفارو داسي وويل قل عسى ان يکون قريباً لان تعين يوم البعث لاعلم به لا لانبياً عليهم السلام ولا للملائکة المقربين کما جاً في الاحاديث الصحيحة المروية بالروايات المرفوعة.

## يَوْمَ يَدْعُوكُمْ فَتَسْتَجِيبُونَ بِحَمْدِهِ

هغه ورځ چي خداى ﷻ وغواړي تاسي يعني لپاره د ژوند له قبرو څخه پر ژبه د اسرافيل عليه السلام وهو النفخة الثانية. نو تاسي بلا مهلته قبلوئه د خداى ﷻ د دعوت يعني ژوندي به سئ تول په قدرت د خداى ﷻ. حسين کاشفي وايي: بخوانند شمارا اسرافيل درنفخه ثانيه بجهت قيام از قبور پس شما اجابت کنيد اسرافيل را.

**اعراب:** لفظ د "يوم" بدل دى له قريباً څخه. او يا منصوب دى په اذکر مقدر سره.

**پوه سه:** چي مقصود ددې دعوت څخه احضار د خلگو دى د حساب لپاره.

**پوه سه:** چي "بحمده" حال دى له فاعله څخه د "تستعجبون" اى متلبسين

يحمده يعني حمد د خداى ﷻ به وايي پر كمال قدرت دده او اقرار به كوي په دې سره چي خالق او پالونكى زموږ خداى ﷻ دى لكن كافرانو ته به په دې وخت كي حمد ويل او اقرار كول فائده نه كوي. او بعض مفسرين وايي چي دا خطاب د "يدعوكم" د مؤمنانو سره دى، فانهم يبعثون حامدين لله، بخلاف الكافرين ولي دوى چي بعث سي دا ناري وهي "يا ويلنا من بعثنا من مرقدنا؟" ملكي ورته وايي "هذا ما وعد الرحمن وصدق المرسلون" يا دا ناري وهي "يا حسرتي على ما فرطت في جنب الله". ختللي په خپل كتاب دبياج كي وايي په روايت د ابن عباس ﷺ عن النبي ﷺ قال اخبرني جبرئيل ان لا اله الا الله انس للمسلم عند موته وفي قبره وحين يخرج من قبره يا محمد لو تراهم حين يقومون من قبورهم ينفضون رؤسهم (پاكوي سرونه له خاورو څخه) يقول هذا اى المؤمن لا اله الا الله والحمد لله، نو مخان يې سپين سي. وهذا اى الكافر ينادي ياحسرتي على مافرطت في جنب الله مسودة وجوههم.

**درويش وايي**: چي روح المعاني او مظهري دواړو له طبراني او ترمذي څخه هغه له ابن عمر ﷺ څخه روايت كړى دى چي رسول الله وويل "ليس على اهل لا اله الا الله وحشة في الموت ولا في القبور ولا عند النشور (اى البعث بعد الموت) كاني انظر اليهم عند الصيحة (اى النفخة الثانية لاسرافيل) ينفضون رؤسهم من التراب (پاكوي خپل سرونه له خاورو څخه) يقولون الحمد لله الذي اذهب عنا الحزن (اى الغم والدهشة والخوف).

**پوښتنه**: په حديث شريف كي محمد رسول الله ﷺ نه دوايه؟

**ځواب**: لا اله الا الله خو مشتركه كلمه ده، نو د حديث معنى داده چي پر مؤمن د هيڅ امت باندي چي اهل د لا اله الا الله تولنه دي په دې درې ځايه كي وحشت نسته، والله اعلم بمراد رسوله ﷺ.

وَتَظُنُّونَ إِن لَّبِثْتُمْ إِلَّا قَلِيلًا ۝

او تاسي دا گمان كوئ چي موږ درنگ نه دى كړى په دنيا كي يا په قبرو كي مگر لږ زمانه، ولي چي دوى هول د محشر د خپله مكثه في الدنيا يا د قبرو

غافله کړي، قتاده رحمه الله وايي چي دوى حقير او قليل وبولي مدت د دنيا په مقابل
کي د زمانې د قيامت چي خمسون الف سنة ده.

**فائده**: کلبي رحمه الله وايي چي مشرکانو د مکې به مسلمانان ډېر ازارول او
تکليفونه به يې قولاً او فعلاً ور رسول، نو دوى و آنحضرت صلى الله عليه وسلم ته دا شکايت
وکړى، فانزل الله عزوجل هذه الآية:

**وَقُل لِّعِبَادِي يَقُولُوا الَّتِي هِيَ أَحْسَنُ**

ووايه ته (يامحمد صلى الله عليه وسلم) "لعبادي" الاضافة تشريف المضاف" زما و بندګانو
ته چي مراد ځني مؤمنان دي، چي تاسي وايـاست هغه کلمه چي احسن د کلماتو
وي چي مراد ځني دعوت دى واسلام ته او قول ته د لا اله الا الله په نرمي. سره او د
کفارو سره دلائل وايـاست او اظهار د خير خواهي. ور ته کوئ بيلـه خشونته او
ځيږوالي، او تاسي ددوى د بېوقوفي مقابله په ور تـه خبرو مه کوئ لعلهم
يهتدون، او حسن وايي چي داسي دي په مقابل کي د ازار ددوى وايي يهديک
الله، خداى جل جلاله دي هدايت در تـه وکړي، قال وهذا قبل الامر بالقتال والجهاد
معهم بالسيف، او بعض مفسرين وايي چي عمر بن الخطاب رضي الله عنه ته بعضي
کافرانو بـکنځل وکړه، نو دى خداى جل جلاله په عفوه سره مأمور کړى.

**درويش وايي**: چي شان نزول د آيت هر څه چي دى لکن دا خبره مثل سوې خبره ده
عند الکل چي مسلمانان دي په خپل منځ کي د رفق او نرمي. څخه کار واخلي که څه
هم جزاً سيئة سيئة بمثلها وارد دى، وان تعفوا هو اقرب للتقوى هم راغلي دي.

**إِنَّ الشَّيْطَانَ يَنزَغُ بَيْنَهُمْ ۚ إِنَّ الشَّيْطَانَ كَانَ لِلْإِنسَانِ عَدُوًّا مُّبِينًا**

په تحقيق شيطان ايقاع د فساد او نزاع کوي په منځ کي د بندګانو د خداى
جل جلاله يعني داسي قول يا فعل دي نه کوي بندګان د خداى جل جلاله چي شيطان ته لار د
افساد پرانيزي، په تحقيق شيطان د انسان دښمن او ظاهر العداوة دى د هغه وخته
څخه چي دده څخه يې کالي د نور وکښل په سبب د انکار له امر څخه د خداى جل جلاله
چي دى امر کړل سو د ملکو په لوى جماعت کي په سجده و آدم عليه السلام ته.

رَبُّكُمْ أَعْلَمُ بِكُمْ ۖ إِن يَشَأْ يَرْحَمْكُمْ أَوْ إِن يَشَأْ يُعَذِّبْكُمْ ۚ

خدای ستاسي په تاسي ښه خبر دی، که د خدای ﷻ مشیت سي پر تاسي به رحم وکړي يعني توفيق د ايمان به درکړي چي سبب د رحم په وګرځي تاسي لره، او که يې اراده سي تاسي به په عذاب کړي په اخرت کي يعني مړه به مو کړي پر شرک باندي، نو به یاست په عذاب په اخرت کي، دا وه ترجمه د ابن جريج او بعض مفسرين وايي چي دا آیت تفسير د د التي هي احسن دی، او په منځ کي جمله معترضه ده يعني ان الشيطان آه والمعنى على هذا چي تاسي ووایاست کافرانو دغه خبره "ربكم اعلم آه" یا مثل ددې چي ښه کلمه وي چي د کافرانو وينه په جوش رانسي او سبب د قتل و قتال ونه ګرځي او ښکنځل مه ورته کوئ، او تصريح په دې مه ورته کوئ چي تاسي دوږخيان یاست، ولي یو خو دا خبره باعث د شر ګرځي او بل داده چي خاتمه پټه ده او غيب د لا يعلمه الا الله، نو دا خبره د انصاف چي کافران واوري، امکان لري چي خپل په ګرېوان به سر ننباسي او ایمان به راوړي، او کلبي رحمه الله وايي چي دا خطاب دی د خدای ﷻ له خوا و مؤمنانو ته د اهل مکې چي کافرانو به ډېر ربړول، والمعنى على هذا ان يشأ يرحمكم فينجيكم من اهل مكة وان يشأ يعذبكم، يعني كفار به پر تاسي مسلط کړي وهذا تأويل بعيد جداً فافهم.

وَمَا أَرْسَلْنَاكَ عَلَيْهِمْ وَكِيلًا ﴿٥٤﴾

او موږ نه يې استولی ته يا محمد (ﷺ) پر کفارو باندي وکيل چي ددوی امر او حال مي تاته سپارلی دی حتی چي ته په کفر ددوی غمجن کېږې. بلکې ته بشير يې د مؤمنانو لپاره. او بېرونکی يې د کافرانو لپاره نو ددوی سره مدارات او نرمي، خبري وکړئ او اصحاب دې امر کړه چي برداشت او تحمل ددوی دا اذيت دې کوي، حافظ شيرازي وايي:

اسايشي دوګيتي تفسير اين دو حرف است
با دوستان تلطف با دشمنان مدارا

بعض علماً چې د انسان کامل ژوند دادی چې "باخدا بصدق (ای الاخلاق) وباخلق بانصاف. وبالنفس بقهر "ای الغلبة" وبازیر دستان بشفقت. وبابزرگان (یعني د مشرکانو خلګو سره) بحرمت. وبادوستان بنصیحت (یعني بخیر خواهی) وبادشمنان بمدارا (یعني غوره مالي) وبا علماً بتواضع. وبادرویشان بسخا. وبا جاهلان بخاموشی (یعني کله یو جاهل بده خبره درته وکړه ورسره پسر کېږه مه بلکې خاموش ورته وه اوسه.

## وَرَبُّكَ أَعْلَمُ بِمَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ

او ستا خدای ښه خبر دی تر ټولو یعني که ملکي وي او که بشر وي په هغه سره چې په اسمانو کې دي من الملائکة. او په ځمکه کې دي لکه انبیاً او اولیاً. او په تفصیل د احوالو او استعداداتو ددوی. نو خدای ﷻ مختاره کوي د نبوت لپاره یا د ولایت لپاره هغه څوک چې مستحق یې وي.

**درویش وایي:** چې مفسرین ټول وایي چې په دې آیت کې رد دی د قول د قریشو د مکې چې یتیم د ابو طالب یعني محمد ﷺ څرنګه خدای ﷻ غوره کړی د نبوت لپاره او سره ددې سرداران او سرمایه داران زموږ موجود وه، نو څرنګه لځ او وږي کسان دده اصحاب سوه لکه صهیب او بلال او خباب وغیرهم ﷺ. او ذکر د "السموات" په آیت کې ددې لپاره دی چې قریشو د مکې به ویل "لو لا انزل علینا الملائکة" او ذکر د "ارض" یې ددې لپاره وکړی چې دا قول د قریشو رد کړي "لولا نزل هذا القرآن علی رجل من القریتین عظیم" ولې نازل نه کړل سو دا قرآن پر یو سړي د دوو ښارو چې هغه سړی عظیم القدر دی. ددوی مراد ولید بن المغیرة ؤ په مکه کې غټ سرمایه دار ؤ، او عروة بن مسعود ثقفي په طائف کې، او بعض مفسرینو نور کسان ذکر کړي دي.

## وَلَقَدْ فَضَّلْنَا بَعْضَ النَّبِيِّينَ عَلَىٰ بَعْضٍ

والله په تحقیق سره ما تفصیل ورکړی دی بعض انبیاؤ ته پر بعضو باندې په فضائلو کې د نفس او تبرې کې د علائق جسمانیه وو څخه لا بکثرة الاموال والاولاد ونحو ذالک. قتاده په تفسیر کې ددې آیت وایي "اتخذ الله ابراهیم

خليلاً وكلم موسى تكليماً وكلم عيسى في المهد صبياً وآتاه الكتاب والحكمة وعلمه التوراة والانجيل وايده بروح القدس (لکه دا تولـه پـه نورو آياتو سره د قرآن ثابت دی) وآتى سليمان ملكاً لاينبغي لاحد من بعده يعني سخر له الجن والانس والشياطين" هذا ما ذكره المظهري في تفسيره.

**درويش وايي:** چي دا خبره د مظهري چي ده پـه متابعت د بيضاوي او د ابو السعود کړې ده، روح البيان وايي وهو خطأ لان تفاضلهم في ذالک انما هو على من عداهم من افراد الامة لا على اخوانهم من الانبياء. روح البيان وايي چي علائق جسمانية او روحية په انبياء عليهم السلام هيڅ نه دي لمنافاتها الوصول الى الله تعالى وروسته روح البيان ويلي دي. فالوجه في التفضيل انما هو بالكتاب والرسالة والخلة والتكليم والمعراج و روية الله تعالى والشفاعة ونحو ذالک قال الله تعالى في موضع آخر من كتابه "تلک الرسل فضلنا بعضهم على بعض منهم من كلم الله الآية والقرآن يفسر بعضه بعضاً".

## وَآتَيْنَا دَاوُودَ زَبُورًا ﴿٥٥﴾

موږ ورکړی ؤ داؤد (عليه السلام) ته زبور. چي دده کتاب ؤ. يعني فضيلت د داؤد عليه السلام په سبب د کتاب دی لابما اوتي بسعة الملک وكثرة الاموال.

**پوهه:** چي په دې آيت کي رد دی پر کفارو د مکې چي هغه له فضل څخه د عليه الصلوة والسلام منکر وه په دې سبب چي عليه الصلوة والسلام ته سلطنت لږي لکه داؤد و ابنه سليمان عليهما السلام. نه وپر اموال او اولاد لري لکه نورو انبياؤ چي درلوده. حاصل د رد يې دادی چي دا شيان اسباب د فضيلت نه دي بلکې اسباب د فضيلت نور دي او پـه دې آيت کي هم اشاره د فضل د عليه الصلوة والسلام پر داؤد عليه السلام لکه فضل د قرآن مجيد پر زبور باندي، ولي قرآن مبارک مشتمل دی پر حلال او حرام او تحميد او تبجيل د خدای جل جلاله او پر قصصو او امثالو وغير ذالک. او زبور شريف يونيم سل (۱۵۰) سورته ؤ تولـه سورتونه يې دعا. تحميد او ثنا على الله عزوجل وه ليس فيها حلال ولا حرام ولا فرائض ولا حدود كذا قال البغوي، او په زبور کي د عليه الصلوة والسلام ذکر هم ؤ. بلکې د تواريخو قديمه په پاڼو کي

راغلي دي چي نعت د نبي عليه السلام او دده د امت مرحومه ذكر په ټولو كتبو قديمه اسمانيه وو كي راغلي دى، وكفى به فضلاً لنبينا ﷺ. يو شاعر وايي:

اى وصف تو در كتاب موسى ........ وى نعت تو در زبور داؤد

په جامع الاصول كي چي يو كتاب جليل دى چي د صحاح ستة ټولو احاديث پكښي جمع دي په حذف سره د مكررو احاديثو او مشترک حديثونه يي يو وار راوړي دي چي پر څو جلدو مشتمل دى كه څوک دغه جامع الاصول په ښه غور او تحقيق زده كړي د ټوله صحاح ستة به يي كافي وي، راغلي دي په روايت د زهري رح له ابن عباس رضي الله عنهما څخه چي يوه ورځ اصحاب د رسول الله ﷺ په مسجد نبوي كي ناست وه خبري يي سره كولي په انتظار د راوتلو د عليه الصلوة والسلام او خبري ددوى دا وي، يوه ويل "ماذا عجباً ان الله اتخذ ابراهيم خليلاً" او بل وويل "ما اذا اعجب من كلام موسى كلمه الله" او بل وويل "ماذا اعجب من جعل عيسى كلمة الله وروحه" او بل وويل "ماذا اعجب من آدم اصطفاه الله" عليه الصلوة والسلام راغلى او سلام يي وواېه و اصحابو ته او وه يي ويل چي ما ستاسي خبري واورېدلې او ددوى د خبرو تائيد يي وكړى چي بېشكه ابراهيم خليل الله دى، او بېشكه چي موسى كليم الله دى او بېشكه چي عيسى روح الله او كلمة الله دى، او بېشكه چي آدم صفي الله دى "الا وانا حبيب الله ولا فخر وانا حامل لوأ الحمد ولا فخر، وانا اكرم الاولين والآخرين على الله ولا فخر، وانا اول من يحرک حلقة الجنة فيفتح الله فادخلها ومعي فقرأ المهاجرين ولا فخر" وفي حديث اورده بحر العلوم في تفسيره چي عليه الصلوة والسلام وويل "ان الله اختارني على الانبيأ واختار اصحابي رضي الله عنهم على جميع العالمين سوى النبيين والمرسلين واختار من اصحابي اربعة ابابكر وعمر وعثمان و علي رضي الله عنهم".

**درويش وايي:** چي په دغه ترتيب ذكر كولو د نبي عليه السلام دوى لره اشاره ده ترتيب د خلافت ددوى والله اعلم ... جامي رح وايي:

خدا بر سروران سرداريش داد ........ زخيل انبيأ سالاريش داد

**درويش وايي:** چي فضائل د عليه الصلوة والسلام ېېخي ډېر دي حتى چي

متبحر علماؤ په بیان کي د فضائلو مصنفات تصنیف کړي دي من جملتها (۱)چي دی خدای ﷺ خاتم النبیین ګرځولی دی (۲) امت دده یې خیر الامم ګرځولي دي (۳) قرآن یې دده کتاب ګرځولی دی چي اقل حجماً دی او اکثر علماً دی (۴) په خپله قرآن معجزه باقیه ده د علیه الصلوٰة والسلام کر الازمان ومر الدهور ، کریمه "ان کنتم في ریب الآیة" (۵) او د معراج په شپه. ثم دنی فتدلی فکان قاب قوسین او ادنی. لویو درجو ته رسولي دي الی غیر ذالک.

دفتر تمام گشت وبه پایان رسید عمر . ما همچنان در اول وصف تو مانده ایم

**سوال:** "زبوراً" دلته نکره راغلی دی او په صورت انبیاً کي یې معرفه راوړی دی یعني قوله تعالی "ولقد کتبنا في الزبور" وجه یې څه ده؟

**ځواب:** روح البیان وایي چي معرفه او نکره سره یو دي لکه عباس او العباس انتهی. او مظهري هم ورته توجیه کړې ده. بخاري او نورو کتابو لکه عبدالرزاق. ابن ابي شیبة. النسائي. الطبراني او نور جماعت هم له بن مسعود ﷺ څخه روایت راوړی دی چي بعض خلګ وه د انسانانو چي د جنیاتو عبادت یې کاوه. هغو جنیاتو ایمان راوړی او هغه انسانان په هغه عبادت د هغو کما کان بخت وه. فانزل الله تعالی هذه الآیات.

**درویش وایي:** چي دا شان نزول خو مظهري بیان کړی دی لکن روح البیان ترجمه د آیت داسي کړې چي دا آیت په مشرکینو کي د مکې نازل سوی دی.

قُلِ ادْعُوا الَّذِينَ زَعَمْتُم مِّن دُونِهِ فَلَا يَمْلِكُونَ كَشْفَ الضُّرِّ عَنكُمْ وَلَا تَحْوِيلًا ﴿٥٦﴾

ووایاست اې مشرکینو د مکې هغه شیان چي ستاسي ګمان ؤ چي دا آلهه دي "من دونه" ای متجاوزین الله "فلا یملکون" ددوی په طاقت نه ده پوره کشف کول د ضرر لکه مرض، فقر او قحط دي چي له تاسي څخه دفع کړي. نه دا چي وه بل جانه نقل ستاسي د ضرر وکړي.

**أُولَٰئِكَ الَّذِينَ يَدْعُونَ يَبْتَغُونَ إِلَىٰ رَبِّهِمُ الْوَسِيلَةَ أَيُّهُمْ أَقْرَبُ**

اى يدعوهم المشركون آلهة او عبادت يې كوئ يعني من الجن. ولي دوى يعني الجن غواړي و خداى ته ددوى قربت او نژدېوالى په طاعت سره. ولي چې ايمان يې راوړى پر عليه الصلوة والسلام "فالوسيلة الى الله تعالى مراعات سبيله اى الله بالعلم والعمل" او مراعات د احكام د شريعت.

**درويش وايي:** چې دا ترجمه موافق د حديث سره د بخاري، عبدالرزاق، ابن ابي شيبه، طبراني، نسائي او د نورو محدثينو رحمهم الله ده چې لـه عبد الله بن مسعود رضي الله عنه څخه يې روايت كړى ؤ او د رائې سره د مظهري رح. لكن د روح البيان ترجمه ډېره مشكله ده. ولي ده خو داسي وويل "بخوانيد اى مشركان مكه" مشركانو د مكې خو عبادت د بتانو كاوه، وروسته روح البيان د "من دونه" په تفسير كي ويلي دي "كالملائكة والمسيح وامه وعزير" نو سوال دادى چې كفارو د مكې كله عيسى او مور ده او عزير خدايان بلل. البته يو قوم د عربو د مكې د خزاعه په نامه كما رواه البيهقي، او په روايت كي د ابن جرير داسي راغلي دي كان قبائل من العرب يعبدون صنفًا من الملائكة يقال لهم الجن ويقولون هم بناته سبحانه وتعالى، بلكي مسيح او مورده خو بعض نصارى وو خدايان بلل. او عزير عليه السلام خو يهودانو خداى باله. القول الفصيل.

**درويش وايي:** چې په ترجمه كي د روح البيان دا خو صحيح ده چې مشركان د مكې په ادعوا سره مخاطب دي ولي مشركان د مكې يعني خزاعه د ملكو عبادت كاوه، او نورو مشركانو د مكې د بتانو عبادت كاوه.

**سوال:** دا قول د خداى جل جلاله "يبتغون الى ربهم الوسيلة" د ملكو په باره كي خو به صحيح سي. لكن بتان خو جمادات وه د هغو په باره كي دا آيت څرنگه به تطبيق سي؟

**ځواب:** په دې آيت كي تغليب دى د ذوى العقول چې ملائكه دي پر غير ذوى العقول چې بتان دي، دا وه سعي د فقير په تصحيح كي د قول او د تفسير د روح البيان. لكن له جواب څخه د دمخه سوال چې فقير ذكر كړى چې كفار د مكې

کله آه. درویش عاجزه دی، والله اعلم بمراد عباده. لکن باید علما تفسیر د روح المعاني په غور مطالعه کړي.

**يوه سه:** چي "ايهم اقرب" بدل من واو يبتغون. والمعنى غواړي هغه څوک ددوی چي اقرب و خدای ﷻ ته وسیله و خدای ﷻ ته وگرځوي فکیف حال غير الاقرب منهم كذا قال الزجاج رحمه الله او بعض مفسرين وايي چي دوی طلب کوي د اقرب الى الله او په هغه توسل و خدای ﷻ ته کوي، او بعض مفسرین وايي چي "يبتغون" متضمن معنى لره د حرص دی، والمعنى دوی حرص کوي چي څوک به ځان نژدې کړي و خدای ﷻ ته يعني بالطاعة و ازدياد الخير.

**وَيَرْجُونَ رَحْمَتَهُ وَيَخَافُونَ عَذَابَهُ ۚ إِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ كَانَ مَحْذُورًا ﴿٥٧﴾**

او امید کوي دا کسان چي تاسي به آلهه بولي لکه ملائکه د خدای ﷻ ورحمت ته او بیرېږي د خدای ﷻ له عذاب څخه فکیف تزعمونها انها آلهة لان الآلهة مستغني من غير ولا يخاف العقاب. په تحقیق عذاب د رب ستا لائق ددې دی چي هر څوک ځني وبیرېږي که نبي مرسل وي او که ملائکه وي. بغوي رحمه الله وايي چي مشرکینو ته د مکې سخته قحط سالي راغله تر دې اندازې چي مردار شیان به یې خوړله. اخیر مجبوره سوه و علیه الصلوة والسلام ته یې استغاثه وکړه تاچي د دفع د قحط په باره کي دوی ته دعا وکړي فانزل الله تعالى "قل (اى للمشركين) ادعوا الذين انها آلهة من دون الله فلا يملكون كشف الضر عنكم" الى اخير الآية.

**درویش وايي:** چي پر عاقل سړي لازمه ده چي اغترار (یعني د چا په خبرو خطا نه وزي) ويحذر من بطش القهار" پوهان وايي چي ډېر غم سړی له ډوډی څخه منع کوي او بیره د خدای ﷻ سړی له گناه څخه منع کوي، او امید و خدای ﷻ ته سړی پر عبادت باعثه کوي او پیادول د مرگ سړی له فضولو کارو څخه منع کوي.

**فائده:** خوف او رجا باید د خدای ﷻ څخه وي لان المعبود بالحق هو المفيض للخير والجود، واما الانبيا عليهم السلام و الاوليا الكمل رحمهم الله فوسائط بين المعبود بالحق والخلق فيجب على الخلق اطاعتهم والاقتدا باقوالهم وافعالهم من حيث نبوتهم و وراثهم، ولي لوړ بام ته چي سړی مثلاً خېژي په

غالب الاسباب کي ځینه غواړي ... مثنوي:

از انس فرزند مالک امده است ...... که بمهماني او شخصی شده است
او حکایت کرد کزبعد طعام ...... دید انس دستار خوانرا زرد فام
چرک و آلوده گفت ای خادمه ...... اندر افگن در تنور یکد مه
در تنور پرز آتش در فگند ...... آن دستار خوان راهو شمند
(ای شخص هوشیار که انس بود که خادم بامر وی دستار خوار درتنور فگند)
بعدز یکساعت درآورد از تنور ...... پاک وسپید ازان اوساخ دور
قوم گفتند ای صحابي عزیز ...... چون نه سوزید ومنقی گشت نیز
گفت زانکه مصطفی دست ودهان ...... بس بمالید اندرین دستارخوان
چون جمادی را چنین تشریف داد ...... جان عاشق راچه خواهد کشاد

**حکایت**: دربیان خوف کاملان از هول یوم القیام، له عبدالله بن عباس ﷺ څخه روایت دی چي بخاري او نورو کتابو راوړی دی چي څه وخت چي ابو لؤلؤ مجوسي چي د مغیره ﷺ مریی ؤ د سهار په لمانځه کي چي عمر ﷺ تکبیر افتتاح ووایه دغه مریي ملعون په دو روخه چاړه یعني په خنجر یې په نس کي وواهه. عمر ﷺ وویل اکلني الکلب، دستي عبدالرحمن ﷺ و محراب ته کش کړی او دی غځار سو مریي میدان کړه چي ځان وباسي هر چا چي به ټینګ کړی هغه به یې هم په خنجر وواهه غوځار به یې کړی دیارلس کسه یې نور زخمیان کړه اخیر یوه صحابي چي چپنه یې اغوستې وه پر مریي واچول مریی یې ټینګ کړی، مریی چي په ځان پوه سو چي نه سې تلای په هغه خنجر یې خودکشي وکړه، عبدالرحمن ﷺ په مختصر قرائت سره د سهار لمونځ ادا کړی، وروسته صحابه کرام ﷺ راټول سوه عمر ﷺ وویل چي زه چا په چاړه ووهلم، خلګو د مجوسي مریي نوم ورواخستی، عمر ﷺ وویل چي حمد دي وي و خدای ﷻ ته یعني الحمد لله یې وویل چي زما د قتل په سبب یو مسلمان دوږخ ته نه ولاړی، نو صحابه کرامو ﷺ حضرت عمر ﷺ کور ته راوړی، خیر قصه نوره هم اوږده ده لکن د مقصد ځای ته به راسو، عبدالله بن عباس ﷺ ورته وویل یا امیر

المؤمنين "اسلمت حين كفر الناس وشاهدت مع رسول الله ﷺ (يعني په غزواتو كي د عليه الصلوة والسلام سره شامل سوى يې) حين خذله الناس وتوفى رسول الله ﷺ وهو عنک راض) او ستا په خلافت كي دوه كسه ستا مخالف نه وه. او اخيراً به شهيد مړ سي، امير المؤمنين عمر رضي الله عنه ورته وويل "المغرور من غرر تموه" خطاوتلى هغه سړى چي تاسي يې خطاباسئ يعني پر ورځ د قيامت دلاوره كوئ يعني عبدالله بن عباس رضي الله عنهما ده ته هغه مذكوره خبري وكړې، عمر رضي الله عنه وويل چي والله يعني زما دي قسم په خداى وي چي دا تولـه جائدادونه او اموال چي لمر پر راخېژي زما سي زه به يې فديه وركړم د هول د ورځي د قيامت.

**درويش وايي:** چي دا ده بهره د كاملانو او د خداى جل جلاله د لوى دوستانو، نو خوف ما وشما چه خواهد بود.

﴿وَإِن مِّن قَرْيَةٍ إِلَّا نَحْنُ مُهْلِكُوهَا قَبْلَ يَوْمِ الْقِيَامَةِ أَوْ مُعَذِّبُوهَا عَذَابًا شَدِيدًا﴾

او نسته يو وطن له وطنو څخه مگر موږ يې هلاكوو هغه قريه يعني خرابوو يې، او اهل د هغې قريې هم هلاكوو دمخه تر ورځي د قيامت، او يا عذاب وركوو يعني اهل د هغې ته چي كافران وي عذاب سخت، يعني په دي دنيا لكه فرعون او قبط يا نمرود وغيرهما، له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دى چي زنى او سود خوري چي په يو وطن كي ډېره سي خداى جل جلاله يې امر د هلاک كوي بلى عذاب كان.

﴿كَانَ ذَٰلِكَ فِي الْكِتَابِ مَسْطُورًا﴾

دا مذكوره په آيت سابقه په كتاب يعني اللوح المحفوظ من التغيير والتبديل سوي، طبراني او حاكم له ابن عباس او ابن زبير رضي الله عنهم څخه روايت كړى دى "اول ما خلق الله القلم فقال له اكتب قال يعني القلم ما اكتب قال يعني الله عزوجل اكتب القدر يعني مقدورات فكتب يعني القلم ما كان وما هو كائن الى الابد.

**درويش وايي:** چي ګڼ شمېر محدثين له ابن عباس او ابن الزبير رضي الله عنهم څخه روايت كړى دى چي اهل مكه د عليه الصلوة والسلام څخه سوال وكړى چي د صفا غر دي سره زر سي (يعني ستا په غوښتنه ستا له خداى څخه كه رسول بالحق د خداى يې)، او موږ ته زموږ قديم مړي ژوندي كړه لكه قصي بن كلاب

چي موږ ستا د رسالت پوښتنه له هغه څخه وکړو او د اغرونه د مکې کوښد کړه او
په مکه کې لویه ویاله وبهیوه چې موږ کښېنتونه وکړو ونحو ذالک من السؤالات
المقترحة، نو رسول الله ﷺ ته خدای ﷻ وحي راواستولې که ته غواړې چي ته
مهلت ورکړه فعلت، او که ستا خوښه وي زه به دوی ته ما سئلوا ورکړم، نو بیا که
دوی ایمان نه راوړي اهلکتهم کما اهلکت من کان قبلهم یعني بعذاب
الاستیصال، فقال النبي ﷺ بلکې مهلت ورکړه، فانزل الله عزوجل.

**وَمَا مَنَعَنَآ أَن نُّرْسِلَ بِٱلْـَٔايَٰتِ إِلَّآ أَن كَذَّبَ بِهَا ٱلْأَوَّلُونَ**

موږ نه منع کړې "یعني له علاماتو څخه د صدق چي اهل مکه یې ستا څخه
غوښتنه وکړه" مګر دې خبرې چي تکذیب کړی ؤ په آیاتو مقترحه وو سره یعني
نو عذاب استیصال ما ورکړی لکه ثمودیان چي د صالح علیه السلام ناقة وغوښتل او بیا
یې هم ایمان رانه وړی، نو عذاب د استیصال پر نازل سو.

**پوه سه:** چي "ان" مع الفعل مفعول ثاني د "منعنا" دی.

**فائده:** استثنی په محل کې د رفع ده په "منعنا" سره یعني کفار مکه هم د
هغو اولون مثل دي په سرتمبی کې او په عادت کې، نو که زه آیات مسئوله
ددوی ورکړم دوی هم ایمان نه راوړي، او د مسئوله آیاتو تکذیب لکه مخني
کافرانو چي هم دغسې وکړه، نو کفار مکه به هم هلاک کړم بالاستیصال لان من
سنتنا في الامم اذ سئالوا ثم لم یؤمنوا بها بعد ارسال الآیات ان نهلکهم ولا
تمهلهم، وقد حکمنا بانه هذه الامة نمهلهم لحکم و مصالح، وروسته خدای ﷻ
ذکر کړه بعض الامم المهلکة په سبب د تکذیب د آیاتو مسئولو ددوی، فقال عز
من قائل "وآتینا ثمود الناقة بسؤالهم عن صالح علیه السلام".

**وَءَاتَيْنَا ثَمُودَ ٱلنَّاقَةَ مُبْصِرَةً فَظَلَمُوا۟ بِهَا ۚ وَمَا نُرْسِلُ بِٱلْـَٔايَٰتِ إِلَّا تَخْوِيفًا**

"مبصرة" یعني آیة بینة چي په سترګو دوی ولیدل، دوی ظلم وکړی په هغه
ناقه (یعني ایمان یې نه راوړی حتی چي هغه ناقه یې قتل هم کړه، نو خدای ﷻ
په استیصال هلاک کړه) او موږ نه را استوو آیات مقترحه "والبا زائدة" مګر نه
ده بېرول ددوی له نزول څخه د عذاب په ډلیېزه توګه په دنیا کې، او یا معنی د

آيت داده چې موږ نه را استوو هغه آيات او معجزات چې په غوښتنه د خلكو يعني د كافرانو وي. بلكې صرف لپاره د اثبات د نبوت د عليه الصلوة والسلام وي مگر لپاره د تخويف په عذاب د آخرت فقط.

وَإِذْ قُلْنَا لَكَ إِنَّ رَبَّكَ أَحَاطَ بِالنَّاسِ ۚ

يعني "اذكر" په ياد كړه و خلكو ته هغه چې موږ وكړې وتاته چې په تحقيق ستا خداى احاطه كړې پر خلكو يعني ذاتًا لانه واجب الوجود والناس ممكنات وقدرة او له جهته د قدرت عامه لانه على كل شيئ شاً قدير لا مانع له تعالى بخلاف الناس، ددې مطلب دادى چې ته په چاباك مه كوه بلكې اعلان ته د ما ارسلت من التوحيد دوام وركړه. او بعض مفسرين وايي چې د آيت معنا داده چې خداى ﷻ احاطه كړې پر قريشو يعني اهلكهم. نو دا زيرى دى پر عليه الصلوة والسلام په واقعه كې د بدر چې اوويا تنه په شمول د ابوجهل پكښې مړه سوه او اوويا كسه يې ژوندي بندي كړه سوه.

**پوښتنه**: واقعه د بدر خو هنوز نه وه واقع سوې. نو تعبير په ماضي څرنگه څني وسو؟

**ځواب**: من تيقن وقوعه مثل قد قامت القيامة، وامثال في القرآن كثير، ابو يعلى د ام هاني ﷺ څخه روايت كړى دى چې عليه الصلوة والسلام په شپه د معراج و اسمانو ته. بلكې تر سدرة المنتهى بلكې تر مقام د قوسين بوتلل سو. نو عليه الصلوة والسلام خپل د سفر ملكوتي و قريشو ته بيانا وه او دوى پر خندل او پسخند يې په واهه. بيا دوى د بيت المقدس د مسجد احوال څني وپوښتل، عليه الصلوة والسلام ورته بيان كړه، او بيا يې د خپلې قافلې حال څني وپوښتى عليه الصلوة والسلام ورته بيان كړى، فقا الوليد بن مغيرة هذا ساحر.

**درويش وايي**: چې د معراج قصه په نهايته تفصيل سره په دې تفسير كې لقوله تعالى "سبحان الذي اسرى بعده آه" فقير بيان كړې ده. د وليد بن مغيره په ځواب كې خداى ﷻ دا آيت نازل كړى.

## وَمَا جَعَلْنَا الرُّءْيَا الَّتِيْٓ اَرَيْنٰكَ اِلَّا فِتْنَةً لِّلنَّاسِ

مونږ نه ده ګرځولې هغه يعني د ويښو ليدل چې روح او جسد دواړه سره ملګري وه په شپه کې د معراج مګر فتنه لپاره د خلګو حيث انکرها کفار قريش بلکې بعض مسلمانان ددې قصې په اورېدلو سره مرتد سوه.

**درويش وايي:** چې ددې تولې قصې راګرځولو ته ضرورت نسته که څه هم مظهري بيا ذکر د هغې قصې او اختلافات يې بيان کړي دي فقير وايي چې من نه انکار ميکنم ونه اين کار ميکنم. مصرعه: وللناس فيما يعشقون مذاهب.

**درويش وايي:** چې مظهري ډېر حديثونه ددې آيت په تفسير کې په مختلفو رواياتو او و مختلفو کتابو ته په حواله راوړي دي او په اخير کې يې دا ويلي دي واسانيد هذه الاحاديث ضعيفة. فقير وايي چې په نقل کې يې څه فائده؟ البته بعض امامان که دا احاديث دده د کتاب واوري هغه خو يې د ضعف په قصه کې نه دي شايد پر منبر او محراب کې به يې بيانوي او وايي به امام مظهري داسي احاديث راوړي دي.

## وَالشَّجَرَةَ الْمَلْعُوْنَةَ فِي الْقُرْاٰنِ ؕ

"والشجرة آه" عطف دی پر "رؤيا" يعني ماجعلنا الشجرة الملعونة چې د زقوم د درختې په نامه يادېږي يعني "الا فتنة للناس" بغوي وايي چې د شجرة الزقوم د فتنې والي وجهې دوې دي، اول ابوجهل فرعون هذه الامة چې ابن ابي کبشه (چې مراد دده ملعون رسول الله ﷺ و) تاسي بېروي په داسي اور چې په ډېرو بلېږي او بيا دا هم وايي چې په دې اور کې درخته سته، او خلګو ته يې ويل چې تاسي خو واياست چې درخته خو اور سوځي، نو دی بېوقوف نه پوهېږي چې خدای ﷻ پر دې قادر دی چې د سمندل (چې يو حيوان دی) پوستکي په اور نه سوځي، او پر دې هم قادر دی چې د شتر مرغ پر کلمو چې سکروټې تېروي هغه خدای ﷻ د سونګه څخه ساتلي دي، نو پر دې هم قادر دی چې شنه درخته دې په اور کې له سوځېدلو وساتي، په مدارک کې وايي چې سمندل د يو حيوان نوم دی چې د ترکانو په وطنو کې نشو ونما کوي، او ترکان د هغه د پوستکي څخه د

لاس وچیدلو دسملان جوړوي او چي خیرن سي په اور کي یې واچوي خیره یې ولاړه سي او دسمال صاف و شفاف سي. په قاموس کي وایي چي سمندل یو مرغه دی په دیارو کي د هند چي په اور نه سوځي، والله اعلم.

او دویمه وجه یې داد چي ابن الزبعري چي یو کافر و په مکه مکرمه کي، هغه وویل چي محمد (ﷺ) موږ بیروي په زقوم سره او موږ زقوم نه پیژنو بیله پیروي او خورما. نو ابو جهل دده په تائید کي وویل "یاجاریة تعال" (دلته راسه) نو یې ورته وویل "زقیمینا" یعني پیروی او خورما ورته راوړه، نو ابو جهل وویل "تزقموا" زقوم وخوری "فان هذا مایتخوفکم به محمد" نو د ابن الزبعري او ابو جهل په رد کي خدای ﷻ دا آیت نازل کړی "ان شجرة الزقوم طعام الاثیم"

**فائده**: توصیف د شجرة الزقوم په ملعوني سره په اعتبار د وصف د اکل دی وهذا التوصیف علی المجاز مبالغة. او یا په دې سبب دی چي شجرة الزقوم په اخرینه حصه کي د دوږخ ده او هغه ځای له رحمت څخه ډېر لېري دی، چي زقوم ترخه او مکروه درخته ده. اصطلاح د عربو او پښتنو یو ډول ده. پښتانه وایي "زقوم دي سه" او عرب هر طعام چي ضررمند وي وایي "ضار ملعون"

وَنُخَوِّفُهُمْ فَمَا يَزِيدُهُمْ إِلَّا طُغْيَانًا كَبِيرًا ﴿٦٠﴾

او موږ بیروو دوی یعني کفار مکه په قسم قسم تخویفنو سره یعني في القرآن، نو نه زیاتوو موږ دوی ته مګر سرکښي لوېه، چي لا کفر او انکار ته د قرآن او علیه الصلوة والسلام دوام ورکوي.

**حکایت**: امام مزني رح وایي چي زه د خپل استاذ الامام الشافعي رحمه الله چي دی مریض و پوښتنې ته یې ورغلم، نو مي ورته وویل کیف اصبحت یا استاذي (چي د امام شافعي رح دغه مرض موت و) ده راته وویل "اصبحت من الدنیا راحلاً ولاخواني مفارقاً (له دنیا کوچ کوونکی او له دوستانو څخه جلا کېدونکی) "و لعملي ملاقیاً. ولکاس المنیة شارباً" د خپل عمل سره ملاقات کوونکی او ګلاس د مرګ څښونکی "و علی الله وارداً فما ادري اروحي في الجنة ام الی النار" و خدای ﷻ ته ورځم، زه نه یم خبر چي زما روح به د جنت و خواته ولاړه سي او که به اور ته.

**درويش وايي:** چي دا خوف او حال ږد لوی امام الامة، نو زموږ وارو خلکو بدڅه حال وي او څه به مو سر انجام وي، مولی روم په مثنوي کي وايي:

لاتخافوا هست نزل خائفان ........ هست درخور ازبرائ خائفان

يعني مهماني له خدای ﷻ څخه د بيريدونکو خلکو ده، لاتخافوا د خائفانو لائقه ده.

هرکه ترسد مراورا ايمن کند ........ مردل ترسنده راساکن کند

آنکه خوفش نيست چون گويي مترس

درس چه دهی نيست او محتاج درس

وَإِذْ قُلْنَا لِلْمَلَٰٓئِكَةِ ٱسْجُدُوا۟ لِءَادَمَ فَسَجَدُوٓا۟ إِلَّآ إِبْلِيسَ قَالَ ءَأَسْجُدُ لِمَنْ خَلَقْتَ طِينًا ﴿٦١﴾

په ياد کړه (يعني خلکو ته) چي وويل موږ و ملکو ته چي سجده وکړه آدم ته (ای سجده د تحيه چي صرف سر کښته کول وه کما في الامم السابقة مثل تحية اخوة يوسف عليه السلام له، او يا سجده متعارفه وکړئ و خدای ﷻ ته آدم عليه السلام به صرف په مثل د قبلې دي وي، لکه موږ چي سجده و خدای ﷻ ته کوو قبله مو کعبه ده) نو سجده وکړه ټولو ملکو (لکه په بل ځای کي د قرآن مجيد چي راغلي "فسجد الملائکة کلهم اجمعون" مگر نه ابليس) قال (دا جمله مستأنفه ده يعني ده څه عذر ووايه، آيا زه به سجده کوم و هغه چا ته چي پيدا کړی تا طينًا "ای من طين والهمزة للانکار لا من عدم السجدة بل لاستقباح امره تعالی بالسجود لآدم)

اعراب: "طينًا" يا منصوب دی په نزع د حرف جر ای من طين او يا تميز دی وعلی ای وجه اشارة وعلت ته د انکار ده. بغوي رح وايي چي سعيد بن جبير رح له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت کړی دی چي خدای ﷻ عزرائيل عليه السلام راواستاوه چي له ټولي مځکي څخه که تروه وي او که خوږه خاوره راټوله کړه فخلق منه آدم فمن خلقه من العذب فهو سعيد که څه هم مور او پلار يې دواړه کافران وي ومن خلقه من الملح فهو شقي وان کان نبيين انتهی، وروی احمد والترمذي و ابو

داود والحاكم والبيهقي عن ابي موسى الاشعري رضي الله عنه قال سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول ان الله خلق آدم من قبضة قبضها "اى قبض الملك وهو عزرائيل بامره تعالى" من جميع الارض، نو بنو آدم من قدر الارض پر اندازه د مځکي د رنګو راغله. منهم الاحمر ومنهم الابيض والاسود وبين ذالک (يعني غنم رنګه) والحزن والسهل (يعني سخت مزاجه او سهل طبعيته) وخبيث وطيب.

**فائده:** علت د انکار د ابليس چي ده خپل اصل عنصر ته او د آدم عليه السلام اصل عنصر وکتل كما جاء في آية اخرى "خلقني من نار وخلقته من طين" يعني زما عنصر چي اور دی مضيئ دی د آدم تر عنصر چي خاوره ده مظلم بالا دی فكيف اسجد له.

قَالَ أَرَءَيْتَكَ هَٰذَا ٱلَّذِى كَرَّمْتَ عَلَىَّ

"قال" وويل ابليس بعد ما طرد وبعد عن جنابه.

**پوه سه:** چي كاف حرف خطاب دی لپاره د تاكيد د خطاب اول نو محل د اعراب نه لري "هذا الذي كرمت علي" دغه شخص چي آدم دی چي تا د ته تكريم وركړی پر ما باندي يعني چي په سجده دده دي مأمور كړم.

**پوه سه:** چي هذا مفعول اول دی د "رئيت" او موصول يعني سره د صله چي الذي كرمت دی صفت د هذا دی او مفعول ثاني يې محذوف دی لدلالة الصلة عليه يعني كرمت علي والمعنى هذا الذي كرمته علي وتأمرني بالسجود له، لم كرمته علي وهذا هو المفعول الثاني المحذوف فافهم.

لَئِنْ أَخَّرْتَنِ إِلَىٰ يَوْمِ ٱلْقِيَٰمَةِ لَأَحْتَنِكَنَّ ذُرِّيَّتَهُۥٓ إِلَّا قَلِيلًا ۝٦٢

كه ما ته دي مهلت راكړی او مړ دي نه كړم، تر ورځي پوري د قيامت، چنانچه موعود است، زه به غلبه وكړم پر اولاد دده قوي غلبه. كما في آية اخرى فبعزتك لاغوينكم اجمعين الآية، مګر نه لږ كسان وهم المخلصون چي خدای جل جلاله په هغه آيت كي استثنا كړي دي ان عبادي ليس لک عليهم سلطان.

**پوه سه:** چي "لئن آه" كلام مبتدأ دی يعني مستقل، او لام موطئه د قسم محذوف دی اى والله، او "ان" شرطيه دی، او جواب يې "لاحتنكن" دی.

قراءات: هغه يا چي په "اخرتني" كي په اصل كي وه، ابن كثير په ځای كي د

وصل او وقف ثابته پریږدي، او نافع په حال کي د وصل فقط ثابت پریږدي، او نور قرأ سبعه يې ده دواړه حاله کي حذف کوي او کسره د نون پر دليل بولي وهو المتعارف في المصاحف المطبوعة.

**سوال**: شيطان خو په غيبو نه ؤ خبر، نو دا خبره ده څرنګه وکړه "لأحتنكن آه"؟

**ځواب**: بيضاوي رح وايي چي ابليس له هغه قول څخه د ملکو چي خدای ﷻ دوی ته وويل انی جاعل في الارض خليفة، ملکو په جواب کي وويل اتجعل فيها من يفسد فيها ويسفك الدماء الآية" دا وفهمول چي په اولاد کي د آدم ستا همنوا سته، يا له دې څخه پوه سو چي خلقت د آدميان له وهم، غضب او شهوت سره ملګری دی، نو په قوت وهميه ددوی عقائدو ته ستا لار سته او په قوت غضبي سره قتل او قتال ته ستا لار پيدا کېږي او په قوت شهويه سره و زنی او لواطت ته ستا لار خلاصه ده.

قَالَ اذْهَبْ فَمَنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ فَإِنَّ جَهَنَّمَ جَزَآؤُكُمْ جَزَآءً مَّوْفُورًا ﴿٦٣﴾

"قال اذهب" په روح المعاني کي وايي چي مراد له ذهاب څخه ضد المجيئ نه دی، بلکې مراد د ابليس تخليه ده وما سولت له نفسه، په پښتو کي يې مثال دا دی چي يو سړی و خپل مخالف ته ووايي ولاړ سه هر څه چي دي په وسه پوره وي کوه يې، نو هر څوک چي متابعت ستا وکړي له اولاد څخه د آدم (يعني في الكفر والعصيان) نو په تحقيق دوږخ جزا ده ستا او ستا د اتباعو، داسي جزا هم پوره ده او هم کامله ده.

**پوښتنه**: د بعض جاهلانو دا وينا ده چي خدای ﷻ ولي اجازه ورکړه د اغوا د اولاد آدم و ابليس ته؟

**ځواب**: ددې لپاره چي مخلص او منکر سره جلا کړي فالشيطان هو الامتحان فافهم، لکه ودې ته چي خدای ﷻ اشاره کړې ده په دې آيت کي "لاملئن جهنم من الجنة والناس اجمعين" او په دې آيت کي وسوء اختيار د ابليس بيان کړي دي.

**پوه سه**: چي "جزاً" مفعول مطلق ده د فعل محذوف ای يجزی جزاءً.

## وَاسْتَفْزِزْ مَنِ اسْتَطَعْتَ مِنْهُمْ بِصَوْتِكَ

"واستفزز" يعني سپک استعمال کړه او استخفاف يې وکړه (په قاموس کې
وايي استفزه استخفه، واخرجه من داره نو معنی د استفزاز استخفاف دی) چې
ستا په طاقت پوره وي استفزاز يې "منهم" اى من ذرية آدم "بصوتک" ابن عباس
رضي الله عنهما وايي چې اولاد د آدم راوبوله و معصيت ته، علماء وايي چې هر بلونکی و
معصيت ته د خدای ﷻ هغه د ابليس له لښکر څخه دی، او مجاهد وايي چې
مراد له صوت څخه د شيطان ربابونه او سرندې او سرود دي.

## وَأَجْلِبْ عَلَيْهِمْ بِخَيْلِكَ وَرَجِلِكَ

او راجلب کړه يعني راجمع کړه (باب يې جلب يجلب دی، په قاموس کې
وايي جلبه يجلبه ساقه من موضع الى آخر)

**درويش وايي:** چې لکه پخوا په افغانستان کې يې جلب له خلګو څخه
غوښتی يعني نفر به يې څني غوښتل چې د يوه وطن دا به يې بل وطن ته استول
په داخل کې د افغانستان، روح المعاني وايي چې اوامر چې په دې آيت کې ذکر
سوي دي ليپاره د تهديد دي د ابليس لاحقيقة الامر لان الله لايامر بالفحشا
"بخيلک ورجلک" يعني سپاره او پياده، اهل تفسير وايي چې هر سپور او پياده
چې په معاصيو کې وي هغه له لښکر څخه د ابليس دی، او بيضاوي وايي چې دا
احتمال سته چې دا دې مثال وي د تسلط د ابليس پر هغو کسانو چې دی ګمراه
کوي انسان، لکه يو سړی پر يو قوم تجاوز او حمله وکړي.

## وَشَارِكْهُمْ فِي الْأَمْوَالِ وَالْأَوْلَادِ وَعِدْهُمْ

او ته ورسره شريک سه په مالو يعني په کسب کې د اموال بالتجارة وغيرها
يعني دوی باعث کوه په جمع کې د اموالو من الحرام وصرفها في الحرام كذا قال
مجاهد، حسن، سعيد بن الجبير رحمهم الله او عطاء وايي چې مراد سود دی چې په
مشرکينو کې رواج و، او داغه رنګه مشرکانو به حرام ګڼله من البحيرة والسائبة
والوصيلة والحام وقد مر تفسيرها.

"والاولاد" او ورسره شریک اوسه په اولاد کي، یعني چي اولادونه ددوی پر نارو
کارو مسلط کړې، او ته یا ابلیس و دوی ته باطلې وعدې کوه، مثلاً حشر نشته،
او که وو بتان بیا ستاسي شفاعت کوي، او مشرکانو ته وایه چي د پلرو او نیکه
ګانو دین پر پرېږدئ؟ ویا ورته وایه چي لاجنة ولا نار، او اهل معاصیو ته وایه چي
توبه به وروسته وکاږې. ابن عباس رضي الله عنهما وایي چي دا هغه عادت د بعضو قریشو ته
اشاره ده چي لوڼې به ژوندۍ ښخولې چي موءده یې بولي، او مجاهد او ضحاک
وایي چي اولاد الزنی، او د ابن عباس رضي الله عنهما په بل روایت کي راغلي دي چي پر اولاد
"عبد الحارث" (چي حارث د شیطان نوم دی) یا عبد الشمس یا عبد العزی یا عبد
الدار یا عبد المناف وغیرها نومان ایښوول دي.

**درویش وایي:** چي د شراکت في الاولاد څخه مراد هغه دی چي دمخه تېر
سو یا دادی چي د اولاد د نفقې په برابرولو کي نه له حرام څخه او نه له غلا څخه
او نه له اخذ څخه د زکوٰة د خلکو مع الغنی، او نه له سوال او فقر څخه مع الحرمة
مخ اړوي، ددې مثالونه په اوسنی زمانه کي ښېخي ډېر او تر حساب تېر دي.

وَمَا يَعِدُهُمُ الشَّيْطَٰنُ إِلَّا غُرُورًا ﴿٦٤﴾

دا جمله معترضه ده لپاره د بیان مواعید د ابلیس ده، او وعده نه کوي شیطان د
خپل اتباعو سره، مګر نه د غولېدلو لپاره چي باطل ورته داسي ښکاره کړي لکه
حق، بغوي روایت کړی دی چي آدم علیه السلام خدای جل جلاله ته وویل چي ابلیس دي زما پر
اولاد مسلط کړی او زما اولاد د ابلیس د مقابلې طاقت نه لري مګر په تا سره،
خدای پاک ورته وویل چي ستا هر اولاد چي پیدا کېږي ثم وثم زه به د یوې حسنې
ثواب په لس مثله ورکوم الی سبع مائة الی ماشئت، قال آدم رب زدني، قال الله تعالی
التوبة معروضة مادام الروح في الجسد قال رب زدني قال الله تعالی "یاعبادي الذین
اسرفوا علی انفسهم لاتقنطوا من رحمة الله ان الله یغفر الذنوب جمیعاً الآیة.

إِنَّ عِبَادِي لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطَٰنٌ ۚ وَكَفَىٰ بِرَبِّكَ وَكِيلًا ﴿٦٥﴾

"زما خاص بندګان او مخلص بندګان، والاضافة للتعظیم "لیس لک علیهم"
ای علی اغوائهم "سلطان" قدرت چي ګمراه یې کړې، او کافي دی رب ستا یا

ابليس وكيل د هغو کسانو چي پر ما توکل کوي او ستا له اغوا ځخه پناه غواړي په ما سره، يعني اعوذ بالله من الشيطان الرجيم. او خپل کارونه ماته سپاري زه به يې له تا ځخه ساتم.

**تبصره:** شيطان خو د خدای ﷻ له درباره ځخه وشړل سو او د جنتو له مځکې ځخه راټيله سو، نو دا سوال او ځواب د خدای پاک او دده ملعون تر منځ څرنګه جاري وه. او سره ددې چې خبري د خدای ﷻ خو نعمت عظمی دی؟

**ځواب:** بعض علماً وايي چي د خدای ﷻ د خوا خبري په وساطت د ملکي وي. او بعض علماً وايي چي يو خبري د رحمت دي لکه د موسی علیه السلام سره په طور کي. او يا د رسول الله ﷺ سره فوق السموات السبع په لامکان کي خدای ﷻ وکړې. او بل خبري د غضب او تهديد دي. هغه بالذات امکان پذير دي. د مثال په توګه يو بادشاه چي له وزير ځخه راضي وي له هغه سره خبري د رحمت کوي، او د بل وزير سره چي سلطان ورته په غضب وي او ناراض وي. نو دده سره بالذات په ډېر غضب او درشتي خبري ورسره کوي. نو دا خبري د سلطان ددې وزير لپاره خو نعمت نه دی بلکې نقمت دی. نو داغه رنګه د شيطان سره خبري د خدای ﷻ بالذات نعمت نه دي بلکې نقمت دی. فافهم واکتب هذا علی قرطاس الاذهن بمداد الذهب فانه من خواص هذا التفسير وقل من نبه علی هذا والله الموفق والمعين. والحمد لله رب العالمين.

**درويش وايي:** چي په راتلونکي آيت کي خدای ﷻ خپل د قدرت او د وحدت دلائل خلګو ته بيانوي.

**رَبُّكُمُ الَّذِي يُزْجِي لَكُمُ الْفُلْكَ فِي الْبَحْرِ لِتَبْتَغُوا مِنْ فَضْلِهِ**

ستاسي خدای ﷻ هغه ذات دی، چي جاري او روانه يې کړه کښتي په درياب کي. چي تاسي طلب وکړئ په واسطه د کښتيو ربح او رزق يعني تجارت په واسطه.

**پوهنه:** چي "ربكم" مبتدا ده او "الذي" خبر دی په حذف د ضمير فصل ای هو الذي كما هو القانون. له "فلک" ځخه ډېري کښتي مراد دي، علماً وايي چي

لفظ د "فلک" هم مفرد دی او هم جمع دی فرق یې یا په صفت کېږي یعني که یې صفت مذکر وي، نو لفظ د فلک مفرد دی. او که یې صفت مؤنث وي. نو لفظ د فلک جمع دی. وهكذا بالضمير الراجع اليه في التذكير والتانيث او يا په قرينه د مقام لکه په مانحن فيه کې، ولې خدای ﷻ په مقام د امتنان دا بیان د کښتی راوړی دی یعني پر تولو بندگانو دا سبب دی چې تولو مفسران یې ترجمه په "سفن" سره کوي چې جمع دی.

## إِنَّهُۥ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا ۝٦٦

په تحقیق خدای ﷻ پر تاسي مهربانه دی، ولې تاسي ته یې اسباب د ما تحتاجون اليه برابر کړي لکه کښتی په ما نحن فيه کې وغيرها من اسباب الرزق والعيش لکه تجارت په وچه کې كما هو الظاهر.

## وَإِذَا مَسَّكُمُ ٱلضُّرُّ فِى ٱلْبَحْرِ ضَلَّ مَن تَدْعُونَ إِلَّآ إِيَّاهُ

او تاسي ته ورسېږي یو ضرر په دریاب کې لکه خوف د غرق د کښتی په سبب د طوفان ستاسي له دماغو څخه ووزي هغه شیان چې تاسي یې عبادت کاوه او خدایان مو بلل مگر نه یو خدای ﷻ مو په یاد وي. یعني فقط او فقط خدای ﷻ ته زارۍ کوئ په دفع کې د ضرر یعني د بت نوم پر خوله نه راوړئ، حتی چې تاریخ قدیم وايي چې مشرکانو چې به سفر د بحر کاوه یو خدای به یې له ځان سره واخستی هر وخت چې به دریاب په څپو راغلی هغه خدای به یې دریاب ته وغورځاوه.

## فَلَمَّا نَجَّىٰكُمْ إِلَى ٱلْبَرِّ أَعْرَضْتُمْ ۚ وَكَانَ ٱلْإِنسَـٰنُ كَفُورًا ۝٦٧

نو هغه وخت چې مو ږ نجات درکړو وتاسي ته له غرق څخه و وچکې ته، نو تاسي روی گرداني کوئ له توحید څخه. او دی انسان ای الكافر ناشکره د نعمتو د خدای ﷻ (دا جمله یعني وكان الانسان آه په مقام کې د علت د اعراض دی).

## أَفَأَمِنتُمْ

آیا تاسي په امن کې یاست.

**پوه سه**: چي همزه لپاره د انكار دى او كلمه د فا عطف ده پر مقدر باندي والتقدير "انجوتم من الغرق فامنتم آه" نو ځكه تاسي اعراض وكړى دا خو نه ښايي تاسي لره ولي هغه څوك چي قادر وو پر اغراق په درياب كي هغه قدرت لري.

## اَنْ يَّخْسِفَ بِكُمْ جَانِبَ الْبَرِّ اَوْ يُرْسِلَ عَلَيْكُمْ حَاصِبًا

چي دا روي دي يو جانب د مځكي او تاسي هم پر هغه جانب ياست يعني پر قوم د لوط عليه السلام چي دي ته په عربي خسف وايي، او يا را واستوي پر تاسي تند باد چي كوچنى كوچنى شيگي پر تاسي لكه باران وه اوري او تاسي په هلاک كړي (د ډبرو باران پر قوم لوط ؤ) لان كل من البحر والبر والهوا وغير ذالک جند الله.

## ثُمَّ لَا تَجِدُوْا لَكُمْ وَكِيْلًا

بيا به تاسي نه مومئ يو ساتونكى چي له عذاب څخه د خداى ﷻ مو خلاص كړي، اذ لا مرد لقضائه تعالى.

## اَمْ اَمِنْتُمْ اَنْ يُّعِيْدَكُمْ فِيْهِ تَارَةً اُخْرٰى

آيا تاسي بيغمه ياست له دي څخه چي خداى ﷻ به تاسي ورولي درياب ته بل وار يعني وروسته تر دي چي دمخه وار يې په سلامت و مځكي ته راوستلاست يعني داسي اسباب يې خداى ﷻ پيدا كړي دي چي تاسي مجبوره كړي ياست د درياب و سفر ته.

**سوال**: دا سفر په درياب كي خو ددوى په اختيار دى، نو ولي يې نسبت و خداى ﷻ ته وكړى؟

**ځواب**: سفر د بحر خو ددوى اختياري كار دى، لكن اسباب د مجبوري ددوى د سفر ته د درياب ددوى په خلق د خداى ﷻ دى.

## فَيُرْسِلَ عَلَيْكُمْ قَاصِفًا مِّنَ الرِّيْحِ

خداى ﷻ به را واستوي پر تاسي په داسي حال كي چي تاسي په درياب كي ياست، يو تند باد.

**بوه سه**: چي "قصف" ماتېدلو ته وايي. نو دا هغه باد دی چي پر هر شي چي ورسي ماتوي يې.

**سوال**: ریح خو مؤنث سماعي دی، نو قاصف چي صفت د ریح دی، څرنګه مذکر راوړل سو؟

**ځواب**: چونکه ریح په مقابل کي نر نه لري، نو لکه حائض چي صفت خاصه د ښځي دی مذکر یعني بېله تا یې راوړی کذا في تفسیر الکواشي.

## فَيُغْرِقَكُمْ بِمَا كَفَرْتُمْ

نو تاسي به غرق کړي یعني کښتی به مو ماته سي تاسي به غرق سئ. په سبب د کفر ستاسي یعني و خدای جل جلاله ته شریک ویل، چي اول وار له دریاب څخه سلامت راووتلاست. او د هغه نعمت د انجا شکر مو نه کړی پر ځای. کریمه "لئن شکرتم لازیدنکم".

## ثُمَّ لَا تَجِدُوا لَكُمْ عَلَيْنَا بِهِ تَبِيعًا ﴿٦٩﴾

وروسته تر غرق به تاسي نه کړئ پیدا پر موږ باندي په دغه غرق کولو کي. په قاموس کي وايي چي "تبیع" پر وزن د امیر دی معنی یې ستاسي د مړني طلب کونکی چي په عربي یې ثائر بولي، او په پښتو یې کسات اخستونکی بولي.

دریں ره دائماً ثابت قدم باش ...... برو از ره زن غم پی الم باش
ز بازار تو جه رو مگردان ...... همه سودی گه خواهی اندریں دان

## وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِي آدَمَ

لام موطئه د قسم محذوف دی. والله چي عزت او شرافت ورکړی دی موږ د اولاد ته د آدم علیه السلام (نو مراد د بني آدم مطلق اولاد د آدم دي من الذکور والاناث) په ښه صورت سره او په مزاج معتدل سره په منځ کي د افرادو د حیوان مشترک بین الکل دی، او په ښه قد و قامت سره او تمیز بین الحق والباطل بالعقل الممیز او افهام د بل په نطق فصیح سره او په اشارات سره او په خط او کتاب سره. او هدایت و اسبابو ته د معاش من الکسب والتجارة. او د لار پیدا کولو د عیش ته

فرة بالاهتدا. او په تسلط او غلبه سره على جميع مافي الارض من الحيوانات
بتسخير الرب الجليل لها لاولاد آدم. او قدرت مو ورکړی دی پر صناعات
عجيبه من الخياطة والحياكة وبنا الدور والقصور وصنعة السيارات والطيارات
وآلات الحرب من السيوف وغير ذالک من الآلات الجديدة. او بل خورک کوي
په لاس ورلو و خولي ته. بخلاف سائر الحيوانات والعشق الحقيقي والمعرفة،
والوحي الى الانبيا عليهم السلام منهم او هدايت و مراتبو ته د قرب الى الله عزوجل.

**درويش وايي:** چي بعض تکريم د اولاد آدم عام دی فاسق او فاجر او مؤمن او
كافر ته او بعض خاص په مؤمنانو سره دي فتفكر فيما بينا. او تر ټولو لوړ
کرامت د بني آدم دادی چي سيد البشر محمد المصطفى ﷺ د دوی له نوع څخه
دی قاله محمد بن كعب. يو شاعر په شان کي د آنحضرت ﷺ وايي:

ای شرف دوره آدم بتو ......... روشنی دیده عالم بتو
کیست درین خانه که خیل تونیست
کیست برین خوان که طفیل تو نیست
از تو صلای بالست آمده ....... نیست بمهمانی هست آمده

يعني اول جواب الست بركم، تو داده يعني بلى.

## وَحَمَلْنٰهُمْ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ وَرَزَقْنٰهُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ

"في البر" على الدواب "والبحر" على السفن. يعني ته په مځکه کي خسف
کېږي او نه په بحر کي غرقېږي الا ماشذ وندر. او په رزق ورکړي مو ږ دوی ته
خوندور خوراکي شيان او مشروبات لذيذه كما لايخفى.

## وَفَضَّلْنٰهُمْ عَلٰى كَثِيْرٍ مِّمَّنْ خَلَقْنَا تَفْضِيْلًا ۝٧٠

او تفضيل او کرامت مو ورکړی دی دوی ته پر ډېرو د هغو شيانو چي پيدا
کړي دي موږ تفضيلاً مطلق دی.

**درويش وايي:** چي په دي تفضيل د بني آدم پر د هر مخلوق د خدای جل جلاله
قديماً و حديثاً عظيم اختلاف دی، حسين کاشفي رح په تفسير حسيني کي

وايي: علما در تفضیل بشر مباحث دور ودراز است، آنکه جمهور اهل سنت بر آنند این است، که رسل نبي آدم افضل تر اند از رسل ملائکه کجبرئیل و میکائیل وغیرهما، ورسل ملائکه افضل اند از اولیا بني آدم، واولیا شریفتر اند از اولیا ملائکه. وصلحا اهل ایمان افضل تر اند بر عوام ملائکه، وعوام ملائکه افضل تر اند بر فساق اهل ایمان انتهی. اوروح المعاني وايي: ان مسئلة التفضيل مختلف فيها بين اهل السنة. او ابن عباس رضي الله عنهما وايي چي ملائکه مطلقاً افضل دي، او مختار د زجاج رحمه الله لکه واحدي رحمه الله چي په بسيط کي راوړي دي، او بعض علما تفضيل کوي، او وايي چي رسل د بشر افضل دي مطلقاً يعني تر تولو ملائکه وو، وروسته بيا رسل د ملايکه وو افضل دي پر تولو بشر ماسوی د رسولانو د بشر او د ملکو، وروسته عموم الملائکه افضل دي تر عموم د بشر، په اخير کي ده ويلي دي وهذا ما عليه اصحاب الامام ابو حنيفة رحمه الله وکثير من الشافعية رحمهم الله والاشعرية، او په بحر العلوم کي وايي چي دا آيت پر دي دلالت کوي چي بني آدم مفضل دي پر ډېرو، او قليل پر دوی افضل دي چي آدم عليه السلام او حوا رضي الله عنها چي ددوی پلار او مور دي، لما فيهما من فضل الاصالة يعني چي دوی دوه اصول دي د تولو انسانانو انتهی.

**درويش وايي:** چي هذا سهو لان المراد في الآية ليس تفضل بعض الناس على بعض، لان قوله على كثير ممن خلقنا آه عام يشمل الجن والملائكة المقربين وغيرهم فيجب التفضيل كما هو مذهب ابي حنيفة رحمه الله كمامر آنفا.

**وتفصيل هذه الآية:** چي فضل په لغت کي زيادت ته وايي، دلته مراد ځني زيادت دی په ثواب کي او په مراتبو کي قرب الی الله تعالی، نو ضمير د هم في فضلنا هم راجع دی و بني آدم ته په اعتبار د بعضو افرادو چي مؤمنان دي، كما في قوله تعالى "والمطلقات يتربصن بانفسهن ثلثة قروء" (طلاق کړل سوي ښځي دي انتظار کوي په خپلو ځانو يعني له نکاح څخه د بل مېړه دري حيضه) نو په دي کي خو هغه مطلقات هم داخلي دي که په طلاق ثلاثا وي او که په طلاق رجعي سره وي، "وبعولتهن احق بردهن" او مړونه ددوی حقدار دي په رد سره

دوی یعني چې رجوع ورته وکړي بیرته یې ماینه کړي، نو دغه ضمیر "بعولتهن" ته راجع دی و مطلقاتو ته لکن په اعتبار د بعض افرادو چې طلاق یې رجعي وي، ولې مطلقه ثلاثًا ته خو رجوع نسي کولای فافهم. بلکې نکاح جدید او جماع او بیرته طلاق او عدة غواړي.

**پوښتنه:** ضمیر د هم چې په "فضلنٰهم" کې دی چې راجع و مؤمنانو ته سي، نو علی کثیرًا څرنګه صحیح کیږي، ولې چې کفار و خو تر مسلمانانو ډیر دي او مؤمنان څو لږ دي؟

**ځواب:** کفار اګرچه په عدد د نفوسو ډیر دي لکن چونکه اخس د خلق الله دي و ابغضهم الی الله دي او اخبث د بني آدم دي لکه په دې آیت کې چې خدای پاک فرمایي "و اولئک هم شر البریة" نو دوی ګویا تر مسلمانانو لږ دي.

**سوال:** له دې آیت څخه خو داسې فهمیږي چې فضل د مؤمنانو پر ډیر د مخلوق د خدای ﷻ دی، پر ټوله مخلوقاتو نه دی افضل. نو دا مسئله خو خلاف مذهب حنیفیه رحمه الله او د اکثره شافعیه وو ده کمامر سابقًا؟

**ځواب:** بعض قوم وایي چې مؤمنان تر ملکو نه دي افضل وهذا ایضًا خلاف المذهب لاهل السنة والجماعة کمامر آنفًا. او کلبي رحمه الله وایي چې مؤمنان افضل دي تر ټولو خلګو مګر نه پر یوه طائفه چې له هغو څخه جبرئیل. میکائیل. اسرافیل او ملک الموت هم دی چې خواص د ملکو دي. وفیه بحث لان خواص المؤمنین یعني الانبیاء والرسل علیهم السلام تر دغو ملکو هم افضل دي کما هو مذهب اهل السنة والجماعة. او بعض مفسرین وایي چې مؤمنان افضل دي تر ټوله مخلوق حتی تر ټولو ملګو هم افضل دي، او په آیت کې کثیر په معنی د کل دی، وفیه ایضًا بحث لان فساق المؤمنین لیسوا افضل من الملائکة کلهم. وایضًا جعل الکثیر بمعنی الکل مجاز نادر جداً.

**درویش وایي:** چې فقیر تفسیر ددې آیت او مسئله د تفضیل د بني آدم حسب الطاقة په پوره تفصیل سره وښیله او بیان مې کړه، لکن مختاره د فقیر هغه مذهب دی چې د اکثره اهل السنة خصوصًا مذهب امام الائمة ابو حنیفه رحمه الله و اکثر الشافعیة رحمهم الله دی، چناچه وراندي قریب فقیر ذکر کړه ..... بیت عربي:

ومن مذهبي حب الديار لاهلها ..... وللناس فيما يعشقون مذهب
دا باران چي پر همه ؤ مخکو اوري .... مشرف کړی ذات د کیمیاولي

**يَوْمَ نَدْعُوا كُلَّ أُنَاسٍ بِإِمَامِهِمْ**

هغه ورځ خلګو ته ذکر کړه چي موږ رابولو (نو "یوم" منصوب دی په "اذکر" مقدر سره کما جآ في القرآن العزیز کثیراً) "بامامهم" مجاهد او قتاده رح وايي چي مراد نبي د هر قوم دی مثلاً یا امة موسی علیه السلام یا امة عیسی علیه السلام یا امة محمد ﷺ او ابو صالح او ضحاک رح وايي چي مراد له امام څخه هغه کتاب دی چي هر قوم ته نازل سوی دی، له حضرت علي څخه روایت دی ده وویل قال رسول الله ﷺ یدعی قوم بامامهم وکتاب ربهم (نو کتاب ربهم عطف تفسیر دی د امام لهم) او سعید بن جبیر د ابن عباس رضی الله عنهما روایت کړی دی "بامام زمانهم الذي دعاهم الی ضلالة وهداية کما قال الله تعالی "وجعلناهم ائمة یهدون بامرنا وفي موضع آخر وجعلناهم آئمة یدعون الی النار" او سعید بن المسیب رح وايي چي امام هغه څوک دی چي قوم و ده ته رجوع وکړي په خیر او په شر کي، او ابو العالية والحسن رح وايي چي مراد له امام څخه اعمال ددوی دي في الدنیا من الخیر والشر، د مثال په توګه "یا من اشرکوا یامن امنوا، یا اهل الصلوة والصیام مثلاً یا اهل الزنی وشرب الخمر مثلاً" او بعض مفسرین واي چي مراد له امام څخه عمل نامې ددوی دي. ویسمی الکتاب اماماً کما في قوله تعالی "وکل شيئ احصیناه في امام مبین ای اللوح المحفوظ" او محمد بن کعب رح وايي "بامهاتهم" یعني د مور په نامه (نو امام جمع د ام ده لکه خفاف جمع د خف)

**درویش وايي:** چي د مور په نامه بللو کي حکمت الهي دادی چي یو تعظیم د عیسی علیه السلام دی چي ده څو پلار نه درلودی، او بل اظهار د شرف د حسن او حسین رضی الله عنهما چي مور یې خاتون الجنة بنت نبي الشفاعة محمد رسول الله ﷺ یعني فاطمة الزهرا رضی الله عنها ده، او بل حکمت دادی چي اولاد د زنی رسوا نه سي.

**تنبیه:** قوله "امامهم" حال دی له کل اناس څخه. والمعنی مختلطین بامامهم

الى بمن ایتموابه من نبي او کتاب او رئیس في الخیر والشر او حاملین کتب اعمالهم على الاختلاف في تفسیر الامام.

**درویش وایي**: چي صاحب د روح المعاني پر دې توجیه اخیر باندې شدید انکار کړی دی. ان شئت فارجع الیه. او روح البیان او مظهري دا توجیه په ډېر شوق سره مختاره کړې "وعندي ان هذا التوجیه صحیح بلا ریبة، او روح البیان په دې باره کي حدیث د تلقین المیت وقت وضعه في القبر هم رانقل کړي دي یعني چي تلقین المیت دي د مور په نامه سره کوي. او روح البیان نسبت ددغه حدیث و امام سخاوي ته کړی دی چي په مقاصد حسنه کي یې راوړې دي او سندونه یې هم صحیح ګڼلي دي، او تفسیر بحر العلوم هم دا توجیه تائید کړې ده. او امام قرطبي هم په تذکرة داغه توجیه مختاره کړې ده. فقیر وایي چي په مقابل کي د هؤلاء الاعلام وکلام ته د روح المعاني باید د تحسین نظر ونه کړل سي والله اعلم.

**فَمَنْ أُوتِيَ كِتَٰبَهُۥ بِيَمِينِهِۦ فَأُو۟لَٰٓئِكَ يَقْرَءُونَ كِتَٰبَهُمْ**

هغه څوک چي راوبلل سول، چي ورکړه سي عمل نامه دووی په رسته لاس چي سعداً او نیک عمل وي. نو دغه کسان قرائت کوي خپل عمل نامه یعني په قرائت ظاهره چي نور خلګ یې هم واوري، او په خپلو حسناتو چي په عمل نامه کي وي ډېر خوشاله وي.

**پوه سه**: چي ورکول د عمل نامې په رسته لاس لپاره د اعزاز د صاحب الکتاب دی او ضمناً بشارت او زېری هم دی.

**پوه سه**: چي اسم اشاره او دوه ضمیره یې جمع راوړه په اعتبار د معنی د "من" ولي د "من" اطلاق پر مفرد او جمع دواړو روا دی. وانما قلنا هذا لان السعداً کثیرون جداً.

**پوښتنه**: د اشقیا ذکر یې ونه کړی که څه هم هغه خو خپلي عمل نامې ویلای سي؟
**ځواب**: هو! لکن دوی یې په قرائت ظاهره سره نسي ویلای خوفاً وحیاءً او د خوشالي شی نه ویني په عمل نامه کي.

وَلَا يُظْلَمُونَ فَتِيلًا ﴿٧١﴾

او پر دوی ظلم نه کول کېږي د فتیل په اندازه. یعني چي یا دي حسنات د هر وي او په عمل نامه کي یې لږ نوشته وي، او یا سیئات ناحقه پکښې نوشته وي.

**پوه سه:** چي فتیل ضرب مثل دی په قلت او حقارت کي. او لغوي معنا یې یا هغه خیره ده په منځ کي د دوو گوتو. او یا هغه تار دی چي د خورما د منډکي په غار رنګه ځای کي وي.

**فائده:** فتیلاً منصوب دی او مفعول مطلق دی. والتقدیر فلا یظلمون ظلماً قدر فتیل (نو دا سوال نه واردېږي چي فتیل خو نه په لفظ کي او نه په معنی کي د ظلم سره یو شی دی، یعني نه داسي دی لکه ضربت ضرباً او نه داسي دی لکه قعدت جلوساً)

**پوه سه:** چي مظهري وایي چي د هغو کسانو حال یې نه کړی ذکر چي کافران دي، اکتفاءً په وروسته آیت سره وکړه یعني ومن کان آه کما سیأتي.

**درویش وایي:** چي حاصل د کلام دادی چي کاملانو د مسلمانانو یعني اولیا الله الکرام دي عمل نامه په راسته لاس ورکول کېږي تبشیراً، او د فاسقانو د مؤمنانو عمل نامه په چپه لاس ورکول کېږي. لکن دوی که څه هم ویلای سي له خجالت څخه ظاهراً یې نه وایي بلکې وایي "یالیتني لم اوت کتابیه ولم ادري ما حسابیه. او د کفارو عمل نامه وراً ظهره ورکول کېږي یعني خپل چپه لاس یې تر څیګر وباسي عمل نامه یې د شا د خوا ورکړي کما جاء في موضع آخر من القرآن لکن دلته هغه هم نه کړه لدلالة الآیة کمامر.

وَمَنْ كَانَ فِي هَٰذِهِ أَعْمَىٰ فَهُوَ فِي الْآخِرَةِ أَعْمَىٰ وَأَضَلُّ سَبِيلًا ﴿٧٢﴾

څوک چي په دې دنیا کي ړوند وي (یعني په ړوند والي د زړه چي کافران دي چي په زړو یې دلائل د توحید نه لیدله او لار د حق یې په حق سره نه پېژندل) نو دی به په اخرت کي ړوند وي، یعني نجات من عذاب الله به نه ویني لان عمی الدنیا موجب لعمي الآخرة فالکافر لا یهتدي الی الجنة. او ډېر به ګمراه وي تر



Scanned by CamScanner

اعمی د دنیا لزوال الاستعداد وتعطل الاسباب یعني د دنیا ظاهري روند په لکړه لار پیدا کولای سي. یا معنی داده چي کافر په دنیا کي خو استعداد د قبول د حق یې باقي ؤ او په اخرت کي هغه هم ځني سلب سي او په دنیا کي مهلت ورکړه سوی ؤ. او په اخرت مهلت نسته او که یې په دنیا کي توبه له کفره ځخه کښلې وای قبلېدله او په اخیرت کي توبه نه قبلېږي.

**سوال:** نحات وایي چي شرط د بنا د اسم تفضیل دا دی چي لون او عیب به نه وي او عمی خو عیب دی. نو څرنګه اسم تفضیل ځني جوړ سو یعني اعمی؟

**ځواب:** مانع د بناً د اسم تفضیل عیب ظاهري دی دلته خو مراد د عمي القلب ؤ. نو د اعمی مثال په دې ځای کي چي عمي القلب ځني مراد ده لکه احمق اجهل ابله چي هغه هم عیوب باطنه قلبیه دي نحات یې روا بولي.

**درویش وایي:** چي محدثینو له ابن عباس رضي الله عنهما څخه داسي روایت نقل کړی دی چي امیه بن خلف او ابو جهل بن هشام. او بعض نور کسان د قریشو مشران رسول الله ﷺ ته راغله. او داسي یې ورته وویل چي ته راسره زموږ خدایان مسح کړه موږ به ستا په دین کي داخل سو. او د علیه الصلوة والسلام د قریشو ایمان ته ډېر میل ؤ.

**درویش وایي:** چي دا شان نزول مظهري رحمه الله ذکر کړی دی او تفسیر کواشي داسي شان نزول ذکر کړی دی چي مشرکانو د مکې د علیه السلام څخه دا مطالبه وکړه چي ته په ځای کي د آیت د عذاب ستا په قرآن کي آیت رحمت کښېږده. او زموږ آلهة مسح کوه په وخت کي د مسح د حجر اسود. او ضعفاً مساکین لکه بلال صهیب رضي الله عنهم وغیرهما د خپل مجلسه ولاړه وه چي موږ درسو. او دوی طمع ورکړه و علیه السلام ته د ایمان راوړو. او علیه السلام د قریشو د ایمان راوړو ډېر محب ؤ. نو دا آیت نازل سو.

**وَإِن كَادُوا لَيَفْتِنُونَكَ عَنِ الَّذِي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ لِتَفْتَرِيَ عَلَيْنَا غَيْرَهُ**

ان مخفف د مثقل دی اسم ضمیر شان محذوف دی یعني شان دا دی نژدې ده چي کفار د مکې دي تا په فتنه کي واچوي د هغه قرآن څخه چي وحي کړي موږ وتاته یعني که ته هغه مطالبې د دوی ومنې چي په شان کي د آیت تیري سوې؛ چي ته افتراً ووایې پر موږ باندي غیر د "ما اوحینا الیک".

وَإِذًا لَّاتَّخَذُوكَ خَلِيلًا ﴿۷۳﴾

یعني كه ته داغسي وكړي نو دوى به تا وګرځوي خپل دوست او موافق.

وَلَوْلَا أَنْ ثَبَّتْنَاكَ لَقَدْ كِدْتَ تَرْكَنُ إِلَيْهِمْ شَيْئًا قَلِيلًا ﴿۷۴﴾

او كه نه واى موږ ټينګ كړى ته پر دين حق، یعني د دوى خبري دي ونه منلي، په تحقیق نژدې وه چي تا به میل كړى واى. وه كفارو ته د مكې یعني په منلو كي د مطالبو د دوى "شيئا" قليلا" یو لږ ركون.

**درويش وايي:** چي سره د دې چي كفارو د مكې ډېر چمونه او حيلې وكړې په خطايستلو كي د عليه السلام او سره د سخت حرص د عليه السلام پر اسلام د دوى، لږ ركون په تاكي پيدا سوى واى كه تثبيت زموږ نه واى لكن زموږ عصمت ستا جلو ګيري وكړه چي لږ ميل وكفارو ته په تاكي نه سو پيدا "فضلا عن الكثير" وفضلا عن نفس الركون في الواقع" او دا ايت دليل د دې ده كمال استقامت او د صلاح په استعداد كي د عليه السلام "بحيث لو لا تداركه التثبيت من الله والعصمة فرضًا لا تقرب من الميلان الى المعصية الا قليلا وقليل الاقتراب الى المعصية لا يقتضي الوقوع فيها فكيف اذا ادركته العصمة ومنعته من قليل الاقتراب من الركون فضلا عن كثير الاقتراب وشتان بين الاقتراب الى الركون وبين نفس الركون فالآية صريح انه صلى الله عليه وسلم ماهمّ باجابتهم مع فوق الداعي "والله اعلم.

إِذًا لَّأَذَقْنَاكَ ضِعْفَ الْحَيَاةِ وَضِعْفَ الْمَمَاتِ

كه تا لږ ميل كړى واى موږ به په تا څكلى واى عذاب د دنيا او د آخرت مضاعف د هغه عذاب چي بل چا ته مي وركولاى، ولي خطا د لوړ رتبه سړي لو يه وي تر عذاب د كښته رتبه چا.

**پوه سه:** چي اصل كلام داسي وو "عذابا ضعفا في الحيوة وعذابا ضعفا في الممات ثم حذف الموصوف" چي عذابا وو واقيم الصفة مقامه چي "ضعفًا" دى بيا يې د صفت اضافت و هغه شي ته وكړى چي موصوف يې ورته مضاف كړى اى الحيوة والممات فافهم.

ثُمَّ لَا تَجِدُ لَكَ عَلَيْنَا نَصِيرًا ﴿٧٥﴾

بیا به نه وای پیدا کړی تا پر موږ کومک کوونکی چي زموږ عذاب دي لـه تا څخه لیري کړی وای.

**درویش وایي**: چي په بعضي الفاظو کي د شان نزول داسي الفاظ راغلي دي چي د علیه الصلوة والسلام په زړه کي في الجملة میل پیدا سو ددوی و مطالبو ته. روح المعاني وایي چي وفي بعضها ای په بعض حدیثو کي شان نزول ددې آیت مالا یصح نسبته الی الرسول ﷺ چي د نسبت د هغه و رسول الله ﷺ ته نه دی صحیح. یعني دده مبارک په زړه کي میل پیدا سو ددوی و مطالبو تـه. وذالک یدل علی الوضع. دا نسبت پر دې دلالت کوي چي هغه حدیث چي داغه الفاظ پکښي وي موضوعي دی. والتفسیر لایتوقف علی شیئ من ذالک. او تفسیر د قرآن پر موضوعي حدیثو توقف نه لري انتهی قول روح المعاني.

وَإِن كَادُوا لَيَسْتَفِزُّونَكَ مِنَ الْأَرْضِ

او شان دادی چي قریب ده چي کفار مکه دي چابک تا وباسي له مځکي څخه.

**پوه سه**: چي "ان" مخفف دی له مشدد څخه. او اسم ضمیر شان محذوف دی والاصل انه "من الارض ای مکة".

**سوال**: څه قرینه ده چي ان مخفف د مثقل دی. او نافیه نه دی؟

**ځواب**: وروسته لام یي قرینه ده چي په خبر کي د نافیه لام نه راځي.

**پوه سه**: چي مظهري تفسیر د ارض په مدینه سره کړی دی.

**درویش وایي**: چي دا تفسیر د سیاق سره د آیت او د هغو احادیثو څخه چي په شان نزول کي د آیت مظهري په خپله هم راوړی دی. د هر مخالف او منافي دی. فحق القول ان لکل علم هفوة ولکل صارم نبوة، والصحیح ما قال صاحب روح المعاني ای ارض مکة. او مجاهد او قتاده وایي الارض ارض مکة والآیة مکیة یعني مشرکین د مکي په دې کوشش کي وه چي علیه الصلوة والسلام په یوه او په بله بهانه له مځکي څخه وباسي. لکن په دې کوشش کي خدای ﷻ دوی ناکام

کړه، وروسته خدای ﷻ علیه الصلوة والسلام ته د هجرت امر وکړی چې په رضا له مکې څخه ووزه او مدینې ته ولاړ سه. محي السنة بغوي رح وایي چې تفسیر د ارض په مکه سره الیق دی لان ماقبلها خبر عن حال اهل مكة والآية مكية.

**درویش وایي:** چې مظهري دلته یو بل احتمال ابعد جداً ددې آیت په ترجمه کې راوړی دی. قال قيل العرب كلهم ارادوا ان يستفزوا رسول الله ﷺ من ارض العرب كلها باجتماعهم الظاهر به علیه السلام فمنع الله عزوجل رسول الله ﷺ ولم ينالوا منه ما املوا انتهى.

لِيُخْرِجُوكَ مِنْهَا وَإِذًا لَّا يَلْبَثُونَ خِلَافَكَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿٧٦﴾

او که دوی تا وباسي له مځکې څخه كذا قال روح المعاني وروح البيان دوی به درنګ یعني ژوند ونه کړي په مکه کې تر تا وروسته مګر نه لږ زمانه. ولې چې ددوی یعني د کفارو د مکې اوویا (۷۰) کسه په شمول د ابو جهل فرعون هذه الائمة مخور کسان او رئیسان د مکې په بدر کې بعد الهجرة ووژل سوه.

**پوښتنه:** خدای ﷻ "لایلبثون" په صیغه د جمع راوړی چې ټوله اهل مکه ځني مراد دي او په بدر کې خو محدود اوویا کسه ووژل سوه وبقى في مكة كثيرون من اهل مكة؟

**ځواب:** روح المعاني وایي چې چونکه وژل سوي کسان په بدر کې خو صناديد د اهل مکه وه، نو ددوی وژل لکه وژل د ټوله اهل مکه دي، وانت تعلم ان معظم الشيئ يقام مقام كله انتهى.

**فائده:** دا زمان قلیل چې په قرآن کریم کې ذکر سوه په روایت د ابن ابي حاتم له سدي څخه اتلس (۱۸) میاشتي وې.

**درویش وایي:** چې دا تفصیل او بیان چې فقیر وکړی موافق ددې سره دی چې دا سورت او دا آیت مکي دی، او مظهري داسې تفسیر د "الاقليلاً" کړی دی. قيل وكان كذالك فان يهود المدينة قتل منهم بنو قريظة واجلى يهود خيبر في خلافة عمر رضي الله عنه وقتل مشركوا مكة بعد خروج النبي ﷺ يوم بدر (اى رؤسائهم) كمامر انتهى.

**درویش وایي:** چې مظهري په تفسیر کې یهود د مدینې راوړه، او قتل د قریشو په بدر کې دا خو وروسته تر هجرت وه. نو دده په نیز دا آیت مدني دی وقد مر من قبل تفسیر المظهري رح "الارض" بالمدینة ایضاً، والله اعلم بمراد عباده.

سُنَّةَ مَنْ قَدْ أَرْسَلْنَا قَبْلَكَ مِنْ رُّسُلِنَا وَلَا تَجِدُ لِسُنَّتِنَا تَحْوِيلًا ﴿٧٧﴾

طریقه د هغه رسولانو لپاره ده چې را استولي مو وړ تر تا د مخه یا محمد (ﷺ) د رسولانو څخه زموږ هغه طریقه او سنت. او عادت د خدای ﷻ دا دی چې هر قوم چې خپل نبي او رسول له منځه وباسي هغه به هلاکیږي. یعني کما یدل تواریخ الرسل من قبلک.

**پوه سه:** چې "سنة" لفظ منصوب علی انه مفعول لفعل محذوف ای سن الله ذالک سنة.

**سوال:** دا سنت او عادت خو د خدای ﷻ ؤ او دی، نو "سنة" یې و رسل ته ولې مضاف کړی؟

**ځواب:** له دې سببه چې دا عادت د رسولانو د خدای ﷻ منظور کړی دی. او هر گز به نه کړې پیدا ته د سنت قدیمه زموږ تغییر او تبدیل.

**فائده:** د خدای ﷻ له دوستانو څخه لکه انبیاء علیهم السلام باید عاقل سړی ډېر ډېر بیږي تر دښمنانو خپل. بعض اهل الله وایي "اهرب عن خیر الناس اکثر مما تهرب عن شرهم" ته ځان ساته له خیر څخه د خلگو ډېر تر هغه چې ځان ساتي له شر څخه د خلگو "فان خیرهم یصیبک في قلبک وشرهم یصیبک في جسدک" ولې خیر الناس دی په زړه کې تاثیر کوي او شر الناس دی په بدن کې. او هغه دښمن چې تا و خدای ﷻ ته راجع کوي. یعني له خدای ﷻ څخه دده له شره خلاصون غواړې، افضل دی تر هغه دوست چې تا له خدای ﷻ غافله گرځوي یعني په لهو ولعب او بانډو دې اخته کوي، او هر مرض، مصیبت، فقر وغیرها چې پر تاسې هغه پوره ډره د خدای ﷻ تا و خدای ﷻ ته متوجه کوي او حقیقت توحید ته دې کشوي. فهو نعمة ولذة في صورة الم ومصیبة. حافظ شیرازي رح وایي:

بدرو صاف تراحکم نیست دم درکش ..... که هرچه ساقی ما کرد عین الطافیست

## أَقِمِ الصَّلَوٰةَ لِدُلُوكِ الشَّمْسِ

كلمه د لام لپاره د وقت ده. والمعنى صل وقت زوال الشمس من غاية الارتفاع.

**پوه سه:** چي دا لمونځ د ماپښين دی. او دا هم مذهب د ابن عباس، ابن عمر او جابر ﷺ دی او مذهب دی د قتاده. عطا، مجاهد. حسن او اكثرو تابعينو رحمهم الله او پر دې دلالت كوي هغه حديث چي بيهقي روايت كړی دی له حديث څخه د ابي مسعود الانصاري ﷺ من قول رسول الله ﷺ "اتاني جبرئيل لدلوك اى حين زالت الشمس فصلى بي الظهر الى اخير الحديث".

**درويش وايي:** چي ترجمه د "دلوك" په زوال سره اولی ده تر ماسپښاتي قريباً معنى يو په سبب ددې چي ترجمه د "دلوك" په زوال سره ببخښي د پېرو مفسرينو كمامر كړې ده او بل پر تقدير د حمل پر زوال دا آيت جامع د پينځو سرو لمونځو گرځي كما سيئاتي ان شا الله تعالى.

**فائده:** زوال ته ولي "دلوك" وايي؟ له دې سببه چي په دغه وخت كي چي سړی لمر ته وگوري شعاع د لمر دده پر سترگو ظلمة راولي. نو باره سترگي موږي چي شعاع د لمر ځني بوزي. او بعض مفسرين وايي چي معنى د "دلوك" په آيت غروب د لمر دی. بغوي وايي چي د ابن مسعود ﷺ څخه روايت دی چي معنى د دلوك غروب ده. او دې ته ابراهيم نخعي او مقاتل بن حبان او ضحاك او سدي رحمهم الله هم تللي دي. او دا معنى قاموس هم كړې ده. قال دلكت الشمس دلوكاً غربت.

**فائده:** اصل معنى د "دلوك" ميل دی. نو لمر په وخت كي د زوال ميل كوي له غاية ارتفاع څخه و انحطاط ته او په وخت كي د غروب ميل كوي الى انيكون تحت الارض، باعتبار مغارب الآفاق المائلة.

## إِلَىٰ غَسَقِ الَّيْلِ وَقُرْآنَ الْفَجْرِ

بيا تر غروبه پوري د شفق د شپې. الى امتلا ظلمة الليل. په قاموس كي وايي چي الغسق ظلمة اول الليل. او "الغاسق" و سپوږمی. ته وايي تر اولو دره شپو پوري. نو په دې آيت پر صحيح يعني چي د "دلوك الشمس" ترجمه په زوال

سره وسي، ځلور لمونځونه راغلـه ماپښين، مازديگر، ماښام، ماخستن او د سهار لمونځ په وروسته آيت کي داخل دی.

**فائده:** فراءرح وايي چي قرآن الفجر چي منصوب دی په دې سبب چي عطف دی پر صلوة، والمعنی اقم قرآن الفجر. او نحات د بصري وايي: چي قرآن الفجر منصوب دی علی علی الاغرا، والتقدير و عليک قرآن الفجر، معنی اغرا باعثه کول ده، کما في کتب النحو. او بعض مفسرين وايي چي منصوب دی په اقرأ سره چي محذوف دی والتقدير اقرأ قرآن الفجر والمعنی اقرأ القرآن في صلوة الفجر. درويش وايي چي دا احتمال بعيد دی لکثر المحذوفات فتدبر.

## اِنَّ قُرْاٰنَ الْفَجْرِ كَانَ مَشْهُوْدًا

په تحقيق د سهار لمانځه ته ملکي د شپې او د ورځي دواړې حاضرېږي. له حضرت ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي لمونځ د سړي په جماعت سره افضل دی تر يوازي لمانځه پينځه ويشت (۲۵) درجې وفي رواية (۲۷) درجې، ويجتمع ملائکة الليل وملائکة النهار في صلوة الفجر، ابو هريره ﷺ وويل "اقرؤا ان شئتم" يعني که ستاسي اجتماع ملائکة الليل والنهار خوښ وي، نو دا آيت ووايا ست "ان قرآن الفجر کان مشهوداً" يعني دغه يې دليل د اجتماع دی کمامر، رواه البخاري وغيره.

**پوه سه:** لـه "قرآن الفجر" څخه د سهار لمونځ مراد دی. لان قرائة القرآن جزءمنه. فهو من قبيل تسمية الکل باسم الجزء . لکه لمانځه ته چي رکوع او سجده هم وايي باعتبار الرکنية فيها.

**پوه سه:** چي حفظه کرام د شپې تر سهاره تر لمانځه باقي وي چي د ورځي حفظه راځي بيا د شپې حفظه ځي اسمان ته او د ورځي دا پاتېږي. نو حفظه د شپې په خپل دفتر کي ټول له احوال او اعمال د بنده جمع کړي وي. او د ورځي ملکي په خپل دفتر کي شروع په احوالو د ورځي کوي.

**درويش وايي:** چي په صحيح حديثو کي راغلي دي چي ملائکة الليل والنهار د مازديگر له لمانځه کي هم سره جمع کېږي، نو د ورځي ملکي ځي، او د

شپې ملكې پاتېږي، كه څه هم صلوة العصر په مشهود سره نه دى موصوف
سوى لان الوصف غير لازم.
**فائده**: دغه ملائكې د ورځې او د شپې معين ملكې دي چې د سړي سره
همراه وي طول عمره، او كه هر شبانه روز نوي نوي ملكې راځي، فيه اختلاف
للعلماً والاشهر والاظهر هو الاول فافهم، ولا نطول الكلام بذكر الدلائل والنقض
والابرام كما هو ديدن بعض المفسرين.

وَمِنَ الَّيْلِ فَتَهَجَّدْ بِهٖ نَافِلَةً لَّكَ

اى بعض الليل "فتهجدبه" يعني فاترك النوم لان الهجود هو النوم او ضمير
د به راجع دى و قرآن ته.
**مسئله**: كه يو سړى بيده نه سي او له اول څخه د شپې مقدار معين خپل
لمونځ وكړي دا تهجد نه بولي لان لفظ التهجد يدل على التكلف في ترك
النوم، او دي سړي دغسې ونه كړه.
**مسئله**: د تهجد لمونځ نه مقدار معين د ركعتو لري او نه مقدار معين د قرائت
لري بلكې ادنى يې څلور ركعته دى او اعلى يې دوولس (١٢) ركعته دي البته
علماً وايي چې كه څوك يو ځاى د تهجد لپاره مقدار معين وخت ايښى وي مثلاً چې
زه په هره شپه نيم ساعت مثلاً د تهجد لمونځ كوم، نو په ركعتو كې د لمانځه د
تهجد دې لنډ لنډ سورتونه وايي تاچې په هغه نيم ساعت كې چې ده معين كړي دي
ډېر ركعتونه او ډېرې سجدې ځاى سي، او كه سړي تعداد د ركعتو و ځان ته ټاكلى
وي مثلاً اته (٨) ركعته، نو دې لوى سورتونه په ركعتو كې وايي تاچې ډېر وخت په
بره كې ونسي، علماً وايي چې افضل د نوافلو صلوة التهجد دى.
**مسئله**: كه د سړي پر ځان باور او اعتماد وي يعني په تجربه سره چې د تهجد
لمانځه ته راويښېږم، نو دې وتر وځنډوي او د صلوة التهجد وروسته دې وكړي
كما جا في الحديث النبوي "اجعلوا اخير صلاتكم بالليل وتراً او كما قال عليه‌السلام" او
كه سړي پر ځان باور د ويښېدلو نه درلودى، نو وتر دې په اول الليل كې وكړي
لان الوتر واجب، چې ځني قضاً نه سي.

**فائده مهمه:** په درمختار کي په مناقبو کي د امام الائمة سراج الائمة المرحومة النعمان ابي حنيفه رحمه الله راغلي دي چي ده څلويښت کاله د ماخستن په اودامسه د سهار لمونځ كاوه. دا خبره وهابيانو او د ظواهر الآحاديث اتباع او پنج پيريان او سلفيان د خندا ور خبره بولي. او له حدود څخه يې د امكان وتلي خبره بولي. ولي امام اعظم خو مايته درلوده، نو كه د جماع ضرورت ورته پېښ سوی وای په دې مده طويله كي، نو بيا يې څرنگه د ماخستن په اوداسه د سهار لمونځ كاوه. او داغه رنگه په دې مده طويله كي كه د خوب غلبه پر ده راغلي وای، نو په خوب سره خو دده په مذهب كي اودس ماتېږي. نو بيا خو هم د ماخستن په اوداسه د سهار لمونځ وه نسو. الى غير ذالک من الاعذار في تلک المدة الطويلة دوی وايي چي دومره افراط او مدح بالباطل په شان كي د امام المذهب نه ښايي. ولي چي مدح شيبه بالذم ده؟

**ځواب:** اي بېچاره گانو او نادانانو كاشكي تاسي يو ادنی فهم او فكر درلودای دا خبري به مو په حق د هغه چا چي پر صحيح مذهب له تابعينو څخه و يعني په دويمه درجه كي د خير القرون ؤ نه كولای. قال رسول الله ﷺ "خير القرون قرني ثم الذين يلونهم ثم الذين يلونهم" او د هغه چا چي په مدح كي دده عبدالله بن المبارک رحمه الله چي ناموري محدث دی داسي وايي:

لقد زان البلاد ومن عليها ...... امام المسلمين ابو حنيفة

فما بالمشرقين له نظير ...... ولا بالمغربين ولا بكوفة (الى اخير القصيدة)

تاسي نابوهانو تر اوسه د ماخستن وخت نه دی پېژندلی او سره ددې چي د ماخستن په اجماع د امت مرحومه تر صبح صادقه پوري دی، نو امام اعظم رحمه الله د ماخستن فرض او سنت چي وگذارل يعني په وخت معتاد عند الناس كي وتر به يې پرېښول تاچي تر تهجد وروسته يې وگذاري كما هو المسنون چي په صحيح كي د بخاري راغلي دي چي اخير د لمانځه د شپې بايد وتر وي. نو امام اعظم رحمه الله د شپې خوب كاوه، او نور ضروريات به يې هم پر ځای كړه په ثلث اخير يا په سدس اخير كي چي په راويښ سو اودس به يې تازه كړی او د تهجد لمونځ هر څو ركعته چي به

ږ هغه به يې هم ادا كړي وتر به يې په پاى كې وكړه هغه اودس به يې ږ د سهار لمونځ به يې په وكړى (۴۰) څلوېښت كاله يې دا عادت ږ، زه تاسي ته وايم چې تاسي يو خت د تهجد لمونځ كوئ؟ د كوم وخت نوم يادوئ؟ شک نسته چې هر سړى د تهجد د لمانځه سره د ماخستن وخت يادوئ.

**تنبيه**: بعض علماً د مذهب چې د سوال ځواب داسي وركړى دى چې امام اعظم رح د ناستي په خوب ځان آموخته كړى ږ، پر داسي ډول چې فقهاً وايي چې د ناستي په خوب اودس نه ماتېږي، دا ځواب صحيح نه دى، ولې چې امام اعظم چې ګرده شپه به په ناستي بيده ږ نور ضروريات يې څه وخت اجراً كول كمامر، او بله ځبره داده چې په فتاوى هنديه كې وايي چې كه يو سړي ځان د شپې په خوب په ناستي اموخته كړى ږ. د هغه اودس د ناستي په خوب ماتېږي.

**سوال**: داسي عادت خو بل څوک هم كولاى سي چې تا د امام اعظم رح د ماخستن په اوداسه د سهار لمونځ وكړى فما فضيلة الامام ؟

**ځواب**: كه دومره مده طويله يعني څلوېښت (۴۰) كاله وكړى او مجتهد هم وي او د خير القرون څخه وي هغه بېشكه د امام اعظم رحمه الله په درجه كې حسابل كېږي، والله اعلم.

**درويش وايي**: چې فقير پوره مناقب د امام اعظم رح په شرح كې دا بو المنتهى چې د عقائدو يو كتاب دى په پښتو ژبه ځېرلى دى او حواله يې و كتابو ته د تواريخو اسلاميه وو هم يكښې ده كه څوک دا غواړي چې د امام اعظم رح په ټولو مناقبو ځان خبر كړي هغه شرح د فقير دي مطالعه كړي چې ان شاً الله په مكتبة القرائت والتجويد كانسي روډ كې به اوس هم موجوده وي.

**پوه سه**: چې نفل په معنى د زيادت دى، ومعنى قوله تعالى "نافلة لک" فريضة زائدة على الصلوات الخمس، المفروضة على العموم خاصةً بک دون الامة، او مظهري رح وايي چې د تهجد لمونځ په ابتداً كې فرض ږ پر نبي عليه السلام او پر امتيانو هم فرض ږ او دليل يې سورت مزمل ويلى دى وروسته يې داسي عبارت ويلى دى فنزل التخفيف فصار الوجوب منسوخًا في حق الائمة بالصلوة الخمس آه، پر دې

عبارت دا سوال وارد دی چې فقها او اصوليين ټوله متفق پر دې دي چې ناسخ به تر منسوخ وروسته وي او سره ددې چې صلوة خمس پر امت د مخه هم فرض وه. نو څرنګه کيدای سي چې صلوة خمس چې متقدم وه ناسخ دي د فرضيت سي د صلوة تهجد له امت څخه. نعم د تهجد لمونځ لپاره د امت مستحب ؤ له اول الامر څخه لقوله تعالى "فاقرؤا ما تيسر من القرآن" دا امر استحباب دی. مظهري رح وايي چې لکن په دې کې اختلاف دی چې فرضيت د تهجد په حق کې د نبي عليه السلام هم منسوخ سوه يا څرنګه؟ بعض علماء وايي چې په حق کي د نبي عليه السلام يې وجوب پاته دی. په دليل د هغه حديث چې د عائشه رضي الله عنها څخه روايت دی "ان النبي صلى الله عليه وسلم قال ثلث هن علي فريضة وهي سنة لكم (ای غير فريضة) الوتر که څه هم پر امت واجب دی لکن فرض نه دی. والسواک وقيام الليل (ای التهجد) نو پر دې تقدير امر في قوله تعالى "فتهجد" لپاره د وجوب دی. نو د "نافلة لک" معنا داده "فريضة زائدة على سائر الفرائض فرضها الله تعالى عليک" او بعض علماء وايي چې فرضيت يې د عليه الصلوة والسلام څخه هم منسوخ سو.

**درويش وايي:** چې روح المعاني او نورو مفسرانو دا قول صحيح بللی دی. ولې ددې عبارت "نافلة لک" پر استحباب دلالت کوي. ولې که پر عليه الصلوة والسلام واجب وای، نو عبارت بايد داسې نافلة عليک، لان صلة الوجوب على دون اللام.

**سوال:** استحباب د صلوة التهجد خو د ټوله امت لپاره پر ځای دی، نو تخصيص د عليه الصلوة والسلام يې ولې وکړی بقوله "نافلة لک"؟

**سوال:** تخصيص د عليه الصلوة والسلام يې له دې سببه وکړی چې نوافل د امت کفاره د ګنهو ددوی ده، او نبي عليه الصلوة والسلام چونکه له ګنهو څخه معصوم ؤ ولم يکن عليه ذنب. نو نوافل د عباداتو دده لپاره رفع د درجاتو ده وزيادت القرب الى الله عزوجل کذا قال المجاهد والحسن وابو امامة .

**سوال:** فما معنى قوله تعالى "قد غفر الله لک ماتقدم من ذنبک وما تأخر"؟

**ځواب:** مراد په دې آيت ذلات وماهو من قبيل ترک الاولى دی. والدليل على کون صلوة التهجد نافلة في حق النبي صلى الله عليه وسلم حديث د مغيره رضي الله عنه دی چې ده وويل

چي نبي علیه السلام به په قيام الليل کي په طول د قرائت دومره ډربدی حتی چي پښې به يې وپړسېدلې، نو يو چا ورته وويل چي ته ولي دومره تکليف پر ځان وړې وقد غفر الله لک ماتقدم من ذنبک وما تأخر عليه الصلوة والسلام په ځواب کي داسي ورته وويل "افلا اکون عبداً شکوراً؟" داسي يې نه ورته وويل انها فريضة علي خاصة" او دليل د عدم الفريضه د تهجد پر عليه الصلوة والسلام هغه حديث د ابن عمر رضي الله عنهما چي بخاري او مسلم يې روايت کړی دی چي عليه الصلوة والسلام به په سفر کي صلوة الليل يعني تهجد پر راحله کاوه حيث توجهت به يومي ايماءً الا الفرائض، يعني د فرض لمونځو لپاره به له دابې ځخه راکښته کېدی، نو که صلوة التهجد پر ده فرض وای، نو ولي يې پر دابه به اشاره سره کاوه.

**فائده**: د مظهري رح هغه خبره چي صلوة التهجد په ابتدا کي پر عليه الصلوة والسلام او پر امت دواړو فرض ؤ مخالف ده ددې قول سره د روح البيان په تفسير کي ددې آيت "نافلة لک" ای فريضة زائدة لک دون امتک آه. او روح المعاني هم ويلي دي ای فريضة زائدة علی الصلوات خاصة دون الامة.

**درویش وايي**: چي دا قول د مظهري رح چي د تهجد لمونځ ابتداءً پر عليه الصلوة والسلام او پر امت تولو آه، د منولو وړ نه ده، ولي چي د جمهورو مفسرينو له قول ځخه خلاف ده مع الايراد السابق علی قوله ونسخ عن الامة بالصلوة الخمس آه کمامر عنقريب.

**مسئله**: د تهجد لمونځ د امت لپاره سنت دی، او مشهوره داده چي مستحب دی، والدليل علی کونها سنة دادی چي عليه الصلوة والسلام مواظبت پر کړی في الحظر والسفر کمامر، او بل دليل هغه حديث د ابن مسعود رضي الله عنه دی، چي يو چا ذکر کړی يو سړی په نېز د عليه الصلوة والسلام چي تر سهاره بيده ؤ او د تهجد لمونځ يې نه کړی ادا، عليه الصلوة والسلام وويل ذاک رجل بال الشيطان في اذنه، رواه البخاري و مسلم.

**فائده**: "نافلةً" چي منصوب دی مفعول مطلق د فعل محذوف دی ای تتفضل نافلةً، او روح المعاني په وجه کي د نصب د نافلةٌ ډېري اوږدې خبري کړي دي چي تر فهم د طالبانو بلکي د امامانو لوړي دي فلذا اعرضنا عنه.

عَسَىٰٓ أَن يَبۡعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامٗا مَّحۡمُودٗا ﴿٧٩﴾

شاید خدای ﷻ به تا ریاشوي یعني په ورځ د قیامت.

**یوه سه:** چي "مقاماً" منصوب دی په حذف سره د فعل دده، والتقدیر فیقمک مقاماً محموداً، د محمود معنی داده چي حمد به یې وایي اولین او اخرین چي مقام د شفاعت عظمی دی.

**یوه سه:** چي خدای پاک لفظ د "عسی" ووایه چي لپاره د طمع دی والطمع للعبد من الله الکریم کالواجب، بغوي وایي چي ابو وائل له عبدالله بن عمر ﷺ څخه روایت کړی دی چي علیه الصلوٰة والسلام وویل "اتخذ الله ابراهیم خلیلاً وان صاحبکم (یعني ذاته الشریفة) خلیل الرحمن واکرم الخلق علی الله" بیا علیه الصلوٰة والسلام دا آیت ووایه "عسی ان یبعثک ربک مقاماً محموداً" راوي د حدیث وویل چي پر عرش بې کښېنوی او عبدالله بن السلام ﷺ وایي پر کرسی به یې کښېنوی، لکن صحیح په نیز د مفسرینو او محدثینو داده چي مراد له مقام محمود څخه مقام د شفاعت دی چنانچه احمد، ابن ابي حاتم او ترمذي رح له ابي هریره ﷺ څخه روایت کړی دی عن النبي ﷺ چي ده مبارک ددغه آیت تفسیر داسي وکړی هو المقام الذي اشفع فیه لامتي.

**درویش وایي:** چي جلال الدین السیوطي ﷺ وایي چي علیه الصلوٰة والسلام به شفاعت دوه واره کوي یو شفاعت دی د اراحة په موقف کي او بله پلا شفاعت دی په جنت کي لپاره د اخراج د من بقی من المومنین في النار لاخراجهم منها، او بعض مفسرین دري واره شفاعت وایي، یو وار په موقف کي للاراحة ومرة للاذن في دخول الجنة، ومرة للاخراج من النار، کما قال علیه الصلوٰة والسلام، ولي عند ربي ثلاث شفاعات وعدفیهن، والمقام المحمود الشفاعة وهي تعم کل شفاعة من الشفاعات الثلاث.

**درویش وایي:** چي مظهري رح په مبحث کي د شفاعت عظمی ضد ونقیض روایتونه راوړي دي چي جمع یې مشکله ده، لکن فقیر وایي چي علامه جلال الدین السیوطي رح وایي چي احادیث د شفاعت د علیه الصلوٰة والسلام متواترة



Scanned by CamScanner

المعنى دي لكن سره د تواتره خوارج او معتزله له شفاعت څخه منكر دي، ددوي وايي چي اهلِ د كبائرو گنهو چي بې توبې مړ سي لاشفاعة لهم ولايخرجون من النار ابداً، نو دا انكار ددوي انكار دى له امر متواتر څخه. ولي په شفاعت كي دومره ډېر حديثونه راغلي دي چي معنى د هغو حد تواتر ته رسيږي.

**درويش وايي:** چي تفصيلِ ددې عقائدو ددوى او د اهل السنة والجماعة په كتابو كي د علم العقائد والكلام دى.

**پوه سه:** چي ترمذي له ابن عباس ﷺ څخه روايت دى كړى دى چي رسول الله ﷺ چي په مكه كي د ډېرو كړاوونو سره مخامخ وُ او خداى پاك امر كړى په هجرت سره و مدينې منورې ته. نو دا آيت نازل سو.

## وَقُلْ رَّبِّ اَدْخِلْنِیْ مُدْخَلَ صِدْقٍ وَّ اَخْرِجْنِیْ مُخْرَجَ صِدْقٍ

"مدخل صدق" يعني المدينة المنورة "مخرج صدق" يعني مكه مكرمه. كذا قال الحسن وقتاده . نو پر دې تقدير مدخل او مخرج چي منصوب دي يا ظرف دي يعني ځاى د دخول او ځاى د خروج او يا مفعول مطلق دى. نو پر دې تقدير مدخل او مخرج چي منصوب دى يا ظرف دى يعني ځاى د دخول او ځاى د خروج. او يا مفعول مطلق دى. نو پر دې تقدير مخرج او مدخل مصدر ميمي دي. يعني ادخلني المدينة ادخالاً مرضياً لا ارى فيه ما اكره. واخرجني من مكة اخراجاً مرضياً لا التفت بقلبي اليها. او ضحاک رح وايي چي اخرجني من مكة مخرج صدق، چي په امن كي يم د مشركينو له خوا څخه. وادخلني مكة ايضاً مدخل صدق چي ادخال مي و مكې ته په فتح سره وي. او مجاهد رح وايي ادخلني في امرک الذي ارسلتني من النبوة وتبليغ الاحكام واخرجني من الدنيا. په داسي ډول چي ما پر ځاى كړى وى هغه شى چي تا زه په امر كړى وم من تبليغ الدين المبين الى الناس. نو دا مخرج صدق دى. او بعض مفسران وايي وادخلني الجنة مخرج صدق واخرجني من الدنيا مخرج صدق. او قاضي بيضاوي وايي ادخلني في القبر ادخالاً مرضياً واخرجني من القبر عند البعث اخراجاً تلقي بالكرامة. وقيل معناه ادخلني في طاعتک واخرجني عن المعاصي. او بعض مفسرين وايي

چې مراد ادخال الغار یعني د جبل ثور غار چې علیه الصلوة والسلام او ابوبکر صدیق رضي الله عنه پکښې پټ وه د هجرت په وخت کې، او اخراج دی په سلامتیا او کفار سره د پلټنه پسي ګرځېدله. او د غار تر خولې پلټن پل راوستی او کفارو ته د مکې یې وویل چې تر دغه ځایه پورې د دوو کسانو پلونه راغلي دي نور نو نه پوهېږم چې اسمان ته ختلي دي او که په ځمکه ننوتلي دي، ابوبکر رضي الله عنه پټ و علیه الصلوة والسلام ته وویل که دوی کښېني او دې غار ته وګوري خو ما او تا به ووینې، آنحضرت صلی الله علیه وسلم ورته وویل ما ظنک باثنین الله ثالثهما.

**درویش وایي:** چې ټول احتمالات محتمل دي لکن الاحتمال الاول اولی والیق بالقبول یعني ما روی الترمذي عن ابن عباس رضي الله عنهما.

**وَّاجْعَلْ لِّيْ مِنْ لَّدُنْكَ سُلْطٰنًا نَّصِيْرًا ۝**

او ماته راکړې غلبه پر کفارو چې زما کومک سي. مجاهد رحمه الله وایي "حجة بینة" او حسن رحمه الله وایي "ملکًا قویًا" پر هغه چا چې زما دښمن وي او عزًا ظاهرًا اقیم به دینک. نو خدای پاک د جبرئیل علیه السلام په وحي خبر ورکړی چې بادشاهي له ملک څخه د فارس او روم واخلم تاته بې درکړم، قتاده رحمه الله وایي چې نبي الله صلی الله علیه وسلم په دې پوهېدی چې زما طاقت د امر نبوت په رسولو کې نسته بیله سلطان نصیر د خدای عزوجل، او خدای پاک داسي وعده هم ورکړه في آیة فان حزب الله هم الغالبون وفي اخری لیظهره علی الدین کله وفي اخری لیستخلفنهم في الارض.

**وَقُلْ جَآءَ الْحَقُّ وَزَهَقَ الْبَاطِلُ ۚ إِنَّ الْبَاطِلَ كَانَ زَهُوْقًا ۝**

او ته ووایه یا محمد (صلی الله علیه وسلم) په وخت کې د دخول د مکې یعني په وخت کې د فتح د مکې چې راغلی حق یعني دین الاسلام او عبادة الله وحده، او القرآن، او ولاړی باطل او هلاک سو شرک وعبادة الاصنام. یقال زهق روحه اذا خرج، په تحقیق لائق د باطله سره داده چې لغوه او تابود سي. د ابن مسعود رضي الله عنه روایت دی چې علیه الصلوة والسلام چې په کال د فتح د مکې حرم شریف ته داخل سو پر شاوخوا د بیت الله الشریف دري سوه شپېته (۳۶۰) بتان د مشرکانو ولاړ وه، نو علیه الصلوة والسلام به هر یو بت په یوه لکړه چې دده مبارک په لاس کې وه

واهه به يې او ده مبارک به ويل "جاء الحق وزهق الباطل وما يبدأ الباطل وما يعيد"
رواه البخاري و مسلم والترمذي والنسائي والطبراني والبيهقي وابن مردوية عن
ابن عباس ﷺ، وفي رواية يو بت چي د خزاعه د قبيلې وُ او د ژړو څخه جوړ
سوی وُ فوق الكعبة الشريفة و عليه الصلوة والسلام وه علي ﷺ ته وويل چي
كعبې ته وخېژه او دا بت لاندي راوغورځوه، او په صحيح روايت کي راغلي دي
چي عليه الصلوة والسلام څو ورځي وروسته تر فتح مكې هوري پاته وُ چي عزم د
تگ د مدينې يې وكړی عتاب بن اسيد ﷺ يې پر اهل مكه باندي عامل او حاكم
مقرر كړی، وقال انطلق فقد استعملتک علی اهل الله. او عتاب ﷺ ډېر سخت
گير وُ پر بې دينه خلگو او نرم وُ پر مخلص مؤمن باندي، او ده داسي ويله كه ما
څوک د جماعت له لمانځه څخه مختلف وليدی سر به يې په توره ورپرېكوم لانه
لايتخلف عن صلوة الجماعة الا منافق، نو اهل مكه شكايت وكړی و رسول
الله ﷺ ته چي تا عامل وگرځاوه پر اهل الله باندي عتاب بن اسيد ﷺ چي يو
صحرائي سړی او ډېر سخت مزاجه دی، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي ما
خوب وليدی چي عتاب بن اسيد د جنت دروازې ته ورغلی او د دروازې حلقه يې
كلكه ور وټكول او دروازه ورخلاصه كړل سوه او دی ور ننوتی، يعني نو له دي
سببه ما دی عامل اهل الله وټاكی، دا وُ تفصيل د قل جاء الحق الآية.

وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْآنِ مَا هُوَ شِفَاءٌ وَرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِينَ ۙ وَلَا

او موږ نازل وو "ماهو شفا" چي هغه قرآن دی چي شفا د امراض قلبيه وو من
الشكوک والشبهات والامراض النفسانية كحب الشهوات والرزائل من
الاعمال، او قرآن رحمت د خدای ﷻ له خوا څخه و مؤمنانو ته، يعني چي ايمان
پر قرآن لري، ولي قرآن و دوی ته امور دنياوية او امور دينيه او امور اخرويه
ورښيي، نو دوی له قرآن څخه نفع كامله اخلي، او دغه مفسران تولده وايي چي با
كلمه د من تبعيضي ده، نو معنا د آيت داسي ده چي موږ نازلوو بعض قرآن چي
شفا او رحمت دی للمؤمنين، نو پر دې تقدير له شفا څخه شفا د امراض بدنيه
وو ده كما ورد في الحديث النبوي، سورة الفاتحة شفا لكل دا (ای مرض).

**درویش وايي:** چي فقیر تولي خواصي د سورة الفاتحة قرائة وکتابة او فوائد ددې مبارک په اول جلد کي زما د پښتو شرح قدوري په سلیسه ژبه د پښتو سره د شرائطو سره جمع کړي دي. او د نور الایضاح په پښتو شرح کي مي هم راوړي دي.

په حدیث شریف کي راغلي دي علیکم الشفائین القرآن والعسل. او په بل حدیث کي راغلي دي "من لم یستشفي بالقرآن فلا شفا له"

**حکایت:** روح البیان او روح المعاني دواړه وايي چي د ابو القاسم القشیري قدس سره یو ولد مریض سو په سخت مرض سره چي دی له شفا څخه نا امیده سو. نو دی ډېر خپه ؤ. او د خدای ﷻ په جناب کي يې ډېري دعاوي د شفا د ولد مرض وکړې ....... بیت:

چون فرو آید بلا بی دافعی ........ جز تضرع نبود دیگر دافعی

د شپې يې خدای ﷻ په خوب ولیدی، ده د زوی په باره کي خدای ﷻ ته تضرع وکړه خدای پاک ورته وویل چي ته آیات د شفا په قرآن کي سره جمع کړه او پر وه يې وایه او نوشته يې کړه او په اوبو يې پر یمینځه په وه يې څښبنه. استاذ چي راویښ سو د اشفا الهي غیبي يې ژر تر ژره عملي کړه، خدای ﷻ ولد ته صحت ورکړی.

**یوه سه:** چي آیات شفا په قرآن مجید کي شپږ (٦) دي (١) ویشفی صدور قوم مؤمنین (٢) شفا لما في الصدور (٣) فیه شفا للناس (۴) وننزل ما من القرآن ماهو شفا ورحمة (۵) واذا مرضت فهو یشفین (٦) قل هو للذین امنوا هدیً وشفا.

**درویش وايي:** چي په قرآني سورتو او آیاتو کي د شفا قوت یقین پر قرآن او قوي اعتقاد پر قول د علیه الصلوة والسلام شرط دی. تاج الدین السبکي رح وايي چي ما ډېر مشائخ لیدلي دي چي دغه آیات الشفا و مریض ته د هر نوع ناجوړی چي وي ورلیکي او په څښبني يې، وقال الشیخ التمیمي رح في خواص القرآن اذا کتبت سورة الفاتحة په پاک لوښي کي او یا پر کاغذ او توري يې محوه کړي په پاکو اوبو کي او مریض مخ په پرېولي خدای ﷻ به يې جوړ کړي، او که دغه اوبه وڅښبني هغه څوک چي په زړه کي يې قلق او اضطراب یا شکوک

او شبهات وي یا یې زړه رېږدي چې خفقان یې بولي. یسکن باذن الله تعالیٰ؛ او که دغه آیات په پاک لوښي کې نوشته کړي او یو اندازه ارغ ورواچوي او یو بلید چې په شي یې سره نه خلاصېږي یا یې قوت حافظه کمزوره وي اووه ورځې وڅیښي زالت بلادته وحفظ مایسمع باذن الله تعالیٰ.

## وَلَا يَزِيدُ الظَّٰلِمِينَ إِلَّا خَسَارًا ۝

او نه زیاتوي قرآن و ظالمانو ته یعني منکرانو ته د قرآن مګر لوی تاوان. ولي د هغه هم تکذیب کوي.

**درویش وایي:** چې عجیب حال دی چې قرآن مبارک هم دوا ده او هم دا او مرض دی، قتاده رح وایي چې په مجلس کې د قرآن د سماع هیڅ څوک نه کښېني مګر نه په داسي حال کې چې ولاړېږي یا به یې ګټه کړې وي یا تاوان، خدای ﷻ د قرآن په شان کې وایي "شفاً ورحمة للمؤمنین، ولا یزید الظالمین الا خساراً"

## وَإِذَآ أَنْعَمْنَا عَلَى ٱلْإِنسَٰنِ أَعْرَضَ وَنَـَٔا بِجَانِبِهِۦ ۖ

چې احسان وکړو موږ پر یو انسان یعني په صحت او عافیت او په فراخی د رزق وغیر ذالک من النعم الظاهرة والباطنة، نو دی روی ګرداني وکړي له شکر څخه د هغه نعمت، او لېري والی وکړي "بجانبه" یعني غاړه وپېچي لکه د عادت د متکبرانو چې دی، ځان داسي واچوي لکه مستغني، کریمه "ان الانسان لیطغی ان راه استغنی".

## وَإِذَا مَسَّهُ ٱلشَّرُّ كَانَ يَـُٔوسًا ۝

او چې و هغه انسان منعم علیه ته شر ورسېږي. کالمرض والفقر والذلت، وګرځي نا امیده له رحمت څخه د خدای ﷻ.

دقیقه: د "انعام" اضافت او نسبت خدای ﷻ و ځان ته وکړی او له "شر" سره یې لفظ د "مس" راوړی! سبب یې دادی چې د کریم بادار نعمتونه هر وخت جاري وي کنه هم خدای ﷻ د نقمت په جلال کې وي، او شر یې صرف یو مس او لږ وي، کریمه "ان مع العسر یسراً ان مع العسر یسراً".

**درویش وایي:** چي په تنکير کي "یسر" چي معنی یې داده چي اول یې غیر له ثاني څخه دی، او په تعریف کي د عسر چي ثاني عین اول دی فکر وواهه.

**فائده:** کان یؤسًا" صفت د جنس انسان دی په اعتبار د بعض افرادو دده، چي پر دغه صفت وي فلا یرد السؤال بقوله تعالی "واذا مسه الشر فذوا دعاءً عریض لان هذا الوصف لبعض آخر.

## قُلْ كُلٌّ يَعْمَلُ عَلٰى شَاكِلَتِهٖ

**پوهـه:** چي تنوین د "کل" عوض دی له مضاف الیه څخه، والمعنا هر یو له خلگو څخه که شکور وي او که کفور که مطیع وي او که عاصي، عمل کوي پر خپل دول، ابن عباس ﷺ وایي چي علی ناحیته ای جانبه الذي یمیل الیه من الهدایة والضلال، او حسن او قتاده رح وایي چي د "شاکلة" معنی نیت دی (یعني که د چا نیت د دنیا ته وي یعني په عمل کي یې صلاح د دنیا مقصد وي او که یې میل و آخرت ته وي یعني ینوي بعمله وجه الله وصلاح الآخرة) او مقاتل او فرأ رح وایي علی طریقة جبل علیها، او قطبيي رح وایي چي علی طبیعته وخلیقته".

**درویش وایي:** چي ددې تفاسیرو د "شاکلة" مآل یو دی، یعني علی حسب استعداده الذي اودع الله فیه، کما في قول النبي ﷺ کل میسر لما خلق له. حدیث متفق علیه من حدیث علي ﷺ، او احمد رح له ابی الدرداﷺ څخه روایت کړی دی "بینما نحن عند رسول الله ﷺ نتذاکر ما یکون" (په دې دوران کي موږ د رسول الله ﷺ په مجلس کي ناست وُ او بحث مو په دې کاوه چي اینده به څه پېښېږي) "اذقال النبي ﷺ اذا سمعتم بجبل زال عن مکانه فصدقوه" (که تاسي واورېدله چي یو غر دي له خپل ځایه څخه زائل سو تصدیق یې وکړی یعني بحسب الامکان) "واذا سمعتم برجل تغیر عن خلقه فلا تصدقوا فانه یصیر الی جبل علیه" (او که مو واورېدله چي یو سړي تغیر د خپل اخلاقو څخه وکړی تصدیق یې مه کوئ، ولې چي هغه د ماخلق علیه ته راجع کېږي بالآخرة.

**درویش وایي:** چي تر له عادي شیان د محرماتو پرېښوول کېږي، مثلاً د چرس څکولو عادت، د شراب خوری عادت، د هیروئینو عادت یا د خدای ﷺ

بیره یې په زړه کې یې بیره پیدا سي، توبه و کارې او یا یې په علاج د ډاکټرانو، لکن یو محرم عادت سته د هغه عادت ځنځه توبه کښل امکان نه لري نه یې د خدای ﷻ بیره په زړه کې پیدا کېږي او نه ډاکټري علاج لري چې سړی سره د غنا چې په لکو روپۍ لري او سرایونه یې په بیع الوفا اخستي وي چې په فقر آموخته سو بیا فقر نه سي پرېښولای نه د خدای ﷻ له بېرېږي او نه د خلګو له شرمه، نه اضحیه کوي او نه صدقه الفطر ورکوي سره ددې چې پر واجب هم وي. لکن بېرېږي چې که خلق خبر سوه فقر به نه راکوي.

فَرَبُّكُمْ أَعْلَمُ بِمَنْ هُوَ أَهْدَىٰ سَبِيلًا ﴿٨٤﴾

نو ستا خدای ﷻ ښه علم لري پر هغه چا چې پر صحیح لار روان وي عقیدةً وعملاً چې خدای ﷻ ته یې ورسوي، او په هغه چا چې په لار کې یې کږوالی وي من حیث العقیدة او العمل یا لږ یا ډېر.

**درویش وایي**: چې دا دویم قسم خدای ﷻ نه کړی ذکر په آیت کې "لانه علم من المذکور فافهم" هداک الله وهداني الله ﷻ".

**تفریع**: څوک چې ځان وویني په طاعت کې د خدای ﷻ او په خیر او په شکر کې د خدای ﷻ، نو د خدای ﷻ ډېر حمد وایي، او څوک چې ځان وویني په شر او فسق او په کفران کې د نعمتو د خدای ﷻ، نو خدای ﷻ ته دې رجوع وکړي په توبه او انابت او په عجز سره دمخه تر دې کار یې لاس نه وي وتلی ... بیت:

توپیش از عقوبت درعفو کوب ..... که سودی ندارد فغان زیر چوب
خرمند طبعان و منت شناس ..... بدوزند نعمت بمیخ سپاس
طریق بدست آرد صلحی بجوی ...... شفیعی بر انگیز وعذری بگوی
که یک لمحه صورت نبندد امان ...... چو پیمانه پر شد بدور زمان

حسین کاشفي رح میگویند: آورده اند که کفار عرب نضر بن الحارث او ابی بن خلف او عقبه بن ابی معیط را بمدینه فرستادند تا از یهود یثرب یعني مدینه منوره استفسار حال پیغمبر علیه السلام نمایند چون فرستاده گان قریش مکه با ایشان ملاقات کردند، احوال پیغمبر علیه السلام باز گفتند، یهود متعجب شدند وگفتند ای

صنادید عرب ما دانسته ایم که زمان ظهور پیغمبري نزدیکست و از سخنان شما
رانچه احوال آن نبي استشمام میتوان کرد، شما بجهت ازمایش ازو به پرسید که
طواف مشرق ومغرب که کرده. و احوال جوانانیکه درزمان پیشن گم شده اند چه
گونه بود؟ (درویش وایي: چي له اول څخه ددوی مراد ذو القرنین و، او له دویم څخه
یې مراد اصحاب کهف وه) و روح چیست اگر هرسه را جواب دهد یا هیچ کدام را
جواب ندهد بدانید که پیغمبر نیست. و اگر دو راجواب دهد واز روح هیچ نگوید
پیغمبر است. ایشان که بمکه آمدند، مجلس ساخته و از آنحضرت علیه السلام سوال
کردند آن دو سوال را جواب داد و درباره روح این نازل شد.

وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ الرُّوحِ ۖ

او ستا څخه پوښتنه کوي د روح په باره کي.

**درویش وایي:** چي پر دي شان نزول دا آیت مکي دی، ولي سورة الاسرا کما مر مکي دی مگر نه اته (۸) آیته چي مدني دي یعني وان کادوا لیفتنونک الی اخیر ثمانیة الآیات، او مظهري رح ددې آیت په شان نزول کي داسي راوړي دي په روایت د بخاري د ابن مسعود رضي الله عنه څخه، ده وویل چي زه رهي وم د علیه الصلوة والسلام سره في حرث المدینة یعني د کښت په مځکه کي. نو د علیه الصلوة والسلام لکره وه چي تکیه یې پر کوله "فمر علی نفر من الیهود فقال بعضهم لبعض سلوه عن الروح. وقال بعضهم لا تسألوه لئلا یجئ بشئ تکرهونه (یعني د یهودو ځیني کسان ناست وه او سره وه یې ویل چي د علیه الصلوة والسلام څخه د روح په باره کي پوښتنه وکړئ او ځین وویل یا پوښتنه مه کوئ. ددې څخه ددوی مراد دا وو چي هغه اصلي حال د روح بیان نه کړي لکه په تورات کي چي دي، چي هغه دده د نبوت دلیل وګرځي او تاسي دده نبوت بد بولئ یعني عقیده نه ورته لرئ) وقال بعضهم لنسئلنه. فقام رجل منهم فقال یا ابا القاسم ما الروح، فسکت علیه الصلوة والسلام (یعني فوراً یې ځواب ورنه کړی، ابن مسعود رضي الله عنه وایي چي زما په زړه کي خیال سو چي علیه الصلوة والسلام ته وحي کېږي) فقمت فلما انجلی عنه الوحي نزل "ویسئلونک عن الروح"

**درویش وایي:** چي له دې شان نزول څخه صراحةً معلومه سوه چې دا سورت مدني دی، مع انه قدمر ان سورة الاسرا کلها مکیة الا (۸) آیة کمامر عنقریب. او تفسیر روح المعاني هم هغسې شان نزول بیان کړی دی لکه کاشفي چې بیان کړی، نو د روح المعاني په عقیده هم دا آیت مکي دی لکه ټوله سورة الاسرا چې مکي دی. او هغه چې ابن کثیر ؒ جمع کړې ده چې تعدد د نزول دې وي هغه د ټولو الفاظو د حدیثین مطابقت نه لري. فتدبر.

فقیر وایي چې ددې دوو شان نزولو جمع زه نسم کولای. تفاسیر مې مطالعه کړه په هیڅ تفسیر کې اشاره و جمعې ته نه ده کړې، نو ښه داده چې ووایم والله اعلم بالصواب.

قُلِ الرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّي وَمَا أُوتِيتُم مِّنَ الْعِلْمِ إِلَّا قَلِيلًا ۝

ته ورته ووایه چې روح (چې په ده سره بدن ژوندی دی او تدبیر د بدن کوي ببله حلوله په بدن کې چې روح انساني یې بولي. او په دغه روح سره امتیاز د انسان د نورو حیواناتو څخه کېږي، هغه روح له مخلوقه یو مخلوق دی چې نه ماده لري او نه تولد له یو اصل څخه لکه نور اعضاً د بدن چې له نطفې څخه د مور او پلار پیدا کېږي) او نه دی درکړل سوی تاسي ته له علم څخه مگر نه لږ.

**درویش وایي:** چې دا د ژبې نهایت بیان دی په باره کې د روح چې د مطالعه کونکو لپاره ددې تفسیر کافي دی.

**پوه سه:** چې تفسیر کواشي په بیان کې د روح ډېره ښایسته خبره کړې ده، دی وایي اختلفوا في الروح وماهیته ولم یأت احد منهم بدلیل قطعي غیر انه شيءٌ بمفارقته یموت الانسان وبملازمته له یبقی انتهی". دا خبره زما په دې خوښه سوه چې خدای ﷻ چې وویل "وما اوتیتم من علم الا قلیلاً" باید دا علم قلیل د قلیل انسانانو ته پرېږدي لکه محمد رسول اللهﷺ واتباعه بالحق من کانوا عقلی بحثونه تاسي نه پکښې وکړئ لان امر الروح خطیر. علامه بغدادي په روح المعاني کې تقریباً په پنځلسمه صفحه کې بیان پر کار اچولی دی، لکن د ویونکو له زړو څخه یې شکوک نه دي لېرې کړې، او روح البیان هم څه اوږد

بيان تصوفي كړى دى چي له فهمه څخه د مطالعه كونكو د تفسير ايوبي ډېر لېري دى، ولهذا عن بيان هذين التفسيرين موږ اعراض كوو، او تفسير مظهري هم تصوفي مغلق بيان كړى دى. او ډېر نادر روايات يې راوړي دي چي له شان نزول څخه ډېر لېري دي.

**پوښتنه**: ته ايوبي خپل ځان تر دغو مذكوره تفاسيرو تر مصنفانو لوړبولې؟

**جواب**: كلا وحاشا، زه خپل عذر بيانوم په عدم راوړلو كې د اقوالو د دغو امامانو د تفسير، او بعض مفسرين وايي چي مراد له روح څخه قرآن دى، نو معنى ددې قول د خداى ﷻ "هو من امر ربي" داده "هو" اى القرآن من وحي ربي، او بعض وايي چي مراد له روح څخه عيسى عليه السلام دى فانه من روح الله وكلمته، نو معنى د ايت داسې كوي، چي نه دى عيسى عليه السلام لكه يهود چي وايي چي دى ولد الزنى دى، او نه داسې لكه نصارى چي وايي چي دى ابن الله دى، بل هو مخلوق بكلمة كن من غير اب.

**درويش وايي**: چي دا دوه قوله كه څه هم په واقع كې صحيح دي لكن تفسير ددې قول د خداى ﷻ ويسئلونك عن الروح الى اخير الاٰية" پر دغه دول د صحيح شان نزول څخه د آيت متلوه خلاف دى كمامر من قبل، او د قرآن تفسير په رايه او عقل سره كول كه څه هم حق وي ناروا ده كما جا في الحديث الصحيح.

وَلَئِنْ شِئْنَا لَنَذْهَبَنَّ بِالَّذِيٓ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ

كه موږ اراده وكړو، موږ به يوسو هغه قرآن چي تاته يې وحي كړي دي موږ يعني له مصاحفو او له سينو څخه د حافظانو به يې محوه كړو.

**يوه سه**: چي اول لام موطئه د قسم محذوف دى، او دويم لام د جواب دى، او دا لام ثاني قائمقام د قسم او جواب دواړو دى، والمعنى لوشئنا ذهبنا بالقرآن ومحوناه عن المصاحف والصدور فلم نبق منه اثر، مفسرين وايي چي دا كلام وارد پر سبيل الفرض دى والمحال يصح فرضه كما يقولون لو كان زيد حمارا لكان ناهقا، او ذهاب الله بالقرآن خو محال هم نه دى.

ثُمَّ لَا تَجِدُ لَكَ بِهٖ عَلَيْنَا وَكِيْلًا ﴿٨٦﴾

وروسته تر ذهاب ته به نه کړې پیدا خپل ځان لره پر موږ وکیل چي قرآن بیرته تاته راوړي محفوظ او لیکلی.

اِلَّا رَحْمَةً مِّنْ رَّبِّكَ ۭ اِنَّ فَضْلَهٗ كَانَ عَلَيْكَ كَبِيْرًا ﴿٨٧﴾

مگر که رحمت د خدای ﷻ پر تا وسي هغه به يې بيرته تاته رد کړي (نو په دې آيت کي اظهار د خدای ﷻ لوی نعمت دی پر عليه الصلوٰة والسلام او پر مؤمنانو چي لوی نعمت د قرآن يې ځني وانه خستی بلکي الى يوم القيامة يې باقي پرېښو) په تحقيق فضل او احسان د خدای ﷻ پر تا باندي ډېر لوی دی (۱) بعثک نبياً (۲) خاتم الانبياً (۳) سيد المرسلين (۴) انزل عليک القرآن (۵) خدای ﷻ التزام وکړی د جمع د قرآن په مصاحفو کي او په صدور کي (۶) خدای ﷻ تاته وويل "لاتحرک به لسانک ان علينا جمعه وقرآنه" (۷) مقام محمود د شفاعت عظمی يې تاته درکړی (۸) حوض کوثر چي خلگ په قيامت او به ځيني څښي وغير ذالک من النعما الالٰهية، بغوي وايي چي ابن مسعود ﷺ وويل "اقرؤا القرآن قبل ان يرفع (قرآن وواياست مخته تر رفع د هغه) قيل هذه المصاحف ترفع فکيف بما في الصدور (چا ورته وويل چي مصاحف خو صحيح ده چي پورته به سي. نو هغه چي د حافظانو په سينو کي دي هغه به څرنگه پورته کېږي؟) ابن مسعود ﷺ ورته وويل چي يوه شپه به راسي چي ما في الصدور به هم هېر سي. نو خلگ چي سهار کړي هيڅ شی د قرآن به بې نه وي په ياد "ولا يجدون في المصاحف شيئاً ثم يفيضون في الشعر" بيا به خلگ په غزلو ويلو اخته سي، او بخاري ؤ مسلم له عبدالله بن عمر ﷺ څخه روايت کړی دی قال قال رسول الله ﷺ "ان الله لايقبض العلم انتزاعاً من العباد ينتزعه. ولکن يقبض العلم بقبض العلماً حتى اذا لم يبق عالم اتخذ الناس رؤساً جهالاً فسئلوا افافتوا بغير علم فضلوا واضلوا.

**درويش وايي:** چي عکرمه له ابن عباس ﷺ څخه روايت کړی دی چي سلام بن مشکم سره د څو يهودانو و عليه الصلوٰة والسلام ته راغله وه يې ويل

چي مور څرنګه ستا متابعت وکړو چي زموږ د قبلې بيت المقدس استقبال دي پرېښو کعبې ته دي مخ کړی يعني په لمانځه، او دا يې هم ورته وويل چي ستا قرآن منتظم نه دی لکه تورات، که مونږ وغواړو ستا د قرآن موجوده مثل جوړلای سو، نو دا آيت نازل سو.

قُلْ لَّئِنِ اجْتَمَعَتِ الْاِنْسُ وَالْجِنُّ عَلٰٓى اَنْ يَّاْتُوْا بِمِثْلِ هٰذَا الْقُرْاٰنِ

ته ورته ووايه يا محمد (ﷺ) که سره جمع کړي يعني اتفاق وکړي انسانان او پيريانان پر دې باندي چي راتګ وکړي په مثل سره د قرآن په بلاغت او حسن النظم والاخبار بالغيب والقصص والامثال الى غير ذالک من محاسن القرآن العزيز.

لَا يَاْتُوْنَ بِمِثْلِهٖ

قدرت به ونه لري که څه هم په انس او جن العرب العرباً هم وي او بلغاً او شاعران هم موجود وي چي مثل د قرآن دي جوړ کړي.

**تنبيه**: تخصيص د انس او جن چي يې وکړی ددې لپاره چي تحدي او معارضه ددې دوو نوعو د کافرانو سره وه چي کفارو د مکې به ويل لو نشاٴ لقلنا مثل ذالک فکذبهم الله. تخصيص يې له دې جهته نه دی چي ملکي قدرت پر اتيان د مثل د قرآن قدرت لري لانه لايقدر على الاتيان بمثله الا الله. او په دې آيت ظاهره معجزه د قرآن کريم ده. ولې چي هغسې سوه لکه چي خدای پاک اخبار وکړی يعني اتيان په مثل د قرآن څوک نسي کولای. بلکې ګرده قرآن څه کوي د يو اقصر سورت پر راتګ باندي څوک نه سو قادر. کريمه "ان کنتم في ريب مما نزلنا على عبدنا فاتوا بسورة من مثله" چي په تفسير کي د سورت بقره ددې آيت تحقيق وکړل سو. او سره ددې چي کفارو د مکې ډېر حرص درلودی پر معارضه د قرآن کريم.

وَلَوْ كَانَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ ظَهِيْرًا ﴿٨٨﴾

که څه هم وي بعض د انس او جن د بل لپاره په کومک کي اماده باش.

وَلَقَدْ صَرَّفْنَا لِلنَّاسِ فِي هَٰذَا الْقُرْآنِ مِن كُلِّ مَثَلٍ

لام موطئه د قسم محذوف دی ای بالله چي مكرر وارونه مونږ بيان كړي لپاره د نفعي د خلګو په دې قرآن كي له هر قسمه غريب بيان څخه چي لكه مثل وي په غرابت كي يعني په تكرار سره مونږ احكام او وعد او وعيد او قصص او امثال بيان كړي دي په وجوه مختلفه وو سره تاچي خلګ عبرت واخلي او په دې پوه سي چي قرآن من عند الله دی كلام د بشر نه دی يعني رسول الله ﷺ لكه كفارو د مكې چي به ويل چي محمد ؑ دا قرآن له ځانه جوړوي او خلګو ته يې من عند الله معرفي كوي.

فَأَبَىٰ أَكْثَرُ النَّاسِ إِلَّا كُفُورًا ﴿٨٩﴾

نو ابى او منع وكړه ډېرو خلګو د هرشي مګر نه له كفر او انكار او جحود څخه.

**پوښتنه**: ستا ايوبي له ترجمې څخه خو دا فهمېږي چي دا استثنا مفرغ دی يعني مستثنى منه يې محذوف دی. ولي تا داسي وويل له هر شي څخه مګر نه آه، او سره ددې چي نحات وايي چي استثنا مفرغ په مثبت كلام كي نه راځي او كلام يعني "فأبى آه" مثبت دی؟

**ځواب**: مراد د نحاتو چي استثنا مفرغ په مثبت كلام كي نه راځي هغه كلام چي مثبت لفظًا او معنًى وي. دلته خو كلام منفي دی په معنا كي يعني لم يرضى ولم يأتى اكثرهم الا كفورًا وعنادًا فافهم هداك الله.

**فائده**: بغوي له عكرمه رح څخه او هغه له ابن عباس رضي الله عنهما څخه داسي نقل كړی دی چي عتبه او شيبه ابني ربيعه، ابو سفيان، نضر بن حارث، ابو البختري، اسود بن المطلب، زمعة بن الاسود، وليد بن المغيرة، ابوجهل بن هشام، عبدالله بن ابي امية، اميه بن خلف، عاص بن الوائل، منبهًا او منبهًا ابني الحجاج سره غونډ سول او نور كسان د كفارو د قريشو هم ورسره يوځای سول په حرم شريف كي د روسته تر غروب الشمس، نو بعضو كسانو ددوی څخه وويل چي محمد (ﷺ) ته سړی ورواستوئ چي راسي زمونږ سره خبري وكړي حتى چي دی په دعوى كي د نبوت ملامت او ملزم كړو، نو عليه الصلوة والسلام ته چي ددوی استازی ورغلى، ورته

وه يې ويل چې ستا د قوم اشراف او مشران فلان و فلان الخ سره جمع سوي دي چې ستا سره خبري اتري وکړي. نو د عليه الصلوة والسلام په زړه کې دا ور وګرځېدله چې لکه چې د دوی ستا په نبوت کې بنه نيت پيدا سوی دی. نو ډېر په تلوار عليه الصلوة والسلام ور ته راغلی. ولې چې دی مبارک د دغو اشرافو پر ايمان راوړلو ډېر حريص ؤ. نو عليه الصلوة والسلام راغلی او د دوی سره کېښېنستی. نو دوی ور ته وويل چې موږ دې لپاره سړی د ر واستاوه چې موږ خپل عذر تا ته پېش کړو. دوی ور ته وويل انا والله لانعلم رجلاً من العرب ادخل على قومه ما ادخلت على قومك (زموږ قسم په خدای دی چې موږ ته نه دی معلوم يو څوک له عربو څخه چې پر خپل قوم دې دومره بدنامي را استولې وي لکه چې تا پر خپل قوم را واستول) ته زموږ پلرو او نيکه ګانو ته بنکنځل کوې يعني چې دوی کافران وه او ته زموږ د دين يعني عبادت چې دا اصنام دي بد وايې. او ته زموږ عقول بېکاره بولې او زموږ خدايانو ته بنکنځل کوې يعني دا زموږ خدايان جمادات بولې لاتضر ولاتنفع. يعني ته وايې چې تاسې او ستاسې خدايان حصب جهنم ياست. او زموږ په اتفاق کې دې چاک واچاوه. فما بقي امر قبيح الا وقد جئته فيما بيننا وبينك" نو نه دی پاته يو بد کار مګر تا زموږ او ستا تر منځ نه دی پيدا کړی. که ته په خپل دعوه کې چې ته يې کوې چې زه رسول د خدای يم طالب د مال او ثروت يې. نو موږ به تا ته چنده وکړو چې تر ټولو اهل مکه ثروت او صاحب د غنی سړی وګرځې. او که ستا په دې دعوه کې شرف او جاه و جلال غرض وي موږ به تا د اهل مکې سرداري درکړو. او که ستا غرض بادشاهي وي موږ به دې بادشاه وګرځوو پر خپلو ځانو. او که ته پېرانی يې يعني جنيات در ته راځي (چې په پښتو يې باوله يا پېرانی بولي) موږ به مالونه سره جمع کړو تا ته به د "ابی يعني باوله والي يا پېرانانو" دوا درپرابره کړو. عليه الصلوة والسلام ور ته وويل چې په ما کې يو له دغو کارو نسته چې تاسې ذکر کړه او نه هم رياست او بادشاهي پر تاسې "ولكن الله بعثني اليكم رسولاً وانزل علي كتاباً يعني القرآن الكريم و امرني ان اكون لكم بشيراً ونذيراً" ما خپل رسالت وتاسې ته ورورساوه او نصيحت مې در ته

وکړی، که تاسي زما دعوت قبول کړئ یعني ایمان راوړئ هغه ستاسي برخه ده په دنیا او اخرت کي، او که تاسي زما خبره او دعوت و توحید ته د معبود بالحق رد کړئ زه به صبر وکړم و امر ته د خدای ﷻ "حتی یحکم بیننا وبینکم" دوی ورته وویل که ته زموږ دعوت نه مني یعني چي موږ تاته مذکوره پېش نهادونه وکړه "فقد علمت انه لیس احد من الناس اضیق بلاداً ولا اقل مالاً ولا اشد عیشاً منا" نو په حق سره پوهېږې چي نشته هیڅ څوک له خلګو څخه ډېر تنګ از روی بلاد چي مکه مکرمه ده، او نه ډېر لږ مال والا او نه په ډېر عیش یعني د ژوند په ګذاره کي سخت تر موږ "فاسئل لنا ربک الذي بعثک فیسیر عنا هذه الجبال التي قد ضیقت علینا ولیبسط لنا بلادنا" ته ستا له هغه خدای څخه چي ته یې موږ ته را استولی یې خواست وکړه چي زموږ څخه د مکې غرونه ایسته کړي چي پر موږ یې د مکې محکه تنګه کړې ده، او فراخه دي کړي زموږ ښارونه "ولیفجر فیها انهاراً کانهار الشام والعراق" او وه دي بهیوي زموږ په ښارو کي رودونه او ولې لکه نهرونه د شام او د عراق "ولیبعث لنا من قد مضی من آبائنا ولکن منهم قصی بن کلاب فانه کان شیخاً صدوقاً فلنسئلهم عما تقول احق هو ام باطل فان صدوقک صدقناک" او راژوندي دي کړي ستا رب زموږ لپاره یعني زموږ د پوښتني لپاره ستا په باره کي هغه څوک چي وړاندي تېر سوي دي زموږ له نیکه ګانو څخه او یو به په هغو کي قصی بن کلاب وي. ولې چي هغه سپین ږیری ډېر رشتیا ګویه و، موږ به له دې مړو څخه چي ستا رب یې ژوندي کړي پوښتنه وکړو د هغه شي چي ته وایه یعني رسالت ستا او توحید د معبود چي دا ستا خبري حق دي او که باطل، که دې مړو ستا تصدیق وکړی موږ به دي هم تصدیق وکړو "فقال رسول الله ﷺ ما لهذا بعثت فقد بلغتکم ما ارسلت به فان تقبلوا فهو حظکم في الدنیا والآخرة وان تردوه اصبر لامر الله" علیه الصلوة والسلام ورته وویل چي په دې سره یعني چي زما رب زما لپاره مړي راژوندي کړي نه یم را استول سوی ما د هغه شي تبلیغ او رسول و تاسي ته وکړی چي زه په را استول سوی وم من التوحید که یې تاسي قبول کړئ یعني ایمان راوړئ هغه ستاسي برخه ده په دنیا او آخرت کي. او که زما تبلیغ رد کړئ زه صبر

کوم و امر ته د خدای ﷻ "قالوا فان لم تفعل هذا فاسئل ربک ان یبعث لنا ملکا یصدقک" کفارو و علیه الصلوة والسلام ته وویل که هغه د مخه ویناز موږ نه مني نو ستا له خدای څخه سوال وکړه چي را واستوي موږ ته ملکه چي ستا تصدیق وکړي یعني د رسالت او کفارو و علیه الصلوة والسلام ته ویل چي ته ستا خدای ته سوال وکړه چي تاته باغونه درکړي په مکه کي او قصورنه درکړي او خزانې د سرو زرو او د سپینو زرو درکړي چي تا مستغني وګرځوي له هغه څه څخه چي موږ تا وینو چي په بازرو کي ګرځې او طلب د ژوندانه د معاش کوې لکه موږ، علیه الصلوة والسلام ورته وویل چي زه ددې لپاره نه یم را استول سوی چي بلکې زه صرف بشیر او نذیر یم، بیا کفارو ورته وویل "فاسقط السماء علینا" لکه ته چي وایه "ان ربک لو شاء فعل" علیه الصلوة والسلام ورته وویل "لوشاء فعل ذالک فعل بکم" یعني خدای ﷻ خو قادر دی پر نړولو د اسمان پر تاسي لکن ددې تفویض و خدای ﷻ ته دی په ما پوري اړه نه لري، یوه بیا ورته وویل چي موږ پر تا ایمان نه راوړو چي ته نه راولې خدای او ملکي مخامخ، وروسته تر دې خبرو علیه الصلوة والسلام ددوی له مجلسه ولاړ سو او دده سره سم عبد الله بن ابي بن امیه هم ورسره ولاړ سو چي د علیه الصلوة والسلام د عمه زوی ؤ یعني عاتکه بنت عبد المطلب، او ده وویل یا محمد (ﷺ) پر تا عرض کړه قوم ستا هغه څه چي دوی عرض کړه تا قبول نه کړه، بیا یې سوال درڅخه وکړی د خپلو ځانو لپاره څو کارونه چي په هغو کارو سره دوی ستا رتبه معلومه کړي ستا دخدای سره هغه دي هم ونه کړه، بیا یې سوال درڅخه وکړی چي ژر تر ژره دي پر موږ هغه عذاب نازل کړي چي ته موږ په بېروې یعني سقوط د اسمان هغه دي هم ونه کړه "فوالله لا اومن لک" یعني لاجل قولک انا رسول الله" حتی چي ته به اسمان ته زینه ایږدې او ته په زینه کي پورته کېږې زه به در ته ګورم حتی چي ته اسمان ته وختلې له هغې خوا به له ځانه یوه نسخه د قرآن راوړې او څلور ملکي به درسره وي چي هغه به زما په مخ کي شاهدي ادا کوي بما تقول، نو علیه الصلوة والسلام خپل کور ته ځني ولاړی ډېر غمجن ؤ چي دده ولیدی تباعد او لېري والی د قوم له ایمان څخه، فانزل الله تعالی.

وَقَالُوا لَن نُّؤْمِنَ لَكَ حَتَّىٰ تَفْجُرَ لَنَا مِنَ الْأَرْضِ يَنبُوعًا ﴿٩٠﴾

"وقالوا لن نؤمن لک" الی قوله بشراً رسولاً یعني کفارو د مکې ورېل تعنتاً واقتراحًا بعد ما لزمتهم اعجاز القرآن چي اتیان په مثل د اقصر سورت یې نسوای کولای وغیره من المعجزات. یعني موږ ایمان نه راوړو پر تا یعني لاجل قولک تر هغو چي ته نه کړې جاري زموږ د فائدې لپاره له مځکې څخه د مکې یوه جاري چینه.

**درویش وايي**: چي مخاطب په قول کي ددوی خو علیه الصلوة والسلام دی، مراد ددوی دادی چي ته به ستا ورب ته وایه چي یوه چینه دي جاري کړي په مکه کي چي مکه جاري اوبه نه لري تاچي موږ له هغې چینې فائده تر لاسه کړو.

أَوْ تَكُونَ لَكَ جَنَّةٌ مِّن نَّخِيلٍ وَعِنَبٍ

یا به وي تا لره یا محمد (ﷺ) باغ چي ستا فضیلت پر موږ ښکاره سي چي په هغه باغ کي د خورما درختې او د انګورو درختې وي.

**درویش وايي**: چي دوی تخصیص د دغو دوو درختو وکړی، ولي چي خورما او انګور سره د غذائیته اعز د فواکهو دي کما لا یخفی.

فَتُفَجِّرَ الْأَنْهَارَ خِلَالَهَا تَفْجِيرًا ﴿٩١﴾

او ته به بهیوې په منځ کي ددغو باغو ولې، دا سوال یې ځکه وکړی ولي چي زینت او ښائست د باغ دادی چي په منځ کي یې ویاله بهېږي کما هو المعلوم بالتجربة "تفجرا" مفعول مطلق دی.

**تنبیه**: کفارو د مکې چي په تولو غوښتونو کي علیه الصلوة والسلام مخاطب کړی چي ته داسي وکړه ددوی مطلب دا ؤ چي ته خو وایه چي زه د خدای رسول یم، نو که دا رشتیا وي ته له خدای څخه دا کارونه چي موږ درته وایو وغواړه او سوال ځني وکړه چي دا کارونه وکړي. نو که یې وکړه نو ته رشتیا د خدای رسول یې.

أَوْ تُسْقِطَ السَّمَآءَ كَمَا زَعَمْتَ عَلَيْنَا كِسَفًا

او یا ونړوه اسمان لکه ته چي ګمان کوې،

تعبیر یې په زعم سره وکړه له دې سببه چي ددوی دغه وینا باطله ده او زعم په غالب استعمال کي وه باطلي عقیدې یا قول باطل ته وایي.

**یوه سه:** چي درویش لفظ د غالب ووایه له دې سببه چي په حدیث صحیح کي راغلي دي زعم رسول الله ﷺ د هغه معنی قول باطل نه ده بلکې معنی یې قال رسول الله ﷺ ده "کسفًا" پر وزن د قطعًا دی لفظًا ومعنًی یعني ټوټې ټوټې کما زعمت معنی داده چي ته خو وایه چي زه د خدای رسول یم، نو ته ستا له خدای څخه وغواړه چي اسمان دي راونړوي پر موږ ټوټې ټوټې،

أَوْ تَأْتِيَ بِاللَّهِ وَالْمَلَآئِكَةِ قَبِيلًا ﴿٩٢﴾

او یا ته راتګ وکړې په خدای یا ملکو سره قبیلاً. فقیر وایي چي د قبیل ترجمه ابن عباس رضی الله عنهما او ضحاک رح په کفیل سره کړې ده، یعني ضامن او شاهد پر صحت د دعوې ستا چي زه د خدای رسول یم، او قتاده رح وایي چي معنی د قبیل مقابلاً یعني مخامخ چي موږ یې وینو، او فرا نحوي رح یې هم دغه ترجمه کړې او دا محاوره یې رانقل کړې ده چي عرب وایي لقیت فلانًا قبیلاً ای معاینةً. او مجاهد رح وایي چي قبیل جمع د قبیلة ده، والمعنی اصناف الملائکة قبیلة قبیلة.

أَوْ يَكُونَ لَكَ بَيْتٌ مِّن زُخْرُفٍ أَوْ تَرْقَىٰ فِي السَّمَآءِ

او یا به وي تا لره خونه د سرو زرو، که څه هم زخرف په اصل کي زینت ته وایي او یا به ته په زینو کي اسمان ته پورته کېږې (نو کلمه د في په معنی د الی ده) دا د عبدالله بن ابی امیه خبره ده کما مر.

وَلَن نُّؤْمِنَ لِرُقِيِّكَ حَتَّىٰ تُنَزِّلَ عَلَيْنَا كِتَابًا نَّقْرَؤُهُ

او هر ګز موږ ایمان نه راوړو او ستا تصدیق نه کوو یوازې په ختلو ستا و اسمان ته (ولي چي شاید په دې ختلو کي و اسمان ته به تا سحر کړی وي او زموږ چشم پوشي به دي کړې وي، بلکې علاوه تر دې به دي هم کړي وي) تر

هغو چي ته د اسمان له خوا یو کتاب نازل نه کړې چي په هغه کتاب کي ستا
تصدیق د رسالت وي او پر موږ امر ستا د متابعت وي.

قُلْ سُبْحَانَ رَبِّي هَلْ كُنتُ إِلَّا بَشَرًا رَّسُولًا ﴿٩٣﴾

ووایه ته یا محمد (ﷺ) د تعجب په لهجه ددوی د دغو اقتراحاتو یعني ناحقه مطالبو ، پاکي ده خدای ﷻ لره د هغو بعضو مطالبو څخه چي ددوی په مطالبو کي راغلي یعني قولهم او تأتي بالله والملائكة آه، "هل" استفهام انکاري دی. نه یم زه مګر بشر او رسول، یعني دا ستاسي مطالبات له طاقت بشري څخه وتلي دي، بل لو اراد الله ان ينزل ماطلبوا لفعل لكن غالبًا عادت د خدای ﷻ دادی چي نه نازلوي ما يقترحه البشر.

**فائده:** دا ټولي غوښتني ددوی صرف او صرف ناحقه مطالبات وې. ولي که دوی تصدیق د دعوې د رسول الله ﷺ مطلب وای، نو خدای ﷻ و عليه الصلوة والسلام ته ډېري لوړي معجزاتي ورکړي وې چي له دې مطالباتو څخه یې دوی مستغني ګرځولي وه مثل القرآن المعجز، وانشقاق القمر باشارته ونبع الماء من بين اصابعه وكلمة التوحيد للحصات في يد ابي جهل او نوري هم ډېري معجزاتي.

**تنبيه:** دا خو مجمل جواب ؤ یعني "هل كنت الا بشرا رسولا" او مفصل ځوابونه خدای ﷻ په نورو آیتو کي د قرآن کریم ورکړي دي.

وَمَا مَنَعَ النَّاسَ أَن يُؤْمِنُوا إِذْ جَاءَهُمُ الْهُدَىٰ

او نه دي منع کړي خلګ له دې څخه چي ایمان راوړي وروسته تر دې چي دوی ته نبي او قرآن راغلی.

**پوه سه:** چي اراده د نبي او د قرآن له "هدی" څخه چي مصدر دی مبالغة ده "ان يؤمنوا" محلاً منصوب دی. مفعول ثاني دی د منع.

إِلَّا أَن قَالُوا أَبَعَثَ اللَّهُ بَشَرًا رَّسُولًا ﴿٩٤﴾

مګر دي خبري چي دوی وایي انکاراً آیا استوي خدای ﷻ بشر رسول خپل؟

**پوه سه:** چي "الا ان قالوا" محلاً مرفوع دی فاعل د منع دی حاصل الكلام چي له

ایمان ځخه هیڅ شی له شیانو ځخه مګر دې خبري ابعث الله آه یعني دوی له دې ځخه منکر دي چي بشر دې رسول د خدای وي. ولي چي ملکې د پري دي ولي هغه په رسالت نه استوي. لکن دا مانع ده د دوی د نقل او عقل ځخه خلاف ده. ولي چي د رسول او د مرسل الیهم تر منځ مناسبت شرط دی تا چي یو افاده وکړي او بل استفاده ځني وکړي یعني مرسل الیهم للمناسبة کما بین الله هذا المعنی بهذه الآیة.

قُلْ لَّوْ كَانَ فِي الْأَرْضِ مَلٰٓئِكَةٌ يَّمْشُوْنَ مُطْمَئِنِّيْنَ

ووایه یا محمد (ﷺ) په ځواب کي د دغې شبهې د دوی که وای په ځمکه کي ملکي چي تګ او راتګ یې کولای لکه بني آدم چي یې کوي "مطمئنین" یعني په ځمکه کي یې سکونت کولای او اسمان ته نه تلای تاچي په اسمان کي یې زده کړي وای او له احکام الهیه ځخه من الواجب والحرام وغیر ذالک په اسمان کي خبري سوي وای.

لَنَزَّلْنَا عَلَيْهِمْ مِّنَ السَّمَآءِ مَلَكًا رَّسُوْلًا ﴿٩٥﴾

موږ به نازله کړې وای له اسمان ځخه پر دوی ملکه چي رسول به دوی ته وای یعني احکام د خدای ﷻ به یې و دوی ته بیانولای لکه وظیفه د رسول چي همدغه ده. والحاصل چي موږ نه استوو قوم ته رسول الا من جنسهم تا چي دوی په یوه جامعه کي ژوند سره وکړي. او یو د بله افاده او استفاده سره وکړي.

قُلْ كَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا بَيْنِيْ وَبَيْنَكُمْ

ته ورته ووایه یا محمد (ﷺ) و دوی ته چي کافي دی خدای ﷻ (کلمه د بآ زائده ده پر فاعل باندي هر چېري چي دغسي عبارت په قرآن کي راسي) شاهد زما په نبوت سره زما او ستاسي تر منځ.

**پوښتنه**: شاهدي د خدای ﷻ څه شی ده پر نبوت د علیه الصلوة والسلام؟

**ځواب**: اظهار د معجزاتو دی موافق له عوې سره دده.

**فائده**: فقیر داسي وویل موافق د دعوې سره. له دې سببه چي مسیلمه کذاب چي دعوه د نبوت یې په حیوة کي د علیه الصلوة والسلام کړې وه او

بعض سحري شيان يي و خلکو ته ښکاره کول. يوه ورځ يو سړي ورته راغلى چي په يوه سترګه ړوند ؤ. مسيلمه ته يې وويل چي خواست وکړه ستا خداى ته چي زما ړنده سترګه جوړه سي. که جوړه سوه زه پر تا ايمان راوړم. مسيلمه چي خواست وکړى. نو د هغه سړي جوړه سترګه هم ړنده سوه. تاريخ اسلامي ؤايي چي وروسته تر وفات د عليه الصلوة والسلام دغه ساحر كذاب وحشي نامي چي قاتل د سيد الشهدا حمزة ﷺ هم دى ؤ په غزوه كي د احد او په فتح كي د مكي يې ايمان راوړى ؤ. نو دغه مسيلمه ده وواژه.

إِنَّهُۥ كَانَ بِعِبَادِهِۦ خَبِيرًۢا بَصِيرًا ﴿٩٦﴾

په تحقيق خداى ﷻ په خپلو بندګانو سره كه رسولان دي او كه منكران دي ښه خبر دى په ټولو اعمالو سره ددوى او دانا دى په ظاهر او په باطن ددوى يعني هر چاته به موافق العمل جزاً وركوي.

**پوه سه:** چي په دې تسلي ده و عليه الصلوة والسلام ته او تهديد دى كافرانو ته.

وَمَن يَهْدِ ٱللَّهُ فَهُوَ ٱلْمُهْتَدِ

**پوه سه:** چي دا كلام مبتدأ دى يعني تر "قل" نه دى لاندي كلمه د "من" مبتدأ ده متضمن معنى لره د شرط ده. او "فهو المهتد" يې خبر دى او عائد ضمير و "من" ته محذوف دى. والتقدير ومن يهده الله. والترجمة للآية چاته چي هدايت وكړي خداى ﷻ اى يخلق فيه الاهتدا الى الحق په سبب د صرف همت دده ولاري ته د هدايت. نو هغه راه يا بنده دى يعني لاغيره كما هو مقتضى التعريف جزئي الجملة چي هو او المهتد دى.

وَمَن يُضْلِلْ فَلَن تَجِدَ لَهُمْ أَوْلِيَآءَ مِن دُونِهِۦ

چي خداى ﷻ په ده كي ضلال پيدا كړي (يعني بسوء اختياره لكسب طرق الضلال) هر ګز به ته نه كړې پيدا دوى لره دوستان او مدد كونكي چي له ضلال څخه يې خلاص كړي، ماسوى له خداى ﷻ څخه.

**پوه سه:** په جانب کي د اهتدا يې لفظ د هدايت مفرد راوړی یعني فهو المهتد. او په جانب کي د ضلال يې لفظ د جمع راوړی یعني "لهم" حکمت يې څه دی.

**ځواب:** په دې کي اشاره ده ودې ته چي لار د حق یوه ده او تلونکي پر حق لار لږ دي او لاري د ضلال ډېري دي.

**فائده:** افراد په "فهو المهتد" کي په اعتبار د لفظ د "من" دی او جمعیت د "لهم" په اعتبار د معنی د "من" دی. په حدیث صحیح کي راغلي دي علیه الصلوة والسلام وايي "انما انا رسول وليس الي من الهداية (اى الاهتدا) شئ ولو كانت الهداية الى لآمن كل من في الارض وانما ابليس مزين يعني للكفر والمعاصي بوسوسته وليس له من الضلالة شئ ولو كانت الضلالة اليه لاضل كل من في الارض ولكن الله يضل من يشا ويهدي من يشا)

**درويش وايي:** چي په دې حديث کي دليل د جبريه وو نسته كما اشرنا اليه في ترجمة الآية فافهم وتدبر بالعقل السليم والله الهادي الى الصراط المستقيم.

## وَنَحۡشُرُهُمۡ يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِ عَلَىٰ وُجُوهِهِمۡ

مونږ به ژوندي کړو دوی یعني الکفار چي دوی په کشول کېږي پر مخانو. په بخاري او مسلم کي له انس ﷺ څخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ څخه چا پوښتنه وکړه "كيف يحشر الكافر على وجهه؟ قال عليه السلام اليس الذي امشاه على رجليه قادر على ان يمشيه على وجهه" آیا نه دی هغه څوک چي دی يې پر پښو روان کړی دی یعني الله تعالی قادر پر دې دی چي کافر دي روان کړي پر مخ.

## عُمۡيٗا وَبُكۡمٗا وَصُمّٗاۖ

"عميًا" جمع د "اعمىٰ" یعني ړانده ده (په سترګو خو به ویني لکن د خوابدتیا څخه به شی نه په ويني بلکي دوږه به په ويني "وبكمًا" جمع د ابكم ده یعني ګونګیان (په حقیقت کي خو ګونګیان نه وي لکن داسي عذر نسي ویلای چي له دوی څخه دي قبول سي) "وصمًا" جمع د اصم ده یعني کاڼه که څه هم في الواقع کاڼه نه وي لکن داسي شی نسي اورېدلای چي دوی دي په خوشاله سي.

**درویش وایي:** چي بغوي رح ویلي دي چي داجزاء ده د هغو علمو چي دوی به د آیاتو ته د قدرت د خدای ﷻ په سترګو د عبرت نه کتل او د حق له اوریدلو څخه به یې غوږونه کاڼه اچولي وه، او له دې څخه به یې انکار کاوه چي کلمه د توحید په ژبه ووایي، نو هغه سوال دفع سو چي په قرآن مجید کي راغلي دي "ورأ المجرمون النار" نو خو د سترګو لیدل ورته ثابت سوه. وقال الله تعالی "دعوا هنالک ثبورا" نو د ژبې خبري ورته ثابتي سوې. وقال الله تعالی "سمعوا تغیضا وزفیرا" نو د غوږو اوریدل ورته ثابت سوه فافهم. او بعضو مفسرینو ددې نفي او اثبات جواب داسي ورکړی دی چي په اول حشر کي خو به دوی ړانده، ګونګیان او کاڼه وي یعني لکه ظاهره د آیت چي دی وروسته چي دوی حساب او ورته پیشېږي نو به هم په سترګو ویني او هم به خبري کولای سي او هم به خبري اوري.

مَأْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ كُلَّمَا خَبَتْ زِدْنٰهُمْ سَعِيْرًا ﴿٩٧﴾

ځای ددوی د ورتګ به دوږخ وي هر وخت چي لمبې د اور مړاوي سي یعني پوستونه او غوښي یې تمامي سي زیاتوو موږ دوی ته د اور پېلوزي یعني پوستونه او غوښي به از سر نو ورکړو، ولي چي دوی په دنیا کي اعادة بعد الافنا نه منل. نو دوی به همېشه په دوږخ په افنا او اعاده کي وي کما اشیر الیه هذا المعنی في هذه.

ذٰلِكَ جَزَآؤُهُمْ بِاَنَّهُمْ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِنَا وَقَالُوْٓا ءَاِذَا كُنَّا عِظَامًا وَّرُفَاتًا ءَاِنَّا لَمَبْعُوْثُوْنَ خَلْقًا جَدِيْدًا ﴿٩٨﴾

دغه تبدیل د پوستو او د غوښو یعني په نیوي کولو سره کمامر في الآیة السابقة جزا ددوی ده په سبب ددې چي دوی انکار کاوه په آیاتو سره زموږ یعني په قرآن کریم کي او دوی به ویل آیا چي موږ وګرځو هډوکي او بوسیده آیا موږ به بیرته بعث کېږو نوی مخلوق لکه په دنیا کي.

اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ قَادِرٌ عَلٰٓى اَنْ يَّخْلُقَ مِثْلَهُمْ

**پوه سه:** چي همزه لپاره داستفهام او انکار دی. او "ولم یروا" عطف دی پر محذوف پر ماقبل همزه نه دی عطف، ولي چي صدارت د همزة الاستفهام له

منځه ځي، والتقدير أ أنكروا البعث ولم يعلموا.

**ترجمة الآية:** او دوی نه ګوري او علم نه لري چي خدای ﷻ هغه ذات دی چي پیدا کړي یې دي اسمانونه او ځمکه سره د لوی والي ییله سابق مثاله هغه قادر دی پر دې چي پیدا کړي مثل ددوی یعني په قیامت کي مع صغرهم وسبق مثالهم في الدنیا او نه ده اعاده ګرانه تر ابتدأ خلق.

وَجَعَلَ لَهُمْ أَجَلًا لَّا رَيْبَ فِيهِ فَأَبَى الظَّٰلِمُونَ إِلَّا كُفُورًا ﴿٩٩﴾

او ګرځولی دی خدای ﷻ دوی لره (عطف دی پر خبر د "ان" یعني الم یعلموا ان جعل لهم) "اجلا" یو وخت لپاره د عذاب ددوی چي د اجل په راتلو کي شک نشته (یعني یا موت ددوی لان من مات فقد قامت قیامته چي دې ته قیامت صغری وایي او یا ورځ د لوی قیامت) نو انکار کوي لوی ظالمان یعني کافران مګر له کفور څخه یعني الجحود والانکار مع وضوح الدلائل الدالة على حقیقة البعث بعد الموت كمامرت في هذه الآيات.

قُل لَّوْ أَنتُمْ تَمْلِكُونَ خَزَآئِنَ رَحْمَةِ رَبِّيٓ إِذًا لَّأَمْسَكْتُمْ خَشْيَةَ ٱلْإِنفَاقِ

ته ورته ووایه یا محمد (ﷺ) دوی ته که چیرې تاسي اې خلګو مالکان وګرځئ د خزانو د رزق او د نعمتو زما د رب، نو د غه وخت چي تاسي مالکان سئ تاسي به بخل کوئ له سببه د بیرې د فقر د انفاق په صورت کي، یعني داسي خیال به مو وي که زه پر فقراؤ او مساکینو مال ووېشم هغه به خلاص سي زه به مسکین پاته سم.

وَكَانَ ٱلْإِنسَٰنُ قَتُورًا ﴿١٠٠﴾

او دی انسان بالطبع بخیل. ولي طبع د انسان پر دې ده چي نفقه ته ضرورت لري، نو ځکه دی بخل کوي په مایحتاج هو الیه، په حدیث صحیح کي راغلي دي چي که د انسان دوې ویالې د زرو وي لاتبغی ثالثا دریمه به هم غواړي. وهذا لشدة حرص الانسان على الذهب والفضة وغيرهما. په حدیث مبارک کي راغلي دي چي علیه الصلوة والسلام له یوې قبیلي څخه د انصارو پوښتنه وکړه چي ستاسي مشر څوک دی؟ هغو ورته وویل چي زموږ مشر جد بن

القیس دی سره د بخل دده یعني بخیل دی، علیه الصلوة والسلام ورته وویل "ای دا ادوی من البخل" کوم مرض دی بالا تر بخل. بل سید کم عمر بن الجموع.

**پوه سه:** چي بخل او حرص له صفات مذمومه وو څخه دي، نو باید چي سړی او مؤمن ځان پاک څندي وساتي او ددې دوو صفتو په ځای کي سخا او قناعت پیدا کړي. حسان بن ثابت ﷺ په مدح کي د رسول الله ﷺ وایي:

له راحة لو ان معشار جودها ...... علی البر کان البر اندي من البحر

**پوه سه:** چي "راحه" ورغوي ته وایي او معشار لسمي حصې ته د شي وایي وترجمة الباقي ظاهرة. تاریخ اسلامي وایي چي زین العابدین علي بن الحسن بن علي بن ابی طالب ته یو سړی په مخه ورغلی ښکنځل یې ورته وکړه، نو دده سره مریان ورسره وه هغه ور وغورځېدل چي هغه سړی ضرب او کوب کړي، زین العابدین ﷺ مریان منع کړه، او وه یې ویل چي دا سړی دلته راولئ. هغه سړی ورته راغلی ده ورته وویل "ما ستر من امرنا اکثر" یعني چي زما پټ عیبونه ډیر دي تر دې چي تا بیان کړه "هل لک من حاجة نعتیک علیها" هغه سړی ډیر وشرمېدی، نو د زین العابدین ﷺ پر اوږو یو تور پټو ؤ چي ښه ښه ګلان پر وه هغه یې پر هغه سړي واچاوه او زر درهمه یې هم ورکړه. فکان الرجل بعد ذالک یقول اشهد انک من اولاد الرسول ﷺ. شیخ سعدي رح وایي:

اګر ګنج قارون بچنګ آوری ......... نماند بجز آنکه بخشی بری

بخیل توانګر بدینار وسیم ......... طلسمت بالای ګنجی مقیم

## وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسٰى تِسْعَ اٰيٰتٍ بَيِّنٰتٍ

ای والله په تحقیق موږ ورکړي وې موسی (علیه السلام) ته یعني په مقابله کي د قبط قوم فرعون نهه معجزې واضح، یعني دده پر نبوت یې ښکاره دلالت کاوه.

**پوه سه:** چي ابن عباس ﷺ او ضحاک رح وایي چي هغه نهه معجزې دغه وې (۱) عصا چي مار کېدل به (۲) ید بیضا چي لاس به یې له ستوني دننه کړی چي را وبه یې ایستی لکه برق بریښېدی به من غیر سوء (۳) هغه لکنت یعني بندیز چي دده په ژبه کي ؤ چي قصه یې اوږده ده هغه رفع سو (۴) د دریاب لاري

یعني فرعون سره د قبطیانو پکښې غرق سو وقصته مشهورة (۵) طوفان
یعني د ېر باران وسو چي اوبه د قبطیانو په کورو ننوتلې د ناست سړي تر غاړي
پوري به وې او د بني اسرائیلو په کورو نه ننوتلې (٦) جراد یعني مچخ یې پر
کښتو او درختو مسلط سوه چي تول یې وخوړل (۷) القمل: یعني په غنمو کي
یې شپږی پیدا سوې. او بعض وایي چي په کالو کي به یې شپږی پیدا کېدلې
چي خوب به یې نسوای کولای (۸) الضفادع: یعني په اوبو او په خوړو
کي به یې چنگوښي پیدا کېدلې، یعني د اوبو په لوښي کي چي سر به یې هم پټ
ولکن د لوښي له سره چي به یې سرپوښ لیرې کړی د اوبو له مخه به چنگوښه په
خوله ور ننوتل وهکذا في المطعومات (۹) هر شی که اوبه وې د څښلو او یا د
کالو پرېولو سرې وینې به گرځېدلې.

**درویش وايي**: چي وهذا هو المشهور في تفسير الآيات وفي تعداد تلک
الآيات، او له صفوان بن عسال ﷺ څخه روایت دی چي یوه یهودي و بل ته
وویل چي راځه چي دغه نبي ته ورسو. هغه بل ورته وویل چي د نبي په نامه مه
ورته وایه "لانه لو سمعک لکان له اربع اعین" یعني له خوشالیه به یې دوې
سترگي څلور سي، یعني چي ماته یهودان نبي وایي.

**پوه سه**: چي دا خبره یو ضرب المثل دی په پښتو کي هم ویل کېږي، خیر دا
دوه یهودان و علیه الصلوة والسلام ته ورغله او پوښتنه یې څنډي وکړه چي نهه
آیات بینات د موسی علیه السلام کوم شیان وه؟ علیه الصلوة والسلام ورته وویل
(۱) لاتشرکوا بالله شیئاً (۲) لاتسرقوا (۳) لاتزنوا (۴) لا تقتلوا النفس التي
حرم الله الا بالحق (۵) لا تمشوا ببريئ الی ذی سلطان لیصبله (٦) لاتسحروا
(۷) لا تاکلوا الربوی (۸) لاتقذفوا محصنةً (۹) لاتتولوا لفرار یوم الزحف
وعلیکم خاصة الیهود ان لا تعتدوا في السبت، نو دوی دوو د علیه الصلوة
والسلام لاسونه او پښې ورمچ کړې او دوی ته یې وویل چي موږ شاهدان یو چي
ته نبي یې، علیه الصلوة والسلام ورته وویل نو لي زما متابعت نه کوئ دوی
ورته وویل چي داود علیه السلام دا خواست و خدای ﷻ ته کړی دی چي همېشه دي زما
په اولاد کي نبي وي.

**درویش وایي:** چي دا یې درواغ ورته وویل، او دا یې ورته وویل چي موږ بېرېږو که موږ ستا متابعت وکړو یهودان به موږ مړه کړي، رواه ابوداود، نسائي، ابن ماجه، ترمذي وحاکم، او ترمذي دا حدیث حسن صحیح ګڼلی دی، او حاکم ویلي دي چي موږ په دې حدیث کي کوم علت نه وینو، مظهري رح وايي چي پر دې تقدیر له آیاتو څخه احکام عامه د ټولو ملتو مراد دي یعني چي په ټولو شرائعو کي ثابت دي.

**پوښتنه:** دې احکام عامه ته یې آیات چي معنا یې علامات دي ولي وویل؟

**ځواب:** له دې سببه چي د احکامو پر ځای کول علامه د سعادت ده، او پرېښول یې علامه د شقاوت ده.

**پوه سه:** چي دا قول د علیه الصلوة والسلام خاصةً آه زائد پر ځواب دی ولذالک غیر فیه سوق الکلام عما قبله فافهم.

فَسْـَٔلْ بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ إِذْ جَآءَهُمْ

"فسئل" په تقدیر د قول یعني فقلنا لموسی، وغواړه بني اسرائیل له فرعون څخه چي ستا سره یې واستوې ددوی آبایي ټاټوبي ته یعني الشام وبیت المقدس، بعض مفسرین وایي ای سل یا موسی بني اسرائیل عن دینهم اذ جائهم" ظرف متعلق دی په قلنا مقدر سره، او حسین کاشفي رح په تفسیر حسیني کي داسي ترجمه کړې ده "پس بپرس ای محمد (ﷺ) ز بني اسرائیل یعني از علما ایشان همین آیات را تا صدق قول تو بر مشرکان مکه ظاهر گردد انتهی، زیرا که مشرکان برای امتحان آنحضرت ﷺ باو گفته بودند چون آمد موسی بر ایشان که میان وی وفرعون چه گذشت.

فَقَالَ لَهُۥ فِرْعَوْنُ إِنِّي لَأَظُنُّكَ يَٰمُوسَىٰ مَسْحُورًا ﴿١٠١﴾

وویل موسی (علیه السلام) ته فرعون یعني چي موسی علیه السلام و فرعون ته دعوت د ایمان ورکړی، په تحقیق زه ګمان کوم پر تا ای موسی چي په تا سحر کړل سوی دی، نو دماغ یې درخراب کړی دی یعني ته دعوی د امر محال کوې چي رسول د

خدای یم، او کلبي رحمه الله هم دا ترجمه مذکوره کړي ده، او بعض وایي چې مصروف عن الحق د مسحور معنی ده، او فرا او ابو عبید رحمه الله وایي چې مسحور که څه هم د مفعول صیغه ده لکن دلته په معنی د فاعل ده یعني ساحراً. او محمد بن جریر رحمه الله وایي درشوول سوی علم سحر یعني چا تاته علم سحر درزده کړی دی، او دا عجائب یعني عصا او ید بیضا ستا د سحر علامې دي.

## قَالَ لَقَدْ عَلِمْتَ

وویل موسی په جواب کې د فرعون.

**پوهه:** چې کسائي رحمه الله "علمت" په پېښ د تا وایي یعني المتکلم الواحد چې موسی د خپل ځان له خوا حکایات ورته کوي یعني "علمت انا" او ددې قرائت له علي رضي الله عنه څخه هم راغلی دی، دی وایي لم یعلم الخبیث یعني فرعون ان موسی علی الحق ولو علم لآمن لکن موسی علیه السلام قد علم ذالک.

**درویش وایي:** چې په ټولو مطبوعه مصاحفو کې په فتح د تا راغلی دی یعني په صیغه د خطاب و فرعون ته یعني ته خبر یې.

**سوال:** که فرعون په دې پوهېدای چې موسی علیه السلام پر حق دی، نو بیا یې ایمان راوړی وای، لکه اهل د قرائت اولی چې وویل؟

**ځواب:** عبدالله بن عباس رضي الله عنهما وایي چې فرعون په دې پوهېدی چې موسی علی الحق دی لکن عناداً او تکبراً یې ایمان نه راوړی.

## مَآ أَنزَلَ هَٰٓؤُلَآءِ إِلَّا رَبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ بَصَآئِرَ

یعني دغه آیات نه دي نازل کړي مګر رب د اسمانو او ځمکې نازل کړي دي "بصائر" جمع د بصیرت ده یعني ستا د پوهنې لپاره چې زما صدق و تا ته وښیي لکن ته صرف عناد او تکبر کوې.

**پوهه:** چې بصائر منصوب دی علی الحالیة من هولاء.

## وَإِنِّي لَأَظُنُّكَ يَٰفِرْعَوْنُ مَثْبُورًا ۝

او زه پر تا ګمان کوم اې فرعون، ابن عباس رضي الله عنهما د "مثبور" ترجمه په ملعون

سره کړې ده، او مجاهد رح په هالک سره، او قتاده رح په مهلک سره علی صیغة اسم الفاعل چې خلګ دوی هلاک ته واچول په دعوه د "انا ربکم الاعلی" او فراء وايي چې مصروفًا ممنوعًا عن الخير مطبوعًا على الشر.

**فَأَرَادَ أَن يَسْتَفِزَّهُم مِّنَ الْأَرْضِ فَأَغْرَقْنَاهُ وَمَن مَّعَهُ جَمِيعًا ﴿١٠٣﴾**

نو فرعون اراده وکړه چې موسی (علیه السلام) او بني اسرائيل سپک استعمال کړي او د مصر له مځکې څخه يې وشړي (يا له تولې مځکې څخه يعني په دليليزه توګه تولو له بني اسرائيل سره د موسی علیه السلام قتل کړي) نو موږ غرق کړی فرعون او هغه چې دده تابعان يعني قوم د قبط يعني پر عکس د هغه چې فرعون اراده کړې وه موسی علیه السلام او بني اسرائيلو ته.

**وَقُلْنَا مِن بَعْدِهِ لِبَنِي إِسْرَائِيلَ اسْكُنُوا الْأَرْضَ**

او موږ وويل وروسته تر غرق د فرعون وقومه و بني اسرائيلو ته چې تاسي سکونت وکړئ په مځکه کې د مصر يعني چې فرعون ستاسو د شړلو اراده کړې وه.

**فَإِذَا جَاءَ وَعْدُ الْآخِرَةِ جِئْنَا بِكُمْ لَفِيفًا ﴿١٠٤﴾**

نو چې راسي اراده د آخرت (يعني حيوة الآخرة يا دار الآخرة والمآل واحد، صرف د تانيث د آخرة لپاره ترجمه موږ وکړه) موږ به راولو يعني ژوندي به کړو تول له.

**پوه سه:** چې "لفيف" هغه جماعاتو ته وايي چې له مختلفو قبيلو څخه وي. والمعنی تاسي او فرعونيان ګډوډ ياست وروسته به سره جلا کړل سئ سعدا الى الجنة والاشقيا الى النار، کريمه "فريق في الجنة وفريق في السعير" کريمه "وامتازوا اليوم ايها المجرمون".

**وَبِالْحَقِّ أَنزَلْنَاهُ وَبِالْحَقِّ نَزَلَ ۗ**

او په حق موږ نازل کړی دی قرآن.

**پوه سه:** چې تقديم د جار او مجرور لپاره د حصر دی ای ما انزلنا القرآن الا

متلبسا بالحق ای بالحکمة المقتضیة لانزاله. او نه دی نازل سوی مگر متلبس په حق او صدق سره چې د قرآن عقائد او احکام او امر او منهیات دي.

وَمَآ أَرۡسَلۡنَٰكَ إِلَّا مُبَشِّرٗا وَنَذِيرٗا ﴿١٠٥﴾

او مونږ نه یې را استولی ته یا محمد (ﷺ) مگر زیری کونکی و اهل طاعت ته په جنت سره او بیرونکی د اهل عصیان په دوزخ سره یعني ستا وظیفه رسالت صرف تبشیراً او انذاراً ده، دا نه ده چې ته خامخا کفار مسلمانان کوې.

وَقُرۡءَانٗا فَرَقۡنَٰهُ

**پوه سه:** چې "قرآنا" منصوب دی علی شریطة التفسیر په وروسته فعل سره "فرقناه" یعني نازل کړی دی مونږ قرآن متفرق سورةً سورةً آیةً آیةً علی حسب الضرورة (لا جملةً واحدةً کالتورات والانجیل) چې په شل کاله زمانه کي ختم سو.

**سوال:** د علیه الصلوة والسلام د نبوت زمانه خو درویشت (۲۳) کاله وه، نو تا ولي شل کاله وویل؟

**ځواب:** دري کاله د فتور د وحي ما ځني ویستل فافهم.

لِتَقۡرَأَهُۥ عَلَى ٱلنَّاسِ عَلَىٰ مُكۡثٖ وَنَزَّلۡنَٰهُ تَنزِيلٗا ﴿١٠٦﴾

چې ته قرائت د قرآن وکړې پر خلګو په مهلت او کرار کرار سره، ولې چې داسي دول نزول په قرائت کي اساني د حفظ القرآن پر مسلمانانو او کومک دی پر فهم د معاني ږد قرآن، او مونږ نازل کړی دی قرآن یعني نجماً نجماً حسب الحوادث کما یدل باب التفعیل.

**پوښتنه:** څه حکمت ؤ د خدای ﷻ چې تورات او انجیل یې جملةً واحدةً نازل کړي وه، او قرآن مجید یې په شل یا درویشت کاله کي نازل کړی چې سبب د طعن د قریشو هم دغه انزال نجماً نجماً ؤ؟

**ځواب:** رسول الله ﷺ نبي امي ؤ چې نه یې خط زده ؤ او نه یې په یوه مدرسه کي تعلم کړی ؤ، او عرب چې دده قوم ؤ امت امیه وه، کما یدل علیه قوله ﷺ "نحن امة امیة لانحسب ولانکتب الی اخیر الحدیث" نو ده او دده امت لره نزول

بالتدریج لو یه فائده وه بخلاف سائر الانبیاء والامم فارجع الی کتب التواریخ.

او بل ځواب دادی چي موسی علیه السلام ته تورات دفعةً ورکړل سو، دوه چي بني اسرائلو ته تلاوت کړی هغوی پې له منلو څخه انکار وکړی حتی چي خدای ﷻ جبریل علیه السلام امر کړی چي یو غر پر دوی راپورته کړه حتی چي دوی و احکامو ته د تورات غاړه کښېښودي او وه یې مني، هغه ځکه چي بني اسرائل د غره له بېرې پر سجده پر یو تل او د تورات امر او نهي یې وومنل، نو د علیه الصلوة والسلام د امت لپاره دا نزول نجماً نجماً د خدای ﷻ لوی رحمت دی بلکې ډېر احکام د امت د علیه الصلوة والسلام بالتدریج وړاندې ته رسېدلي دي کما یدل علیه قوله تعالی في الصوم "فمن شهد منکم الشهر فلیصمه" او تر دغه دمخه روژه نیول د مسلمانانو په اختیار کي وه که یې فدیه ورکولای او که یې روژه نیولای. هو تر هغه دمخه روژې د ایام بیض فرض وې یعني هره میاشت د (۱۵/۱۴/۱۳) روژه او تر هغه دمخه روژه یو ازې د عاشورا وه فارجع الی کتب الاحادیث الشریفة.

قُلْ اٰمِنُوْا بِهٖٓ اَوْ لَا تُؤْمِنُوْا ؕ

ته ورته ووایه یامحمد (ﷺ) چي تاسي پر قرآن ایمان راوړئ یا یې نه راوړئ.

**بوه سه:** چي مقصود په دې آیت کي تخییر نه دی بلکې دا آیت تهدید او وعید دی د دوی لپاره یعني ستاسي ایمان راوړل پر قرآن قرآن ته نفع نه رسوي او ستاسي انکار قرآن ته ضرر نه رسوي بلکې ایمان راوړل یې ستاسي نفع ده. چي سبب د دخول د جنت به وګرځي او انکار یې ستاسي ضرر دی چي سبب د دخول د نار به وګرځي ولي چي قرآن مبارک في ذاته کامل کتاب دی، دا وروسته آیت د دغه آیت دلیل دی.

اِنَّ الَّذِیْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ مِنْ قَبْلِهٖٓ اِذَا یُتْلٰی عَلَیْهِمْ یَخِرُّوْنَ لِلْاَذْقَانِ سُجَّدًا ۙ۝

یعني که تاسي ایمان نه راوړئ پروا نه لري، په تحقیق هغه کسان چي دوی ته علم ورکړل سوی ځکه دمخه تر قرآن چي تر تاسي هغه بهتره وه (یعني علما د اهل کتابو. او کتب سابقه یې ویلي وه او حقیقت د وحي ور معلوم وو او په

علاماتو د نبوت پوهېدل، او محق په دعوی کې د نبوت او مبطل یې سره جلا کولای سوای او ستا یا محمد (ﷺ) او بیان د ما انزل الیک چې قرآن دی په هغو کتب سابقه وو کې یې ویلی ؤ. له عبدالله بن سلام او دده ملګري رضی الله عنهم په یهودانو کې. او نجاشي و اصحابه رضی الله عنهم په نصاری وو کې) چې پر دوی تلاوت وکړل سي د قرآن مجید دوی غځاربږي پر مخانو. ئو مراد له اذقانو څخه چې اصل ترجمه یې زنه ده مخان دي کما قال ابن عباس رضی الله عنهما پر سجده لپاره د تعظیم د امر او د شکر د قرآن او د خدای ﷻ چې خپله وعده یې پوره کړه په بعثت د محمد ﷺ په هغو کتابو کې ددوی او قرآن یې پر نازل کړی.

وَيَقُولُونَ سُبْحَانَ رَبِّنَا إِن كَانَ وَعْدُ رَبِّنَا لَمَفْعُولًا ﴿١٠٨﴾

او دوی وایي پاکي ده رب لره زموږ له خلف الوعد څخه، شان دادی چې وعده د رب زموږ البته کېدونکې ده یعني ببعثت النبي المنعوت في کتبهم، وذکر اسمه ومولده ومهجره، ونزول القرآن علیه.

**پوه سه**: چې "ان" مخفف له مثقل څخه دی او اسم ضمیر شان محذوف دی ای انه. فائده: د "ان" نافیه او مخفف د مثقل فرق په لام سره چې ان نافیه په خبر کې لام نه راځي او د "ان" مخفف په خبر کې لام لګه دلته.

وَيَخِرُّونَ لِلْأَذْقَانِ يَبْكُونَ

دا آیت یې مکرر راوړی لاختلاف السبب والحال، ولې چې اول خرور لپاره د شکر ؤ پر انجاز الموعود، او دویم خرور یې په سبب د تاثیر د قرآن په زړو کې ددوی او جمله "یبکون" په محل کې د نصب ده چې حال ده له ضمیر څخه د "یخرون" ای یخرون حال کونهم باکین. مظهري رح وایي چې دواړه ځایه یې ذقن ذکر کړی دی لانه اول مایلقی علی الارض من وجه الساجد انتهی. او دا خبره یې په متابعت د بیضاوي کړې ده. سعدي مفتي رح په حواشیو کې د بیضاوي پر دې سوال کړی دی چې اول چې پر مځکه لګېږي له ځایه څخه د مساجدو تندی او پزه ده. او روح البیان ددې سوال په ځواب کې وایي چې مراد د بیضاوي د اول

مایلقی څخه پر مخکه اېښول نه دي مراد بلکې نژدې والی د مخکې ته په حال کې د سجدې ولاشک ان الذقن اقرب الی الارض من الجبهة والانف حال الخرور الی السجدة کما یدل علی التجربة.

# وَيَزِيدُهُمْ خُشُوعًا ۩

او زیاتوي سماع القرآن دوی ته عجز قلبي، ولې چې برکات او تجلی د قرآن ددوی پر زړو راسي: حسین کاشفي رح وایي این سجده چهارم است از سجدات قرآن و حضرت الشیخ الاکبر رح این سجده را سجده علما خوانده الخ.

استحباب البکا عند تلاوة القرآن د احادیثو په رڼا کې: بغوي رح له ابي هریره رضي الله عنه څخه داسې روایت کړی دی چې علیه الصلوة والسلام وویل "لایلج النار من بکی من خشیة الله حتی یعود اللبن في الضرع" نه داخلیږي و اور ته هغه څوک چې د الله تعالی له وېرې ژاړي تر هغو پورې چې بیرته ورځي لوشل سوي شیدې وغولانځي ته هذا محال عادةً فافهم "ولا یجتمع غبار في سبیل الله ودخان جهنم في منخري مسلم ابداً" او نه جمع کیږي ګرځ په لار کې د خدای جل جلاله یعني په غزا کې، او دود د دوږخ په دوو سږمو کې د مسلمان ابداً. او حاکم و بیهقي رح د ابو هریره رضي الله عنه دغه حدیث داسې راوړی دی "حرم علی العینین ان تنالهما النار عین بکت من خشیة الله، وعین باتت تحرس الاسلام واهله من اهل الکفر" او هغه سترګه چې ټوله شپه تېره کړي په پیره کولو او ساتلو کې د اسلام او اهل اسلام له اهل کفر څخه. او بهز بن حکیم عن ابیه عن جده داسې روایت کړی دی قال سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول حرمت النار علی ثلاثة اعین، عین بکت من خشیة الله، وعین سهرت في سبیل الله، وعین عفت عن محارم الله" (دی وایي ما واورېدل له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه چې خدای پاک درې سترګې پر اور حرامې کړې دي، هغه سترګه چې د الله تعالی له وېرې ژاړي، هغه سترګه چې شپه په بیدارۍ تېره کړي په غزا کې او هغه سترګه چې پټه سي له محرماتو څخه د خدای جل جلاله یعني محرماتو ته نه ګوري که چېرې ورسره مخامخ سي سترګې پټوي رواه البغوي رح. او طبراني رح په کبیر کې د ابو ریحانه په روایت دغه حدیث راوړی دی او ابن ماجه له ابن مسعود رضي الله عنه څخه

داسې روایت کړې دی چې رسول اللهﷺ وویل "ما من عبد مؤمن یخرج من عینه دموع وان کان مثل رأس ذباب" یعني دا وبنکه لکه د مچ سر "من خشیة الله ثم یصیب شیئاً من حر وجهه الا حرمه علی لنار .. مصرع:
باکریمان کارها دشوار نیست ....... فضلاً عن ارحم الراحمین

# قُلِ ادْعُوا اللّٰهَ اَوِادْعُوا الرَّحْمٰنَ ؕ

بغوي په قول د ابن عباس وایي چې رسول اللهﷺ په مکه کې یوه شپه په سجده کې یا الله یا رحمن وایه. ابوجهل چې واورېدل نو یې وویل چې محمد موږ منع کوي زموږ له آلهه وو څخه او دی په خپله دوه خدایه بولي، فنزلت هذه الآیة ومعناها ان هذین اسمان لذات واحدة وان کانا مختلفین باعتبار معناهما فلا یکون اشراکاً ولا منافیاً للتوحید. او ددوی بتان خو د مسمی په الله څخه جلا دي فلا محالة یکون شرکاً. ولې چې عبادت دی د ذوات مختلفه وو في الذات من الله عزوجل لاعبادة الذات الواحدة اسماً کثیر. وکلمة او للتخییر، او بعض مفسرین وایي چې یهودانو به ویل چې ته اې محمده ذکر د رحمن ډېر کوې او په تورات کې د الله ذکر ډېر دی. فانزل الله تعالی هذه الآیة یعني دا دوه اسمه یو دي په حسن اطلاق کې پر ذات واحدة فلا بأس باکثار الله في التورات واکثاره علیه الصلوة والسلام اسم الرحمن لان المقصود کل واحد واحد.

# اَيًّا مَّا تَدْعُوْا فَلَهُ الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰى ۚ

**یوه سه:** چې دعا دلته په معنی د تسمیه ده او متعدي و دوو مفعولو ته ده. چې اول یې محذوف دی استغناً عنه، والتنوین في "ایا" عوض عن المضاف الیه. والضمیر في له راجع الی المحذوف. فالمعنی ایاما تدعوه فله ای لذات المعبود بالحق الاسماً الحسنی وجملة فله الاسمی الحسنی واقعة موقع الجزاً للمبالغة وکان اصل الکلام ای اسم من هذین الاسمین یعني الله والرحمن تسموبه فهو حسن صحیح لان الله تعالی اسماً حسنی کثیرة منها هذین الاسمین. او تولو ته یې حسنی وویل لدلالة کلها علی صفات الجلال والکمال والتنزه عن النقص والزوال. دروېش وایي چې دا د تفسیر د مظهري.

**فائده:** الحسنى تانيث الاحسن لان حكم التانيث بالتاويل بالجماعة لكن د خداى ﷻ شان دى چي هيڅ مشرک وغيره د الله لفظ پر بت نه دى ايښى لان اسم لذات جليه والاسماء الاخر اسماء صفات فيجوز التسمية بها سوى الرحمن لاختصاصه به تعالى في الاستعمال.

**پوه سه:** چي مسيلمة الكذاب ځان ته رحمن اليمامة وايه، او د خداى ﷻ سره په نامه کي د الله هيڅ چا شراکت نه دى کړى، ولي فرعون الطاغي داويل انا ربكم الاعلى. او دا قدرت خداى ﷻ نه ؤ ورکړى چي ووايي انا الله. فهذا الاسم الجليل مختص بذاته تعالى وضعًا ومعنًى واستعمالاً ولا يستطيع احد ان يسمى نفسه بهذا الاسم الجليل.

**وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتْ بِهَا وَابْتَغِ بَيْنَ ذَٰلِكَ سَبِيلًا ﴿١١٠﴾**

د ېره په زوره يعني په بلند اواز يې مه وايه قرائت په لمانځه کي (نو مراد له صلوة څخه قرائت دى تاچي کافران او مشرکان يې يې وانه وري، ولي دوى چي به قرآن واورېدى هم به يې قرآن ته او هم و من انزله او هم و من انزل عليه ته ناوړه خبري کولې) او دومره کرار يې هم مه وايه چي من خلفک يې هم نه اوري، او طلب کړه په منځ کي د جهر او مخافت لار، لان خير الامور اوسطها.

**پوه سه:** چي مراد له صلوة څخه صلوة الليل دى اجماعًا لوجوب الاخفاء في صلوة النهار بالنقل المتوارث. بغوي ؒ ددې آيت په شان نزول کي وايي چي عليه الصلوة والسلام كان مختفيًا بمكة من المشركين چي اصحابو ته به يې لمونځ ورکاوه جهر بالقرائة فاذا سمعه المشركون سبوا القرآن ومن انزله ومن جاء به فامر الله نبيه بالتوسط بين الجهر والاخفاء كمامر. دا روايت من طريق البخاري عن ابي بشير عن سعيد بن جبير عن ابن عباس رضي الله عنهما بغوي ؒ رانقل کړى دى، بغوي ؒ وايي چي بعض اقوام وايي چي دا آيت په دعا کي نازل سوى دى. نو مراد له صلوة څخه دعا ده تسمية للجزء باسم الكل لان الصلوة مشتمل على الدعا في مواضع، وهو قول عائشة رضي الله عنها والنخعي ومجاهد ومكحول ؒ. روى البخاري عن عائشة رضي الله عنها ولا تجهر بالصلوتك ولا تخافت بها قالت نزلت في الدعا.

**تفریع:** نو د اوسني زماني خطبان چي دعاوي په گوياکي کوي د دغو ساداتو له مذهبه څخه مخالف دي.

**بيان الترجيح:** پوه سه! چي اول شان نزول ارجح گڼل سوى دى لكونه اصح سنداً. امام نووي رح هم ترجيح ور كړې ده. او حافظ ابن حجر رح دواړه سره جمع كړي دي چي هم قرائت د لمانځه دى او هم دعاً يعني توسط دي كوي في داخل الصلوة مثل اللهم صل آه و اللهم ربنا آه. توسط بين الجهر والمخافة. لكن مظهري رح وايي چي په دې جمع زه نه يم راضي لان الدعوات المأثورة في الصلوة لكه چي درويش يې مثال وړاندې التوارث فيها الاخفا. ولا خلاف بين العلماً في الادعية الصلاتية الا في دعا القنوط" او دا آيت مبارك "ادعوا ربكم تضرعاً وخفية انه لايحب المعتدين" دا هم ددې تقاضا كوي چي اخفا په دعاگانو كي كه خارج الصلوة وي او كه داخل الصلوة اولى ده.

**درويش وايي:** چي خارج الصلوة دعاگاني كه په اجتماعي توگه وي يعني يو عالم دعا كوي او نور آمين وايي دومره قدر جهر يې اولى دى چي قوم يې واوري ناچي دوى ته موقع د آمين پيدا سي. البته په انفرادي دعا كي اخفا اولى ده.

**درويش وايي:** چي جهر په اجتماعي دعا كي په اسلامي ممالكو كي چي جاري دى حتى في الحرمين الشريفين في الادعية الاجتماعية في شهر رمضان عند ختم القرآن والتروايح.

**درويش وايي:** چي مظهري رح قول د عائشې رض يعني چي دا آيت په دعا كي نازل سوى دى داسي توجيه كړې ده. او دغه رنگه د ابو هريره رض د قول توجيه رفع صوته بالدعا چي مراد ځني سورت الفاتحة ده. ولي چي په سورت الفاتحه كي په اهدنا الصراط المستقيم كي دعا ده. فقير وايي چي دا توجيه ليس بشئ لانه لم يرو عن احد. ان رسول الله ﷺ كان يجهر بالفاتحة فقط فافهم. روى البغوي الشافعي المذهب من طريق الترمذي عن عبد الله بن رباح الانصاري رض ان النبي ﷺ قال لابى بكر رض مررت بك وانت تقرء وتخفض من صوتك (يعني في صلوة التهجد في المسجد النبوي) قال ابابكر رض قد اسمعت من ناجيت

(يعني زما مناجات د خداى ﷻ سره وي په هغه مي اوريدل) قال عليه السلام ارفع من صوتک قليلاً، وقال لعمر ﷺ مررت بک وانت ترفع صوتک. قال اني اوقظ الوسنان واطرد الشيطان يعني "يعني زما غرض په رفع الصوت کي دا دی چي بيده خلگ راويښ کړم يعني لپاره د تهجد، او شيطان ليري وشړم، قال عليه السلام اخفض من صوتک قليلاً" حاصل دا چي په توسط سره يې دواړه امر کړه.

## وَقُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي لَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا

ووايه يا محمد (ﷺ) تول ثنا او صفت خداى ﷻ لره دي هغه خداى ﷻ چي نه يې دی اخستی ولد که نر وي او که ښځه لان الولادة من صفات الاجسام خصوصاً الاجسام التي لها قوى شهوية وآلات الولادة والله تعالى منزه من کل ذالک لانه ليس بجسم ولاجسماني عوماً وخصوصاً.

**پوه سه:** چي په دې آيت کي رد دی د يهودانو چي عزير عليه السلام يې عزير ابن الله باله، او رد دی د نصارى وو چي عيسى عليه السلام يې ابن الله باله. او د بنو مدلج چي ملائکه يې بنات الله بللې. تعالى عن ذالک علواً کبيراً.

## وَلَمْ يَكُنْ لَّهُ شَرِيكٌ فِي الْمُلْكِ

او نسته خداى ﷻ لره شريک له ملک کي دده نه په اسمانو کي او نه په ځمکه کي بلکې په عالم الوجود لان مافي العالم کله مملوک ومخلوق له تعالى والمملوک لايکون شريک لمالکه. وفي هذا رد للثنوية چي دوى وايي عالم لره دوه خدايه دي دواړه واجب الوجود دي يو خالق د خيراتو دی چي د هغه نوم يزدان دی او بل خالق د شرور دی چي د هغه نوم اهرمن دی يا شيطان ورته وايي او يا شريک په ذات کي نه ورته وايي بلکې په معبوديت کي يې ورته وايي لکه بت پرستان يعني مشرکان، په مذکوره آيت کي رد پر دوى راغلى دی، ولي چي مخلوق څرنگه د خالق سره په معبوديت کي شريک کيداى سي.

## وَلَمْ يَكُنْ لَّهُ وَلِيٌّ مِّنَ الذُّلِّ

او نسته ده لره يار او مددگار په سبب د ذلت د خداى، يعني چي خداى دي

نعوذ بالله ذليل وي له يوه دښمنه څخه او هغه ولي دده کومک وکړي او لـه ذلت څخه دې خلاص کړي، فان الذلة محال على واجب الوجود وايضاً الاحتياج من خواص الممکن په دې کي رد دی پر صائبينو، دوی وايي چي که اولياً الله نه وای خدای به ذليل سوی وای نعوذ بالله.

**درويش وايي:** چي دوی جاهلان په دې نه پوهېږي چي ولي په آيت کي په معنی د معاون او مددګار عند الذلة وهذا المعنى محال في حقه تعالى واما معنى اولياً الله خو داده چي د خدای ﷻ دوستان او خدای ته تقرب جويان دي او د خدای ﷻ له عذاب څخه د دنيا او اخرت غوښتونکي د امان دي او په عبادت سره او په پرهېز د منهياتو سره خدای ﷻ ته تقرب غوښتونکي دي. نو احتياج د اولياً د خوا دی نه د الله تعالى د خوا. وفي المثنوي:

و احد اند ر ملک او را يارنی ....... بند ګانش را جز او سار لارنی
نيست خلقش راد ګر کس مالکی ....... شرکتش دعوی کند جزها لکی

**وَكَبِّرْهُ تَكْبِيرًا ﴿١١١﴾**

ای عظمه تعظيماً بالقلب وقل باللسان الله اکبر من اتخاذ الولد، والشريک والولي.

**يوه سه:** چي عليه الصلوة والسلام دا آيت په نامه د آيت التکبير نامزد کړی دی.

**درويش وايي:** چي روح المعاني، روح البيان او مظهري په ګډه دا روايت راوړی دی د انس بن مالک رضي الله عنه چي يو هلک د بني عبد المطلب پر فصيح خبرو راغلی، رسول الله ﷺ به دغه آيت په زده کاوه "وقل الحمد لله الذي لم يتخذ ولداً الى اخير الآية".

**درويش وايي:** چي ددې حديث روايت عمر بن شعيب عن ابيه عن جده کړی دی، روح المعاني له ابن السني رح او ديلمي رح له فاطمة الزهراً رضي الله عنها بنت رسول الله ﷺ څخه روايت کړی دی چي نبي کريم ﷺ ماته وويل چي ته پر ځای پرېوځې داسي وايه "الحمد لله الکافي، سبحان الله الاعلى، حسبي الله وکفى، ماشاً الله تضى، سمع الله لمن دعى، ليس من الله ملجى، ولا وراً الله ملتجى، توکلت على ربي وربکم. ما من دابة الا هو آخذ بناصيتها ان ربي على صراط مستقيم

الحمد لله الذي لم يتخذ ولداً الى قوله وكبره تكبيراً" بيا رسول اللهﷺ ووويل ما من شخص يقرئها عند منامه ثم ينام وسط الشياطين والهوام (يعني لړمان، ماران وغيرهما) فتضره.

**درویش وايي:** چي روايت کړی دی ابو يعلى او ابن السني رحمه الله لـدابي هريره رضي الله عنه څخه چي زه او رسول اللهﷺ ووتلو (يعني د صحرا و خواته) او زما لاس ددده په لاس کي ؤ، نو پر يو سړي تيرېدلو (يعني په مخه راغلی) رث الهيئة (يعني زاړه کالي يې اغوستي وه او پرېشان حال ؤ) نو عليه الصلوة والسلام ورته وويل اى فلان مابلغ بک ما ارى" هغه ورته وويل چي هم ناجوړی يم او هم مسکين يم، قال رسول اللهﷺ داسي يو کلمات نه دروښيم چي ته يې وايه مرض به دي جوړ سي او مسکنت به دي دفع سي، هغه کلمات دادي "توکلت على الحي الذي لايموت، الحمد لله الذي لم يتخذ ولداً الى اخير الآية" نو ورځي وروسته بيا رسول اللهﷺ وليدی په هيئت او په بدن تندرست، فقال "مهيم" څه قصه ده؟ هغه ورته وويل چي همېشه ما هغه کلمات چي تا راښوولي وه زه يې وايم.

**درویش وايي:** چي ښوولي کلمات د صادق مصدوقﷺ په هغه سړي پوري اختصاص نه لري، بلکې هر څوک چي هغه کلمات په کلک اعتقاد وايي مرض به يې هم دفع سي او فقر به يې په غنی بدل سي، واخرج ابن ابى الدنيا رحمه الله في كتاب الفرج، والبيهقي في الاسماء والصفات (د کتاب نوم دی) عن اسماعيل بن ابى فديک رضي الله عنه قال قال رسول اللهﷺ ماكربني امر الامثل لي جبرئيل (زه نه يم په غم کي اچولی يو کار، مانه به ځان راښکاره کړي جبرئيل) فقال يامحمد (ﷺ) قل توكلت على الحي الذي لايموت والحمد لله الذي لم يتخذ ولداً الى اخير الآية.



سُورَةُ الْكَهْفِ مَكِّيَّةٌ وَهِيَ مِائَةٌ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ وَعَشْرُ آيَاتٍ وَّفِيهَا اثْنَا عَشَرَ رُكُوعًا

رب يسر علي تفسيره وتممه بالخير والعافية

**درويش وايي:** چې روح المعاني وايي چې دغه سورت بل نوم سورة اصحاف الكهف دی. مشهوره خو داده چې ټوله سورت مکي دی. ديلمي رح په جنت الفردوس کې وايي (چې دغه د کتاب نوم دی) له انس رضي الله عنه څخه روايت کوي او هغه له نبي عليه السلام څخه چې عليه الصلوة والسلام وويل چې سورت کهف په يوه پلا نازل سوی دی چې په وخت د نزول کې او ويا زره (۷۰۰۰۰) ملکي ورسره وې.

ابن اسحاق رح له عکرمه رضي الله عنه څخه او هغه له ابن عباس رضي الله عنهما روايت کړی دی چې قريشو نضر بن الحارث او عقبه بن ابی معيط واستول و احبارو ته د يهودو د مديني يعني علمائهم. قريشو ورته وويل چې تاسې پوښتنه وکړئ له دوی څخه د محمد (صلی الله علیه وسلم) او بيان د صفاتو دده ورته وکړي چې دی څه وايي هغه هم ورته بيان کړئ (يعني الدعوة الى التوحيد وکونه رسولاً من الله العزيز) فانهم اهل الكتاب الاول (يعني التورات) وعندهم ماليس عندنا من علم الانبياء. فخرجا حتى اتيا المدينة فسئلا احبار اليهود عن رسول الله صلی الله علیه وسلم ووصفالهم امره وبعض قوله. نو د يهودو ملايانو ورته وويل چې تاسې د درو شيانو پوښتنه ځني وکړئ. يو د هغو ځوانانو چې له کوره څخه تللي وه په پخوا زمانو کې دا څوک وه او ولې له کورو څخه تللي وه؟ فانه كان لهم حديث عجيب د هغو يوه تعجب آميزه قصه ده. او بل دا پوښتنه چې هغه کوم سړی ؤ چې شرق او غرب، جنوب او شمال ته يې سفر کړی ؤ او څرنګه ماجرئ يې وه؟ او بل د روح پوښتنه ځني وکړئ يعني چې روح څه شی دی. که يې د درو سره وو بيان مفصل وکړی، نو نبي مرسل دی. او که يې ځواب ورنه کړی نو دا سړی متقول دی يعني پر خدای جل جلاله دروغ وايي. هغه دوه کسان د قريشو چې مکې ته راغله مکې والو ته يې وويل چې يو قول فيصل زموږ و د محمد (صلی الله علیه وسلم) تر منځ موږ راوړی دی. نو څو کسه مشران د قريشو په شمول د فرعون الامة ابوجهل و عليه الصلوة والسلام ته ورغله او دا درې سوالونه يې

ځني وکړه، علیه الصلوة والسلام ورته وویل چي صبا به زه جواب درکړم، لکن د دېري خوشالۍ له سببه چي قریشو ده ته دا وعده ورکړه چي که دا درې ځوابه دې راکړه مونږ ایمان راوړو او تا په رسالت منو، د علیه الصلوة والسلام ان شاء الله هېر سوه، د علیه الصلوة والسلام خیال دا ؤ چي مابنام به جبرئیل راسي ما ته به د جوابو تفصیل راوړي زه به یې صبا قریشو ته بیان کړم خیر وحي وځنډېدلې او جبرئیل علیه السلام نه راتلی (یعني په سبب د ان شاء الله نه ویلو د علیه الصلوة والسلام)

**سوال:** د یوه ان شاء الله نه ویلو له کبله خدای پاک رسول الله ﷺ د دومره لوی خطر سره مخامخ کړی حکمت یې څه دی؟

**ځواب:** هر څو چي ؤ خدای ﷻ ته قربت راځي محنت هم ورسره ملګری وي، پښتانه وایي پر سپینه جامه خیره ژر معلومېږي. خیر له درو ورځو څخه نیولې بیا تر څلوېښت ورځي پوري، شاه عبد العزیز الدهلوي رحمه الله په تفسیر عزیزي کي روایت راوړی دی لکن مشهوره پینځلس ورځي دي، په هر صورت مکې وال هره ورځ ورته راځغاستل چي مونږ ته خبر زمونږ د سوالو راکړه، حتی چي مکي والو به ویل ان محمداً ودعه ربه وقلاه او د ابو لهب ماینه به کور ته پسي ورغله او ورته وه بې ویل ما اری شیطانک الا قد ترکک تعني جبرئیل.

**یوه سه:** چي ځواب د روح د سوال په اخیر کي د سورة الاسری خدای ﷻ ورکړه، او د هغه نورو دوو سوالونو ځوابونه چي د اصحاب کهف قصه او د ذو القرنین قصه ده په دې سورت کي ورکړه، له سبب تناسب اتصال السورتین.

**سوال:** څه حکمت الهي دی چي د درو سره وو ځوابونه یې په یوه سورت کي نه کړه ور؟

**ځواب:** د روح سوال خو تفصیل نه درلودی، نو ځکه مناسبه دا وه چي د روح ځواب یوازې ذکر کړل سي، بخلاف الجواب عن قصة اصحاب الکهف وذو القرنین، ولې چي هغه تفصیل غواړي.

**پوښتنه:** د روح ځواب یې ولې په سورت اسری کي ورکړی؟

**ځواب:** په منځ کي د اسری یعني معراج او د روح مناسبت سته ولې چي عقول عامه دواړه له فهم څخه عاجزه دي.

خواص سورة الكهف: ابن مردويه له ابن عمر ﷺ څخه مرفوع حديث راوړی دی (من قرء سورة الكهف في يوم الجمعة) پورته په سې نور له پښو څخه د قاري تر عرشه پورې (وغفر له مابين الجمعتين) وروى غير واحد عن ابي سعيد الخدري ﷺ من قرء سورة الكهف في يوم الجمعة اضاء له النور مابينه وبين البيت العتيق يعني الحرم المكي وبيت الله الشريف، واخرج ابوعبيد والبيهقي عن ام موسى ان الحسن بن علي ﷺ سورت كهف يې هره شپه وايه) او ابن مردويه له عبدالله بن مغفل ﷺ څخه مرفوع حديث راوړی دی چې هغه کور چې په هغه کې د شپې سورة كهف وويل سې شيطان هغه شپه هغه کور ته نه ورځي.

**يوه سه:** چې د بر اثمه دين سنت بولي قرائت د سورت كهف په شپه او ورځ کې د جمعې، واخرج احمد، مسلم، ابوداؤد، ترمذي، نسائي و ابن حبان ﷺ عن ابي الدرداء ﷺ عن النبي ﷺ (من حفظ عشر ايات من اول سورة الكهف عصم من فتنة الدجال) او په بعضې رواياتو کې من حفظ وقرء العشر الأواخر من سورة الكهف. والله الموفق لكل خير وعبادة.

## اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ عَلٰى عَبْدِهِ الْكِتٰبَ

ټوله ثناء او صفت خدای (ﷻ) لره دي، هغه خدای (ﷻ) چې نازل کړی يې دی پر خپل بنده يعني محمد ﷺ كتاب يعني القرآن.

**يوه سه:** چې په دې آيت کې خدای پاک ثناء وويل پر خپل ځان په انعام سره پر خلکو باندې په داسې يو ستر نعمت سره چې انزال د قرآن پر يوه دده دی، ولې قرآن هادي دی وهغې لارې ته چې عباد و درجې ته د كمال رسوي يعني كه عمل په وکړي، ولې په قرآن سره صلاح د معاش دنيوي ده او د معاد اخروي.

**درويش وايي:** چې خدای ﷻ عبده وويه، ولې چې اعلى د مقامات عبديت دی، او بيا يې ځان ته اضافت وکړی لپاره ددې چې عليه الصلوة والسلام حر مطلق دی له ماسوی څخه د خدای ﷻ، علماء وايي چې د رسول په اوصافو کې عبوديت تر رسالت دده لوړ مقام دی لان في العبودية توجه من المخلوق الى الخالق وفي الرسالة توجه الى المخلوق، وفي الآية تلقين للعباد كيف يحمدون الله ﷻ.

**فائده:** كه مراد له قرآن څخه ټوله قرآن وي، نو په دې آيت كې تغليب د نازل پر سينزل باندې، ولې په دغه وخت كې د نزول د دې سورت خو ټوله قرآن نه و بشپړ سوى، نو تعبير په ماضي سره بې تغليب نه سي كېداى، او كه مراد له كتابه ټوله ما انزل مراد وي نو تعبير په ماضي سره بېله تغليبه دى.

## وَلَمْ يَجْعَل لَّهُۥ عِوَجَا ۜ ۝

او نه يې دى ګرځولى په قرآن كې يو شى له كږوالي څخه كما يدل عليه وقوع النكرة في سياق النفي، والمراد من العوج اختلال الالفاظ من حيث الاعراب والبناء والمخالفة للفصاحة والبلاغة وتناقض معانيه وكونه داعيًا الى ماليس بحق او داعيًا الى غير الله.

## قَيِّمًا لِّيُنذِرَ بَأْسًا شَدِيدًا

ابن عباس رضي الله عنه وايي اى عدلًا اى مستقيمًا لا افراط فيه ولا تفريط، او فراء رح وايي چې د قيمًا معنى داده چې حاكم دى پر نورو ټولو كتب الهيه و يشهد بصحتها وينسخ بعض احكام الكتب السابقة.

**پوه سه:** چې قيمًا منصوب دى په فعل محذوف سره، قتاده رح وايي تقدير: كلام انزل على عبده الكتاب ولم يجعل له عوجًا بل جعل قيمًا (لينذر) ددې حكمت لپاره چې ويږوي قرآن او محمد ﷺ بما في القرآن، المفعول محذوف اى الكفار (عذابًا شديدًا) له سخت عذاب څخه چې يا عذاب د استيصال دى په دنيا كې يا عذاب النار في القيامة.

## مِّن لَّدُنْهُ وَيُبَشِّرَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ٱلَّذِينَ يَعْمَلُونَ ٱلصَّٰلِحَٰتِ

چې صادر دى له جانبه څخه د خداى (جل جلاله) او زيرى په وكړي قرآن او محمد عليه السلام بواسطة القرآن، و مؤمنينو ته چې اعمال صالحه كوي من الواجبات القولية والقلبية والمالية والبدنية، عبادت واجب قول دده كلمة الشهادت اى اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمدًا رسول الله، والقلبية الواجبة هو التصديق بالقلب بدون النفاق والمالية هي الزكوة والبدنية هي الصلوة وغيرها من انواع كل واحد منها.

**بوه سه:** چي مفعول اول د (لینذر) چي کفار وه نه کړه ذکر او مفعول اول د (لیبشر) یې ذکر کړی چي مؤمنین دي. حکمت یې څه دی؟

**ځواب:** حکمت یې تعظیم د مؤمنینو دی.

## اَنَّ لَهُمْ اَجْرًا حَسَنًا ﴿۲﴾

ای بان بحذف الجار وهو شائع في القرآن په دې سره زېرې ورته وکړه چي دوی لره په مقابل کي د ایمان او د اعمال صالحهٔ ثواب ستهٔ پر بنه. اکثره مفسرین بلکې غالبًا تول وایي چي مراد له اجر حسن څخه جنت دی. ولي چي په جنت کي نعیم، مقیم او ثواب عظیم سته حتی ورد فیها مالا عین رئت ولا اذن سمعت ولاخطر علی قلب بشر.

**بوه سه:** چي تعبیر له ثواب څخه یې په اجر سره وکړی لپاره د تاکید د ثبوت ددغه ثواب یعني لکه د مزدور اجر چي څوک نه ګرځوي دغه رنګه جنت خدای ﷻ له دوی څخه نه سپموي په مقتضی د وعد د خدای ﷻ لا للوجوب علیه تعالی.

## مّٰكِثِيْنَ فِيْهِ اَبَدًا ﴿۳﴾

دوی به اوسېږي په دغه اجر کي چي جنت دی ابد الاباد یعني من غیر انتها زمان مکثهم في الجنة لکون الجنة دار الخلد.

## وَّيُنْذِرَ الَّذِيْنَ قَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا ﴿۴﴾

او وبېروئ (قرآن یا محمد علیه السلام بواسطة وحي القرآن) هغه کسان چي وایي خدای ځان لره عیال اولاد اخستي دي لکه یهود چي عزیر ابن الله بولي. یا نصاری چي عیسی ابن الله بولي. یا بني مدلج من المشرکین چي ملائکه بنات الله بولي.

**درویش وایي:** چي دا کسان که څه هم په دله کي د منذرینو اولاً وه یعني الکافرین لکن دلته یې بیا د انذار په غشي وویشتل لغلوهم في الکفر.

## مَا لَهُمْ بِهٖ مِنْ عِلْمٍ وَّلَا لِاٰبَآئِهِمْ

نسته دوی لره پر ولد د خدای ﷻ یا پر اتخاذ الولد هیڅ علم (کلمه د من لپاره د استغراق نفي ده، یعني دا خبره ددوی د جهل مفرط او د توهم باطل له سببه ده)

نه ددوی پلرو لره علم پرسته بلکې تو له اباء اجداد ددوی هم جاهلان مطلق وه او
دا خبره یو د بل له تقلید څخه په دوی کې جاري وه.

## كَبُرَتْ كَلِمَةً

**یوه سه:** چې په (کبرت) کې ضمیر مبهم دی او کلمة تمییز دی لپاره د بیان د
هغه ضمیر مبهم کقولهم ربه رجلاً.

**سوال:** نحات خو وایي چې (الکلمة لفظ موضوع لمعنی مفرد) کما في
الکافیة او اتخذ الله ولداً خو جمله او کلام تام دی؟

**ځواب:** کلمه په اصطلاح کې د نحاتو په معنی مذکوره ده، واما په لغت کې کلام
تام ته هم وایي کما ورد في القرآن کلمة الله هي العلیاء یعني لا اله الا الله چې کلام تام
دی، بلکې قصیدې ته هم وایي کما یقولون هذه کلمة امرء القیس ای قصیدته.

**یوه سه:** چې نسبت د ولد و خدای ﷻ ته که نر وي او که ښځه کما مر من قبل
ډېر شنائع په بر کې لري من التشبیه لان الولد یشابه الوالد، والتشریک واحتیاجه
تعالی الی ولد چې دده کومک سي او دده قائمقام سي په موت د والد وکل ذالک
محال علی الله ﷻ.

## تَخْرُجُ مِنْ أَفْوَاهِهِمْ ۚ إِن يَقُولُونَ إِلَّا كَذِبًا ۝

راوځي له خولو څخه ددوی (دا صفت د کلمة دی) نه وایي دوی دا خبر مګر دروغ
پر خدای ﷻ.

**یوه سه:** چې ابن مردویه رح له ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت کړی دی چې سره جمع
سوه عتبه و شیبه چې دواړه زامن وه د ربیعه او ابوجهل بن هشام، او نضر بن الحارث او
عاص بن الواهل او اسود بن المطلب او ابو البختري نور کسان هم ورسره وه، او پر
خلاف د علیه الصلوة والسلام او د قرآن یې ترون سره وکړی او علیه الصلوة والسلام
چې خبر سو ډېر غمجن سو پر دې اتفاق د قوم دده پر خلاف، نو دا آیت نازل سو.

## فَلَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَّفْسَكَ عَلَىٰ آثَارِهِمْ إِن لَّمْ يُؤْمِنُوا بِهَٰذَا الْحَدِيثِ أَسَفًا ۝

شاید چې ته ځان وژنې یعني له ډېره غمه څخه پر اثارو د کفارو یعني پر
علاماتو د انکار ددوی ستا له دین څخه چې په دې ترون کې ددوی تا ته ورسېدی،

چې ذوی ايمان نه راوړي په دغه قرآن سره ان شرطي له جزاء څخه مستغني دي په ماقبل سره (اسفا) مفعول له باخع نفسک. او يا حال دی ای متاسفا عليهم لشدة حرصک علی ايمانهم، والاسف شدة الحزن والغضب.

إِنَّا جَعَلْنَا مَا عَلَى الْأَرْضِ زِينَةً لَّهَا لِنَبْلُوَهُمْ أَيُّهُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا ۝٧

موږ ګرځولي دي هغه شيان چې پر مځکه دي، روح المعاني وايي چې له کلمې څخه د ما غير ذوی العقول عموما مراد دي ای سواء کانت حيوانا او نباتا او معدنا، نبائسته دی د مځکې لپاره وهو زينة لاهلها لان زينة کل شئ کالارض ههنا زينة لاهلها.

**سوال:** په ما علی الارض کې خو له من غير ذوی العقول څخه نو حيوانان موزر شيان هم سته لکه لړمان، ماران، لېويان، پړانګان او په نباتاتو کې زهري شيان لکه مړه غوني، ځوزان، کروړې الی غير ذالک هم سته، نو هغه څرنګه زينت د مځکې کېدای سي؟

**ځواب:** روح المعاني او مظهري وايي چې دا شيان چې زينت د مځکې دي په اعتبار ددې چې پر وجود د صانع او پر صفات کامله وو دده دلالت کوي، سعدي شيرازي وايي:

برګ درختان سبز درنظر هوشيار .... هر ورقی دفتريست معرفت کردګار

او ابن عباس ﷺ وايي چې مراد د ما علی الارض څخه يوازې رجال دي او بعض وايي چې مراد ځني علماء او صلحاء دي.

**درويش وايي:** چې دا دوې ارادې مبني پر دې دي چې بعض محققين د نحاتو وايي چې من د ذوی العقول لپاره دی، کلمه د ما عامه ده. او حسين کاشفي رحمة الله عليه وايي: محققان بر انند که ما علی الارض بمعنی من است ومراد انبياء يا علماء يا حفظه قرآن است که زينت زمين ايشان اند، بيت:

روی زمين بطلعت ايشان منور است ... چون آسمان بزهره وخورشيد ومشتری

وَإِنَّا لَجَاعِلُونَ مَا عَلَيْهَا صَعِيدًا جُرُزًا ۝٨

موږ ګرځوو هغه ټوله شيان چې پر مځکه وه يعني عند تناهي عمر الدنيا، چې پر مځکه دي خاوري لانبات فيها ولا مطر، کاشفي رح وايي يعني اخيرا اين همه

عمارتها را خراب خواهم کرد پس دل بر ان ننهید وزینت ناپاید ار آن نشوید التهی
جهان از رنگ و بو سازد اسیرت ......و لی نزدیک ارباب بصیرت
نه رنگ دل کشش را اعتبار یست ..... نه بوی دل فریبش را مدار یست

**حکایت**: د هارون الرشید خلیفة المسلمین یو زوی ؤ په عمر د شپاړسو کالو زیب وزینت شاهي ته یې شا کړه او تر قبای شاهي یې یوه ګدړی مختاره کړه او د خدای ﷻ عبادت، صوم او شبخیزي یې مختاره کړه او په صادق زړه یې دنیا ومافیها ته الوداع وویل، نو له دې کبله چي په حدیث قدسي کي راغلي دي )من تقرب الي شبرًا تقربت الیه زراعًا، ومن تقرب الي زراعًا تقربت الیه باعًا. الی اخیر الحدیث) د خدای ﷻ په دربار کي مقبول او د خاصو بندګانو څخه وګرځېدی. یوه ورځ د هارون دغه زوی تېرېدی د هارون الرشید سره وزیران ناست وه، هغو هارون ته وویل (لقد فضح هذا الولد امیر المؤمنین بین الملوک بهذه الهیئة) رسوا کړی امیر المؤمنین دغه زوی په منځ کي د نړی د بادشاهانو په دا خپل هیئة سره یعني چي ګدړی یې اغوستي ده، نو هارون الرشید خپل زوی راوغوښتی او ورته وه یې ویل (یا بني لقد فضحتني بحالک) ده ځواب ورنه کړی، شاوخوا یې وکتل یو مرغه پر دېوال ناست ؤ، ده ورته وویل ایها الطائر بحق خالقک راسه زما پر لاس کښېنه، مرغه راغلی ده ده پر لاس کښېنستی، بیا یې ورته وویل بیرته ولاړ سه، مرغه بیرته ولاړی، بیا یې ورته وویل د امیر المؤمنین پر لاس کښېنه، مرغه نه ورغلی، نو زوی و هارون ته وویل چي زه دي رسوا کړم په منځ کي د اولیاء الله، زوی یې ورته وویل چي ته په ما شرمېږې ما هم عزم کړی دی چي له تا څخه ځان لېري کړم، زوی یې ورغلی کور ته یو قرآن شریف یوه د هارون ګتمی یې واخسته بصرې ته ولاړی، او په هفته کي یوه ورځ د شنبې یې مزدوري د ختو د یو سړي سره کوله. او یو درهم او یو دانق یې مزدوري غوښتل په هغه بې د هفتې د ډوډی ګذاره کوله. او هغه سړي د ختو او د برو دېوال پورته کاوه. خیر یوه شنبه او بله شنبه بې د دغه سړي دېوال پورته کاوه او په یوه ورځ یې د پورې هفتې دېوال پوره کاوه، هغه سړی په دې پوه سو چي دا مزدور له اولیاء څخه د خدای ﷻ دی او غیبي کومک ورسره کېږي، خیر څو عمر وروسته هر څو میاشتي چي وې یوه ورځ

د شپې په ورځ کار ته نه ورغلی، صاحب کار پسې ګرځېدی اخیر یې په یوه خرابه کې پیدا کړی چې مریض ؤ، نو دې مریض ماته دا سې وویل)

یا صاحبي لا تغتر بتنعم ...... فالعمر ینفد و النعیم یزول
واذا حملت الی القبور جنازة ...... فاعلم بانک بعدها محمول

بیا یې ماته وصیت شروع کړی چې غسل به راکړې او دا زما کالي او چینه را کفن کړه. ما ورته وویل یا حبیبي کفن به د نوي ټوکر درکړم، ده راته وویل الحي احوج الی الجدید من المیت یا اباعامر (چې د صاحب کار نوم ؤ) الثیاب تبلي والاعمال تبقی، او بیا یې مصحف شریف او هغه ګوتمی راکړه ول دا به ورورې هارون الرشید ته، او ورته وه به وایه چې ستا غریب زوی وروسته تر سلامه وویل لاتدومن علی غفلتک، ابو عامر وایي چې ما دی وروسته تر غسل دفن کړی، او مصحف او خاتم مي را واخستل د هارون الرشید په دربار کي مي اجازه وغوښتل، او مصحف او خاتم مي ورکړه، او دا ټوله قصه مي ورته وکړه، هارون وژړل او زما ځنه یې پوښتنه وکړه چې زما په زوی تا څه کار کاوه، ابو عامر وای ما ورته وویل. چې دېوال او د ختو کار مي په کاوه، هارون راته وویل چې تا په ده د ختو کار کاوه وله اتصال برسول الله ﷺ (یعني په نسب کي بالوسائط) ما ورته وویل چې ما خو نه پېژندی. بیا هارون راته وویل چې تا په خپل لاس غسل ورکړی؟ ما ورته وویل نعم، ابو عامر وایي چې هارون الرشید زما لاسونه رامېچ کړه او پر ځیګر یې کېښول، او بیا هارون زما سره راغلی او د خپل زوی زیارت یې وکړی او پر قبر یې اوښکي توی کړې، ابو عامر وای چې څو زمانه وروسته ما د هارون الرشید زوی په خوب ولیدی چې پر یو ښائسته لوی کټ باندي ناست ؤ په یوه لویه خېمه کي، ما پوښتنه د حال ځني وکړه، ده راته وویل صرت الی رب راض واعطاني ما لاعین رئت ولا اذن سمعت ولا خطر علی قلب بشر... قطعه:

نګه دار فرصت که عالم دمی است ..... دمی پیش دانا به از عالمیست
برفتند و هرکس درود انکه کشت ..... نماند بجز نام نیکو و زشت
دل اندر دلارام دنیا مبند ... که ننشست باکس که دل بر نکند

أَمْ حَسِبْتَ أَنَّ أَصْحٰبَ الْكَهْفِ وَالرَّقِيْمِ كَانُوْا مِنْ اٰيٰتِنَا عَجَبًا

آيا ته گمان کوې چې اصحاب کهف (کهف) فراخه غار ته وايي او که فراخه وي هغه ته غار وايي (د پښتو او عربي مشترک لفظ دی)

**پوه سه:** چې کلمه د ام منقطعه په معنی د بل آه د بل لپاره د انتقال ده، او همزه لپاره د استفهام دی او مخاطب علیه الصلوة والسلام دی (واختلفوا في الرقيم) روح المعاني وايي چې د دوی د سپي نوم دی کما روی عن انس ﷺ والشعبي وفي رواية عن ابن جبير ﷺ، او روح البيان وايي چې نوم د سپي دی په رومي ژبه او دا يې دليل راوړی دی چې صاحب بن عباد چې يو عارف اللغات شخصيت و وايي چې زه متردد وم په معنی کې د رقيم، تبارک او د متاع.

**درويش وايي:** چې صاحب بن عباد په اصل لغوي معنی کې متردد نه و په معنی مراده کې ولې چې په معنی مراد خو هر عالم پوهېږي فافهم.

نو دی ګرځېدی په قبائلو کې د عربو چې دوی دا درې لفظه په څه شي کې استعمالوي، يوه ورځ يې له يوې ښځې څخه واورېدل چې له زوی څخه يې پوښتنه وکړه اين المتاع نو کوچني زوی ځواب ورکړی جاء الرقيم واخذ المتاع وتبارک الجبل درې سره لفظه پر يوه ځای صاحب پيدا کړه، نو دی پوه سو چې رقيم سپی دی او د متاع معنی خميره ده او د تبارک معنی لوړ ختل ده، په قاموس کې وايي چې رقيم پر وزن د امير دی قرية اصحاب الكهف او جبلهم او كلبهم او الوادي او الصحراء او لوح، رصاصي او حجري چې په دې لوح کې نومان د اصحاب کهف او نسب د دوی او دين د دوی او چې له چا څخه تښتېدلي او ولې تښتېدلي وه او په دروازه کې د کهف يې ايښي وه، نو پر دې تقدير رقيم فعيل په معنی د مفعول دی ای المرقوم او روح د دې لوح په باره کې مختلف اقوال راوړي دي (۱) من حجارة (۲) من رصاص (۳) من ذهب والمشهور هو الاول والثاني والله اعلم.

**فائده:** روح البيان وايي چې مخاطب په (ام حسبت) سره خو عليه الصلوة والسلام دی، والمراد انکار حسبان امته آه.

**درويش وايي:** چې د دې مطلب دا دی چې همزه د ام چې په معنی د بل دی

كما مر همزه يې لپاره د انكار دى ددې حسبان، نو غرض د روح البيان دادى چې دا حسبان د عليه الصلوٰة والسلام له شانه څخه لېرې دى. نو ځكه مراد انكار د امت دى له داسې حسبان څخه، او روح المعاني وايي چې دا خطاب دى و سيد المخاطبين ﷺ ته، والمقصود غيره كما ذهب اليه غير واحد من العلماء آه، او مظهري وايي چې دا استفهام لپاره د تقرير دى اى اعلمت يعنې ته خبر يې. وروسته يې ويلي دي چې بعض وايي چې دا استفهام لپاره د انكار دى يعنې ليس اصحاب الكهف چې په لسګونو كلو خداى ﷻ ژوندي ساتلي وه په كهف كې كما سيأتي ان شاء الله تعالى، ليس اعجب آياتنا، ولې خلق د اسمانو سره د مافيها من الشمس والقمر والنجوم او خلق د مځكې مع ما فيها من خزائن الذهب والفضة والجواهرات الثمينة وما عليها من الاجناس لكه حيوانات، نباتات، معدن په غرو كې د مځكې والانواع لكه انواع د حيوان من الانسان والحمار وغيرهما، وانواع النباتات من النخل والعنب وغيرهما، وانواع المعدن في الجبال من الجواهرات وغيرها چې حساب يې څوك نشي كولاى هغه تر اصحاب كهف عجب دى.

**فائده:** عجبًا مصدر دى حمل يې يا مبالغة دى يا په حذف د مضاف اى ذات عجب يا مصدر په معنى د معجبًا وفي الآخير بحث فافهم.

## إِذْ أَوَى الْفِتْيَةُ إِلَى الْكَهْفِ

يعنې ذكر كړه هغه وخت چې پناه وروړه يعنې ځاى د اوسېدو يې وګرځاوه ځوانانو كهف. بغوي وايي چې ددې غار نوم جيرم دى او د غره نوم يې ينجلوس دى.

## فَقَالُوا رَبَّنَا آتِنَا مِن لَّدُنكَ رَحْمَةً وَهَيِّئْ لَنَا مِنْ أَمْرِنَا رَشَدًا ⑩

نو دوى وويل اې زموږ خدايه موږ ته راكړې له خپلې خوا څخه رحمت يعنې الهداية في الدين والمغفرة من الذنوب والرزق والامن من العدو، او اراسته كړې موږ لره ددې كاره چې موږ په هغه اختتى دى، يعنې الايمان ومفارقة الاقارب وعداوة الكفار، ،رشدًا، ، راه راست، بغوي ؒ وايي چې په سبب كې د تللو دد غه ځوانانو وكهف ته اختلاف دى، محمد بن اسحاق ؒ وايي چې اهل انجيل يعنې نصارى مرجوا يعنې د دين چارې ګډوډې كړې او ګنهونه تر حد ډېر سوه، او

بادشاهان یو په بل پسې وه طغیان مائل کېدل حتی عبدوا الاصنام یعني بت پرستي یې شروع کړه او د بتانو پر نامه به یې ذبح کول، او لږ کسان پر دین عیسوي پاته وه متمسکین بعبادة الله ﷻ، اخیر بادشاه چې دا بت پرستي کوله ملک الروم ؤ چې نوم یې دیقانوس ؤ چې دې بادشاه داسې ظلم شروع کړی چې علاوه تربت پرستۍ یې هغه کسان قتل کول چې له بت پرستۍ څخه به مخالف وه، او دقیانوس به قریو او ښارو کې د روم ګرځېدی، هري قریې یا ښار ته چې به ورغلی هیڅوک یې نه پرېښوول چې عبادت د بتانو یې نه وای کړی یا بې وژلی، حتی چې دقیانوس و ښار ته د اصحاب کهف چې افسوس یې نوم راغلی، نو پر مسلمانانو دده راتګ د پر حیرت واقع کړی حتی چې اهل ایمان به یو ځای او بل ځای پټېدل او هره خوا ته تښتېدل، دقیانوس چې افسوس ته راغلی امر یې وکړی چې په مؤمنانو پسې ددوی په کورو کې او هر ځای ګرځئ او ما ته یې راولئ، چې څوک به یې راوستی دقیانوس به هغه ته اختیار ورکړی چې قتل دې کړم که بت پرستي کوې، نو د چا چې به ژوند خوښ ؤ هغه به فورًا بت پرستي شروع کړه او چا چې به منع وکړه چې عبادت د غیر الله وکړي هغه به یې فورًا قتل کړی، نو هغه چې ایمان به یې مضبوط او محکم ؤ هغو به ځانونه عذاب او قتل ته وسپارل حتی چې دقیانوس به قتل کړه، او د هغو غوښې بې ټکړې ټکړې کولې د ښار پر شاوخوا او پر هره دروازه د ښار بې ځړولې حتی چې دا فتنه مخ پر لوېدلو سوه، اهل ایمان ته بېله لمونځو، روژو، خیراتو، دعاګانو او تضرع و خدای ﷻ ته بل څه نه سوه پاته، یو څو کسان مؤمنان چې د ښار د اشرافو او وزیرانو زامن وه او دا اته کسه وه، هغو به ژړل او خدای ﷻ ته بې زاری کولې او دوی به داسې ویل (ربنا رب السمٰوات والارض لن ندعوا من دونه آلها لقد قلنا اذًا شططًا (مونږ عبادت نه کوو غیر له تا، که مونږ عبادت د غیر الله وکړو (شططًا) قول غلط او فعل غلط مو وکړی) اکشف عن عبادک المؤمنین هذه الفتنة وارفع عنهم البلاء حتی چې به علانیه ستا عبادت وکړي، نو دوی په دغه زاریو او لمونځو بخت وه د دقیانوس عسکر ورته راغله او دوی په حال کې د سجدې وه او ژړل یې او تضرع یې و خدای ﷻ ته کوله، عسکرو ورته وویل ولې د ملک دقیانوس امر نه وړئ یعني عبادة

الاصنام، د رولاړ سئ چي دقيانوس ته مو بوزو. او دي عسكرو دا سي رپورټ دقيانوس ته ور كړى چي ته خلك په عبادت د بتانو امر كوې او دغه ځوانان چي ستا د وزيرانو وغيرهم من الاشراف زامن دي په تا پسخند وهي او ستا له امر څخه عصيان كوي. دقيانوس جبار چي دا واورېدل امر يې وكړى چي را حاضر يې كړئ دوى چي يې حاضر كړه تر سترګو يې اوښكې توېدلې مخان يې په خاورو ککړې وه. دقيانوس ورته وويل چي تاسي څه شي منع كړي ياست چي زموږ د خدايانو عبادت وكړئ. تاسي ځانونه خوانين او شرفاء ددې ښار بولئ. يا زموږ د خدايانو عبادت وكړئ يا به مو قتل كوم، نو مكسلمينا ورته وويل چي ددوى مشر ؤ چي موږ خداى لرو چي اسمانونه يې له عظمت څخه ډک دي. موږ عبادت نه كوو له غيره د هغه خداى ﷻ ابداً له الحمد والتكبير والتسبيح من انفسنا خالص اياه نعبد واياه نسئل الخير والنجات. واما الطواغيت (يعني بتان) موږ يې عبادت نه كوو ابداً، او ټولو ملګرو د مكسلمينا هم دا خبره و دقيانوس ته وكړه. او په پاى كي يې ورته وويل هر څه چي راكوې وه يې كړه.

دا خبري چي دوى و دقيانوس ته وكړې هغه وويل چي ددوى څخه هغه سرداري كالي وكاږئ. ولي دوى خو د وزيرانو زامن وه، نو د مسكينانو كالي يې په واغوستل او ورته وه يې ويل چي تاسي ودرېږئ چي زه فارغ سم ستاسي ور عذاب به دركړم او دا يې هم ورته وويل چي زما مانع له تعجيل څخه د عقوبت ستاسي دا دى چي تاسي ځوانان ياست كم سنه ياست خپل په ښه او بد نه پوهېږئ، او زما دا فكر دى چي تاسي ته مهلت دركړم تا چي تاسي د ځانو سره فكر ووهئ او زما و لاري ته به رجوع وكړئ، نو يې له دربار وه ايستل، او دقيانوس بل ښار يا قريې ته ولاړى د ځيني كارو لپاره، نو اصحاب كهف تلل د دقيانوس غنيمت وګڼل او د مخه تر بير ته راتلو دده يې مشوره پر دې سره وكړه چي هر يو دې د پلار له كوره يو اندازه مبلغ را واخلي يو څه دې خيرات كړي او نور دې د خرڅ لپاره وساتي، نو ولاړ به سو هغه كهف ته چي نژدې وښار ته دى په غره كي د بيجبلوس هورې به پټ سو، او د خداى ﷻ عبادت به كوو حتى چي دقيانوس راسي ور پسو دده په حضور كي به د توحيد الهي وظيفه ادا كړو هر څه چي راكول را و دې كړي،

کعب احبار وایي چي دوی چي غار ته تله یو سپی په لار کي په پسې سو. دوی به چغه کړی او ډبري به یې پسې وغورځولې خو چي دوی به راهي سوه سپی به بېرته پسې روان سو. څو واره یې دغسي وکړه، خدای ﷻ په قدرت تامه سره سپی پر خبرو راوستی او داسي یې ورته وویل چي خلکو تاسي زما څخه څه غواړئ زما له خوا مه بېرېږئ فاني احب احباء الله، تاسي به بیده سئ زه به مو پهره داریم. او ابن عباس رضي الله عنهما وایي چي دوی د شپې له دقیانوس څخه وتښتېدل د غره وخواته، دوی اصلاً اووه (۷) کسه وه په لار کي یو شپانه هم ورسره ملګری سو او د شپانه سره سپی ؤ آه، فخرجوا من البلد الی الکهف ثمانیة نفرًا او یو سپی ؤ، ابن عباس رضي الله عنهما وایي چي دوی چي په غار ننوتل کار یې لمونځ، روژې، تکبیر، تسبیح او تحمید ؤ، ابتغاء لوجه الله عزوجل، او د خرڅ روپی یې یوه نفر ته دا دوی ورکړې چي نوم یې تملیخا ؤ چي هغه به ښار ته ولاړی په پټه، او تملیخا تر ټولو هم ښائسته ؤ او هم دلاوره، او دوی ته به یې ډوډی، وغیره او په مشکوله کي او به ورته راوړې چي ښار ته ورتلو دې سو خپل هغه ښائسته کالي چي د پلار له کوره یې راخستي وه وکښل او زړې جامې د فقیرانو یې واغوستلې چي په داسي کالو کي به مسکینانو او فقیرانو فقرا او سوال ګاوه، خیر ډوډی وغیره به یې رانیول او اوبه به یې هم راواخستلې رفقاؤ ته به راغلی، او په عین حال کي به یې احوال پرسي کوله چي خلک څه وایي زموږ په باره کي فلبثوا في ذالک ما لبثوا. وروسته دقیانوس جبار ښار ته راورسېدی، نو اشراف او وزیران د ښار یې راجمع کړه چي ذبح کړي خوراکي حیوانات د بتانو پر نامه هغو هم داغسي وکړه، نو پټ مؤمنان ډېر په بېره کي واقع سوه او په دغه ورځ تملیخا په ښار کي دی ډوډی، وغیره راتسي. ددې خوا چي تملیخا ملګرو ته ورسېدی ژړل یې او طعام یې هم لږ راخستی ؤ، او ملګرو ته یې خبر ورکړی چي جبار دقیانوس ښار ته راورسېدی، او زموږ تلاش هم جاري ؤ، او له عظماؤ څخه د ښار یې زموږ پوښتنه کول چي هغه ځوانان چي مایه قتل ځنډولی ؤ څه سول، نو له اصحاب کهف په لویه بېره مبتلا سوه او پر سجده پرېوتل، یدعون الی الله ویفزعون او له دې فتنې څخه یې پناه غوښته، نو تملیخا ورته وویل اې ورونو پورته کړي سرونه او ډوډی، وخورئ او

توکل پر خدای ﷻ وکړي هر څه چي واقع کېږي په اراده د خدای ﷻ دي، نو دوی سرو نه خو راپورته کړه او تر ستر ګو يې اوبنکي توېدلې، او څه وړه ډې چي تمليخا راوړي وه هغه يې هم وخوړل. او دا وخت غروب الشمس نژدې ؤ بيا سره کښېنستل يو ګړی يې خبري سره وکړې بيا يې اتفاق پر دې سو چي يو ګړی به بيده سو، خير دا سي بيده سوه چي خدای ﷻ يې پر غوږو مهر ولګاوه و کلبهم باسط ذراعيه، د کهف په دروازه کي سپی هم بيده سو. نو دوی ته درې سوه کاله خوب ورپه برخه کړی رب ﷻ، وهم مؤمنون موقنون او هغه د خرڅ روپۍ يې و سرو ته پرتې وې، خير دوی دي بيده وي، سهار دقيانوس د دوی پوښتنه وکړه چي هغه ځوانان چېري دي خو نه يې کړه پيدا. نو دقيانوس و ځيني وزيرانو ته وويل چي په حال کي د دې فتيه فکرجن يم شايد دوی به له دې سببه ځانونه پټ کړي وي چي دقيانوس مو وژني، دا د دوی جهل دی زه خو دوی ناحقه نه وژنم که دوی توبه د خپل جهالت څخه کښلې وي او زما د خدايانو عبادت ته تسليم سوي وي، نو زه يې نه وژنم. د ښار مشرانو دقيانوس ته وويل چي ته بايد رحم و نه کړې پر دا سي خلکو چي فاجران وه سرکښه وه يعني ستا امر يې نه و مانه او تا اجل او مهلت دوی ته ور کړی، نو که دوی توبه کښلې وای نو خو راغلي به وای اظهار د توبې به يې درته کړی وای او ستا د خدايانو په عبادت به يې پيل کړی وای. تو چي نه راغله نو معلومه سوه چي عاصيان دي ستا له امر څخه. دقيانوس ته ډېر درد ورغلی دستي يې د هغو پلرونه راوغوښتل چي وزيران وغيره وه. پوښتنه يې ځني وکړه چي زامن مو چېري دي؟ الذين عصوا امري چابک يې حال راته ووايا ست کنه قتل کوم مو. هغو ورته وويل چي موږ خو ستا عصيان نه دی کړی. ته ولي موږ وژنې په ګناه د فاسقانو سرکښانو يعني خپل زامن يې ښوول او دوی زموږ له کورو څخه روپۍ وړي دي په بازارو کي د ښاريې مصرف کړي دي، او بيا په کهف کي د بيجلوس د غره پټ سوي دي. نو دقيانوس دوی له قتل څخه معاف کړه، دقيانوس ته چي دا معلومات ورکړل سو امر يې وکړی چي د کهف خوله په خښتو او ډېرو پسي بنده کړئ تا چي په غار کي د ځان سزا غوره کړي د لوږې او تندې مړه سي او دا غار د دوی لپاره قبر سي، دقيانوس په خپله ورسره ؤ د ده دا خيال ؤ چي دوی ويښ دي

او زما خبري اوري. نو توبه به وكاږي او د دوی خدای ﷻ وفات كړي وه يعني وفات د خوب يعني نه اجل مسمی په وفات سره او سپي يې هم په دروازه كې په هغه خوب بيده ؤ. د دقيانوس كاريګران وګمارل د غار خوله يې تپه پسي وتړل.

**سوال**: د دقيانوس چې دوی وليدل او وينې يې هم په خيال ورغله نو ولي يې دوی نه وژل؟

**ځواب**: ظاهرًا خو د دقيانوس عذاب د لوړي او تندي ود دوی ته ورکاوه لكن په باطن كې قدرت د خدای ﷻ كار فرما ؤ چې د غه اصحاب كهف علامه او دليل د بعث بعد الموت وګرځوي د وروسته امتو لپاره وان يبين لهم، ان الساعة لاريب فيها وان الله يبعث من في القبور كما سيئاتي ذالک مفصلاً في قصتهم ان شاء الله تعالى، محمد بن اسحاق رحمه الله وايي چې دوه كسه له اقرباؤ څخه د دقيانوس مؤمنان وه چې ايمان يې له دقيانوس څخه پټ ساتي يو يندروس نومېدی او بل رياش نومېدی مشوره يې سره وكړه چې د دې فتيه نومان او د دوی صورت حال په يوه تخته كې د ميسو نوشته كړي په يو كوچني صندوق كې به يې كېښېږدي او تابوت صندوق به په هغه د يوال كې چې دقيانوس د دوی و كهف ته وهلی پټ كړو، وقالا لعل الله ان يظهر على هؤلاء الفتية قومًا مؤمنين قبل يوم القيامة فيعلم من فتح هذا الكتاب خبر هؤلاء الفتية. نو هغو دوو كسانو دا غسې وكړه. خير د دقيانوس چې تر څو چې ژوندی ؤ وروسته دی او قوم د ده ټوله مړه سوه، نور باچهان يو په بله پسي راغله.

**پوښتنه**: ولي يو باچا د غه د يوال د دقيانوس نه كړی رنګ چې د داخل الكهف د خلګو حال ورته معلوم سوی وای؟

**ځواب**: د نورو باچهانو خو دا خيال ؤ دا خل الكهف نفر به له وخته مړه وي او هډونه به يې خاوري سوي وي، نو يې څه كول چې لڅول يې دوی څه خبر وه چې داخل الكهف نفر به روغ رمټ په خوب بيده وي، والله اعلم بحقيقة الحال.

محمد بن اسحاق وايي چې اخيري باچا د دغو ښارو يو صالح باچا ؤ چې بيدوسيس يې باله. نو د ده باچاهي چې اته شپېته (۶۸) كاله ته ورسېدله په رعيته كي مختلف حزبونه پيدا سوه. د بعضو ايمان پر خدای او پر وحدت د خدای ﷻ ؤ او دا يې وعده وه چې بعث بعد الموت اى البعث الجسماني حق دی او بعضو

احزابو ددې تکذیب کاوه یعنی بعث بعد الموت نسته. دا ددوی اختلاف پر ملک صالح ډېر بد تاثیر وکړی، نو تضرع یې و خدای ﷻ ته وکړه چې ته په خپل قدرت سره دا اختلاف دفع کړې او همېشه به یې ژړل او ډېر محزون به ؤ په دې چې اهل باطل چې منکران وه له بعث بعد الموت څخه ورځ په ورځ ډېرېدل او اهل حق مغلوبه کېدل اهل باطل به ویل چې حشر د ابدانو نسته. کیف یحی العظام وهي رمیم، حتی چې بیدوسیس به بعضې خلکو ته چې ده به خیال د اهل خیر او اهل حق ورته کاوه سرې ورو استاوه هغو به هم ورته ویل چې حشر الاجسام غلطه خبره ده انی یحی هذه الله بعد موتها حتی چې قریب دا وه چې اهل باطل یک لخته پر قدرت راسې او اهل حق به په زاویه د هجران پاته سې او دین د عیسی علیه السلام او د حوارینو دده به له منځه ولاړ سي، نو ملک صالح بیدوسیس په خونه ننوتی او دروازه یې په ځان پسې وتړل او شاهي لباس یې وکښی او ځېږه کالي یې واغوستل او لاندې یې ایرې واچولې او شپه و ورځ یې جد وجهد او تضرع کول او خدای ﷻ ته به یې ژړل او دا به یې ویل چې خدایه تا ته ښکاره دی زیاتوالی د اهل باطل او مغلوبیت د اهل الحق ته یو داسې دلیل او کرامت ښکاره کړې چې اهل باطل په دې پوه سي او یقین یې سي چې موږ پر باطل یو..... بیت:

هر کجا اشک روان رحمت شود ....... هر کجا آب روان سبزه شود
چون فرود آید بلا بی دافعی ....... جز تضرع نیست دیگر کاشفی

نو رحمان رحیم خدای ﷻ چې هلاک د خپلو بندګانو یې نه غوښتی او د ملک صالح دعاء و عوج ته د قبول ورسېدل، نو اراده یې وکړه چې فتیه د اهل کهف دوی راوباسي چې درې سوه (۳۰۰) کاله څه بالا یې دوی په کهف کې ژوندي ساتلي وه او ددوی شان یې ورته معلوم کړی او حجت او دلیل یې وګرځوی پر اهل باطل باندې. یعنې ان الساعة آتیة لاریب فیها. او د صالح بیدوسیس خواست قبول سو ویتم نعمته علیه، نو د یوه سړي د اهل بلد چې مواشي یې درلوده په زړه کې یې دا ورواچول چې دا قدیم دېوال ونړوي او د پسو لپاره یو ګاش ځنې جوړ کړي، نو دوه کسه یې مزدوران کړه ډبرې یې له دېوال څخه راکښلې او ګاش یې لاندې په جوړاوه حتی چې اخیري ډبره چې د کهف پر خوله پرته وه را وکښل د اصحاب کهف

رعب پر واقع سو كما سيأتي في القرآن او وتبنتېدل. او بيا رب ذو القوة المتين محي الموتی اصحاب کهف د ممتد خوب څخه بيد اره کړه او د کهف په منځ کې سره کښېنستل په خوشاله زړه مخان یې وه طبعیت یې ډېر طیب ؤ. یو و بل ته یې السلام علیکم وویل ددوی په خیال دا وه چې یوه شپه موږ بیده ؤ، نه یې په مخانو او نه یې د کالو په رنګو کې ناولده شی معلومېدی پر هغه ډول وه لکه دوی چې بیدېدله، او ددوی په زړو کې اوس هم دا خیال ؤ چې جبار دقیانوس به زموږ په طلب کې وي، نو دوی تملیخا ته چې دوی ته به یې له ښاره ډوډۍ را وړله وویل چې ته چې پرون ماپښین د ډوډۍ لپاره ښار ته تللی وې تا څه واورېدل له خلګو څخه چې زموږ په بار کې جبار دقیانوس ته چا څه راپور ورکړی ؤ او که نه. ددوی دا خیال ؤ چې موږ لکه پخوا چې به بیدېدلو هغومره بیده سوي یو، لکن چونکه بدنو ته لږ درانه په خیال ورغله، نو یې دا خیال سو چې تر پخوا به ډېر بیده سوي یو څکه یې یو له بله پوښتنه کول کم لبثتم كما سيأتي في القرآن. تملیخا ورته وویل چې هنوز د افسوس په ښار کې جبار دقیانوس راپسي ګرځي چې نن یا سبا به مو پیدا کړي یا به مو قتل کړي یا به ددوی بتانو ته سجدې کوو فما شاء الله تعالی بعد ذالک فعل، دوی ته مکسلمینا وویل اې وروڼو انکم ملاقوا الله فلا تکفروا بعد ایمانکم اذا دعاکم عدو الله.

**سوال:** هغه پسو والا یا شپانه ولې ددوی حال په ښار کې نه کړی خپور؟

**ځواب:** شپانه ددوی د رعب په سبب کورته په حال کې د بېهوشۍ او کوبا ورسېدی؟

**سوال:** اصحاب کهف دا ډېری نه ولیدی چې خطیره ځني جوړېدل؟

**ځواب:** دوی خو بیده وه چې دا دېوال دقیانوس د کهف و خولې ته بنا کړی دوی هیڅ نه دي په خبر سوي، خیر وروسته دوی تملیخا ته وویل چې پیسې واخله ښار ته ولاړ سه یو خو پټ معلومات کوه چې زموږ په باره کې دقیانوس څه طرز عمل په مخه اخستی دی او فهم ؤ فکر کوه چې څوک درونه پوهېږي او بل ډوډۍ زیاته راوړه تر بېګاه چې دي راوړه چې نن موږ ډېر وږي یو قدرت

الهي په درې سوه کاله څه بالا کې وربې نه کړه اوس اوس چې راویښ سوه لو یه
يې محسوسه کړه" تمليخا هم د پخوا پر ډول خپل د پلار د کور ښه لباس يې
وکښی او د فقر لباس يې واغوستی او د دودې روپۍ چې د دقيانوس سکه باندې
وه راواخستلې. تمليخا چې تر کهف راووتی د کهف پر شاوخوا يې ډېرې
وليدلې ورته حيران سو چې دا ډېرې د کومې خوا راورل سوي دي خير باک يې نه
په وکړی حتی چې د ښار دروازې ته ورغلی په ډېره بېره کې ؤ چې څوک را خبر
نه سي چې د اصحاب نفر دی.

**تنبيه:** دوی په دې نه وه خبر چې دقيانوس او قوم دده درې سوه کاله کېږي چې
خدای ﷻ هلاک کړي دي. خير تمليخا چې د ښار دروازې ته ورغلی پر دروازه
باندې يې بيرغ د اهل ايمان وليدی ده چې دا وليدل تعجب يې وکړی چې پر دې
دروازه خو پرون د جبار دقيانوس بيرغ رپېدی ودې بيرغ ته يې د سترګو تر کونج
کتله او يمينًا او شمالاً يې کتل د ښار اوضاع بل ډول په خيال ورغله. خير دا دروازه
يې پرېښول بلې دروازې ته ورغلی پر هغه دروازه هم د اهل ايمان بيرغ ؤ. نو په
خيال کې ورغله چې دا هغه ښار نه دی چې تا پرون ورځ ليدلی ؤ او د ښار خلګو ته
يې کتل يو يې هم نه پېژندی، او د ځان سره يې ويل ليت شعري ما هذا پرون ورځ
خو دا بيرغ د مؤمنانو خوبښ ؤ لکن پټ يې ساتی ننه ورځ ښکاره ځلېږي؟! اييا به
يې د ځان سره وويل چې بېهوشه يې بېرته به يې وويل چې بېهوشي نو کومه ده،
خير پټو يې پر سر واچاوه په ښارو کې ګرځېدی، په ښار کې يې له ځينو خلګو
څخه واورېدل چې زما دي قسم وي په رب د عيسى بن مريم نوره يې په زړه کې
بېره پيدا سوه "ورأى انه حيران" يعني په څه نه پوهېږي نو د ښار يوه دېوالـه ته
ودرېدی او داسې يې له ځانه سره وويل چې پرون خو پر مخ د مځکې داسې څوک
نه ؤ چې د عيسى عليه السلام نوم دې اخستی وای. او نن د هر سړي په خوله کې د
عيسى عليه السلام نوم دی او بېرېږي هم نه. وروسته يې له يو ځوان څخه پوښتنه وکړه
ما اسم هذه المدينة يا فتى قال اسمها افسوس، وروسته تمليخا يو دکان ته چې
دوډۍ وغيره يې خرڅول ودرېدی چې ډوډۍ رانسي او هغه روپۍ يې راوکښلې

چې دده سره وې، نو دکاندار ته يې ورکړې چې ما ته دده غو روپو دوډۍ وغيره راکړه، دکاندار چې روپۍ واخستلې چې وه يې کتلې د دقيانوس نوم پر نوشته و، نو دکاندار په تعجب کې شو چې او يو بل دکاندار ته يې ورونږ کړه چې ته راشه د روپۍ وګوره بيا بل ته ئم وئم، نو دوی ټولو اتفاق وکړی چې دې سړي د ډېر وخت پټه خزانه په ځنګله کې پيدا کړې ده، نو تمليخا چې ددوی دا مشورې وليدلې چې دده په باره کې يې کوي، نو ډېر سخت وېرېدی او رېږدېدی او رنګ يې ژړ شو دده ګمان دا و چې دوی په ما پوه شوه او زه يې وپېژندلم او اوس مې ملک دقيانوس ته وړولي او نور خلګ هم راغله له هغو څخه دمخ خلګو پوښتنه وکړه چې دا سړی يعني تمليخا تاسي پېژنئ؟ هغو ورته وويل يا، نو تمليخا دکاندار ته وويل چې زما څخه يې روپۍ واخستلې زما روپۍ بېرته راکړئ دوډۍ مو نه کوم، هغو ورته وويل من انت يا فتى وما شانك والله لقد وجدت كنزا من كنوز الاولين وانت تريد ان تخفيه منا، نو زموږ سره ولاړ شه خزانه راوښيه ته مو هم شريک يې، موږ ستا حال و چا ته نه وايو، او که داسې ونه کړې موږ دې بيايو سلطان د وخت ته دې تسليموو هغه به دې قتل کړي، تمليخا چې ددوی د باچا خبره واورېدله د ځان سره يې وويل چې ته ځنې ببرېدې په هغه اخير الامر اخته شوې د چې ويل دوی مې دقيانوس ته بيايي، نو خلګو ورته وويل چې ای ځوانه والله ستا طاقت نشته چې ته دې زموږ څخه پټه وساتې پيدا کړې خزانه تمليخا حيرانۍ واخستی چې دوی ته څه ووايي او دومره وېرېدی چې خبرې يې هم نه کولې خلګو دده دسمال واخستی په غاړه کې يې ورواچاوه او کشاوه يې په بازارو او کڅو کې د ښار خلګ لوی او کوچني پر راټول وه او دده ته به يې کتل اخير خلګو وويل چې دا ځوان ددې ښار سړی نه دی او نه هم چا تر اوسه پورې په ښار کې ليدلی دی، تمليخا چې دا حالات وليدل د حيرت په درياب کې غرق شو او ډېر ده هم ببرېدی، نو ساکت شو خبرې يې نه کولې، د تمليخا خيال دا و چې زما پلار چې د دقيانوس وزير ؤ او زما ورونه او بعض قومان چې په دې ښار کې دي چې هغه هم د دقيانوس د حکومت مشران ګرځندي ما ووينې او ددې خلګو څخه به مې

خلاص کړي په دې دوران کې چې دی حیران ؤ په انتظار د پلار او وروڼو ؤ خلکو
کش کړی چې راځئ چې و مدیرانو د ښار ته یې وروله. هغه مدیران د ښار یو دوه
کسان وه صالحان چې یو اریوس نومېدی او د بل نوم اشطیوس ؤ. چې تملیخا
یې ورسوتی دده دا ګمان سو چې اوس مې نو دقیانوس ته بیایي ده یمیناً او شمالاً
کتله او خلکو پر خندل لکه په لېوني پسې چې خلګ خاندي او تملیخا به ژړل او
سر به یې د اسمان و خوا ته پورته کړی او داسې به یې ویل "اللهم اله السموات
الاورض افرغ علي صبراً" ماته صبر راکړې او ماته دلاوري راکړې په مخ کې ددوی
او زما تائید وکړې په مخ کې د جبار چې مراد یې دقیانوس ؤ او په زړه کې یې دا
ارمان ؤ چې زه او ورونه سره جلا سوو "یالیتهم یعلمون بما لقیت ولو انهم
یعلمون فیأتوني فنقوم جمیعًا بین یدي الجبار" ولې چې مور اتفاق سره کړی ؤ
چې مور به نه سره جلا کېږو په ژوند او مرګ کې.

**سوال:** دده د زړه په تمنی نو څوک خبر ؤ چې ته یې ترجماني کوې؟

**ځواب:** زه درویش دده د زړه تمنی چې غیب ؤ نه کوم بلکې دا د زړه تمنی
دده خودې ده ملګرو ته په وخت کې د اجتماع ددوی بیان کړې ده. اوس بیرته د
قصې پر لور: نو دی خلکو ورسوتی هغه دوو صالحانو مدیرانو ته چې د افسوس
د ښار کاروایي د هغو په لاس کې وه، تملیخا ته چې دا معلومه سوه چې
دقیانوس ته یې نه بوتلم په هوش کې راغلی او ژړا یې قطع سوه. نو اریوس او
اشطیوس چې هغه روپی چې خلکو دده څخه نیولې وې او پر هغه د دقیانوس
سکه وه ورته یې کتلې و تملیخا ته یې وویل چې خزانه چېرې ده چې تا پیدا کړې
ده اې ځوانه؟ تملیخا ورته وویل چې خزانه مې نه ده پیدا کړې دا زما د پلار د
کور روپی او سکه ددغه ښار د باچا ده ولکنی لا ادري ماشاني وما اقول لکم" یوه
ددغو دوو مدیرانو وده ته وویل چې ته څوک یې؟ تملیخا ورته وویل نه اهلنه
څخه ددې ښار یم. هغو ورته وویل چې د پلار نوم دې څه دی. او څوک تا یاستا
پلار په دې ښار کې پېژني؟ ده خپل نوم وروښوده او خپل پلار یې هم ور یاد
کړی، په ښار کې چې هر څو پوښتنه وکړل سوه چا نه دې پېژندلې او نه یې دده

پلار پېژندي ولي چې درې سوه کاله تېر سوي وه، نو بيوه د هغو دوو اميرانو ورته وويل انت رجل كذاب موږ ته صحيح خبره نه کوې، نو بيا تمليخا حيران سو چې زه څه ورته ووايم. نو سر يې کښته کړی او مخکي ته يې کتل بعضي حاضرانو د مجلس وويل چې دا سړی لېوني دی، او بعضي د موقع حاضرانو وويل چې لېوني نه دی ځان يې داغسي اچولی دی چې زموږ څخه ځان خلاص کړي، بيوه امير ډېر په غضب او په ترش تندي ورته وويل چې موږ به په دې خبرو تا ته خوشي کړو، او نه به ستا د خبرو تصديق وکړو، دا روپۍ چې ستا د پلار روپۍ دي او دا سکه چې د دقيانوس پر نامه ده درې سوه کاله بالا وخت تېر سوی دی او ته اوس هم ځوان يې، نو موږ خطاباسې او په موږ پسخند وهې موږ دا يو سپين ږيري يو او شاوخوا خلگ چې ته يې وينې ددې ښار رئيسان دي او خزانې ددې ښار ددوی په لاس کي دي او زموږ په ټولو حکومتي خزانو کي د دقيانوس د سکې نه درهم سته او نه هم دينار، او زه به امر وکړم چې تا ته عذاب شديد درکړل سي بيا به دې ټينګ وتړو تر هغو چې دا خزانه چې تا پيدا کړې ده را وه يې نه ښيې، تمليخا ورته وويل چې زه په ستاسي څخه پوښتنه وکړم که تاسي ما ته صحيح جواب راکړی زه به هم رښتيا درته ووايم، هغو ورته وويل چې پوښتنه وکړه موږ حال نه در څخه پټوو، تمليخا ورته وويل ما فعل الملك دقيانوس، هغو دواړو اميرانو ورته وويل چې "ليس نعرف اليوم على وجه الارض ملكا يسمى دقيانوس ولم يكن الا ملك هلك من زمان ودهر طويل" او وروسته تر هغه ډېر قرون تېر سوي دي، تمليخا ورته وويل چې زه حيران يم که رښتيا ووايم هيڅوک د خلگو مي تصديق نه کوي، اميرانو ورته وويل چې که مو خبره د منلو وړ وه موږ يې تصديق کوو، نو تمليخا خپل سرگذشت ورته شروع کړی چې موږ يو څو ځوانان وو پر دين چې اسلام دی، او ملک دقيانوس موږ پر عبادت د بتانو او پر ذبح للطواغيت نو موږ ځني وتښتېدلو، نو په کهف د غره ننوتلو تېره شپه هوري بيده سوو سهار چې راويښ سوو ملگرو زه په دوو ښي پسي ښار ته واستولم او د حالاتو د معلومولو لپاره چې دقيانوس زموږ په طلب

پسې دی او که څرنګه . که یې نه منې راسره ولاړ سئ کهف ته د بجلوس غوره زه به په تاسې خپل ملګري ووینم فلما سمع اریوس داد تملیخا خبره وویل یاقوم هذه آیة من ایات الله جعلها لکم علی یدی هذا الفتی. دراځي چې ددې ځوان سره ولاړ سو ملګري به یې هم ووینو . نود تملیخا سره اریوس او اشطیوس ور راهي سول اوبل د ښار یعني افسوس صغیر او کبیر سپاره او پیاده د اصحاب کهف پر خوا تا چې زیارت یې وکړي او اصحاب کهف چې اندېښنه یې دمخه څخه پیدا سوې وه چې تملیخا د دوی په راوړلو کې ډېر وځنډېدی تر پخوا. نو شاید چې تملیخا به عسکرو د دقیانوس نیولی وي، نو دوی په داغه فکر کې وه او ډېر ډله چې تملیخا خو به یې نیولی وي په موږ پسې به هم د دقیانوس فوجیان راسي چې پړغ د ډېرو خلګو یې تر غوږو سو او د آسانو شېشنې یې هم واورېدی چې د کهف و خواته را روان دي. نو ددوی غالب ګمان دا سو چې دا فوجیان د دقیانوس جبار دي را استولي یې دي چې موږ بوزي و هغه جبار ته نو پر لمانځه ودرېدل او یو وبل ته یې وصیت او خدای پامانی شروع کړی او یو وبل ته یې وویل چې پرواه نه لري ورور تملیخا به هم ووینو یعني په مجلس کې د دقیانوس ظالم دوی یو د بله سره ویل چې ورور تملیخا به اوس په حضور کې د جبار دقیانوس ناست وي د دقیانوس به زموږ د ورتګ انتظار باسي چې یو ځای مو قتل کړي، دوی په منځ کې د کهف ناست وه چې اریوس او نور ملګري د هغه یې ولیدل پر دروازه د کهف ولاړ دي دوی خو نه پېژندل او نه یې لیدلي وه. تملیخا اول کهف ته داخل سو او ژړل یې یعني له خوشالیه. نو دوی هم په ژړا سوه. نو یې ملګرو پوښتنه ځنې وکړه چې دا څه قصه ده. نو تملیخا ټوله قصه ورته وکړه نو دوی شکر د خدای ﷻ وواېه، یو پر دې چې موږ یې درې سوه کاله څه بالا په خوب بیده وساتلو ، او بل پر دې چې زموږ مقاومت د جبار دقیانوس سره پر حق ؤ او هم داوس چې یې موږ را وېښ کړو لپاره ددې چې دا درې سوه کاله څه بالا زموږ خوب چې اخ الموت دی دلیل وګرځي پر دې چې بعث الموت حق دی وان الساعة آتیة. نو تملیخا وروسته اریوس کهف ته داخل سو ، ده یو صندوق

ولیدي د مسو چې مهر پر هغه د سپینو زرو وهل سوی ؤ چې یو په یو کښېکړي تر د بر ولاندي ؤ صندوق یې خلاص کړی. یعني یو سړی یې د مشرانو د ښار راوغوښتی چې هغه ور خلاص کړی فعل ذالک لدفع التهمة په صندوق کې دوې تختې د قلعې وې، پر هغو نوشته وه چې (۱) مکسلمینا (۲) فخشلینا (۳) تملیخا (۴) مرطوش (۵) بشرطونس (٦) بیربوس (۷) دینوس (۸) یطنومونس. کانوا فتیة هربوا من دقیانوس الجبار مخافة ان یفتنهم عن دینهم فدخلوا هذا الکهف. بیا چې دقیانوس په خبر سو د کهف خوله وربنده کړه تاچې له لوږي او تندي څخه مړه سي او موږ د دوی حال نوشته کړی تاچې آینده نسلونه په خبر سي. آرینوس چې دا لیکلې وویل حمد د خدای ﷻ یې ووایه، او دده اوو ملګرو ته یې تعجب وکړی وحمد والله على ان اراهم آية البعث بعد الموت او په لوړ اواز یې حمد او تسبیح وویل. وروسته اریوش سره د بعضي عظماؤ کهف ته داخل سوه، نو دوی ولیدل په منځ کې د دوو جانبو د کهف ښائسته او سپین مخان یې وه او کالي یې هم نه وه زاړه سوي فخر اریوس واصحابه سجوداً وحمدوالله الذي اراهم آية من آياته یعني دلیلاً على ان البعث بعد الموت حق وان الساعة آتية. بیا اریوس او ملګرو دده د اصحاب کهف سره خبرې شروع کړې او اصحاب کهف و دوی ته هغه ظلمونه او کړاوونه چې د دقیانوس جبار له خوا پر دوی تېل سوي وه ورته بیان کړه چونکه بیدوسیس الملک د مملکت یو بل ښار ته تللی ؤ، نو اریوس و هغه ته برید یعني استازی ورواستاوه چې ژر راسه لعلک تنظر الى آية من آيات الله جعلها الله على ملكك وجعلها آية للعالمين لتكون لهم نوراً وضياءً وتصديقاً للبعث بعد الموت. فاعجل الى فتية بعثهم الله تعالى یعني من النوم او خدای ﷻ دوی په خوب کې ساتلي وه بالا تر درې سوه کاله، ملک صالح ته چې دا خبر ور ورسېدی ولاړ سو او زړه یې ځای ته ورغلی او هغه غم چې دوی ورسره دست و ګریبان ؤ کماهو من قبل زائل سو. فقال احمدک رب العالمين رب السموات والارض واعبدک واسبح لک. زما سره دې وپر احسان وکړی او پر ما دې رحم وکړی او هغه نور د

اسلام ورک نه سو چي تا زما آبا او اجداد ته ورکړي ؤ خصوصاً للعبد الصالح الملک قتسطیطونس، بیدوسیس الملک وروسته تر خبر رسېدلو سمدلاسه سفر کوتاه کړی او د افسوس دار الملک ته خواته راهي سو، راوي وايي چي ملک الصالح چي افسوس ښار ته راورسېدی سم دستي د کهف سره د وزیرانو او نورو اکثره ښار وال د افسوس هم ورسره راروان سوه، اصحاب کهف چي بیدوسیس ولیدی خوشاله سوه چي مسلمان سلطان مو د افسوس ښار ولیدی وخروا سجداً علی وجوهم، او بیدوسیس ورته ولاړ ؤ، بیا یې په غاړه کي لاسونه سره واچول اصحاب کهف پر ځمکه ناست وه "یسبحون ویحمدون" وروسته اصحاب کهف بیدوسیس ته دعا په دغو الفاظو وکړه "نستودعک الله والسلام علیک ورحمة الله وحفظک الله ﷻ وحفظ ملکک ونعیذک بالله من شر الانس والجن" بیدوسیس ورته ولاړ ؤ اصحاب کهف پر خپلو ځایو پرېوتل بیده سوه وقبض الله ارواحهم بالاجل المقدر لهم، بیدوسیس چي وکتل ټوله مړه وه، انا لله وانا راجعون یې ووایه او ددوی کالي یې پر سم کړه او امر یې وکړی چي هر یوه ته د سرو زرو تابوت ورجوړ کړئ، تر ماښامه سلطان صالح او نور کـان دالته د کهف په خوله کي شپه تېره کړه د شپې چي بیدوسیس د خوب په دریاب کي غرق سو اصحاب کهف یې په خوب ولیدل هغو ورته وویل انا لم نخلق من ذهب ولا فضة ولکن خلقنا من تراب نعیر فاترکنا في الکهف علی تراب حتی یبعثنا الله من التراب.
بیدوسیس امر وکړی چي د کهف پر خوله دي عظیم الشان مسجد جوړ کړل سي چي زائرین لمونځونه پکښي کوي، او دا ورځ یې ورځ د عید یعني اختر وټاکل په هر کال کي په دغه تاریخ زائرین په زرګونو جمع کېدل.

**درویش وایي**: چي دا ؤ تفصیلي بیان د اصحاب کهف، والعلم عند الله ﷻ تفسیر حسیني هم ورته قصه ددوی کړې ده لکن ډېره مختصره، اوس بیرته د قرآن کریم د آیاتو د تفسیر پر خوا ان شا الله تعالی والتوفیق من الله ﷻ.

فَضَرَبْنَا عَلَىٰٓ ءَاذَانِهِمْ فِى ٱلْكَهْفِ سِنِينَ عَدَدًا ﴿١١﴾

موږ ولګاوه پر غوږو ددوی یعني یو حجاب چي مانع د وصول د اصواتو

وګرځي ددوی غوږو ته.

**پوه سه:** چي دا آيت بنا دی پر تشبيه د نوم ثقيل چي مانع له رسيدلو څخه د آوازو وي په ضرب الحجاب سره "في الكهف" ظرف دی د "ضربنا" لپاره ظرف مكان "سنين" ظرف زمان دی د ضربنا "عدداً" ای ذوات عدد چي درې سوه نهه (۳۰۹) كاله وه كما سيئاتي.

**پوه سه:** چي وصف د "سنين" په "عدداً" سره لپاره د تكثير دی وهو الانسب بكمال قدرته تعالى في الانامة بالمقدار المذكور.

ثُمَّ بَعَثْنٰهُمْ لِنَعْلَمَ اَیُّ الْحِزْبَيْنِ اَحْصٰى لِمَا لَبِثُوْۤا اَمَدًا ﴿۱۲﴾

يعني را ويښ مو کړه له خوبه، په دې کي اشاره ده ودې ته چي را ويښول له نوم ثقيل څخه لكه بعث بعد الموت دی لانهم قالوا النوم اخ الموت، په لوازمو كي چي ژوند يې معطل سي او لكه جماد داسي وګرځي، پوه سه! چي علم دلته په معنى د امتحان دی "ای الحزبين" كوم يو له دوو ډلو څخه چي اندازه وبعث ته ددوی لګول او يا تفويض د علم يې و خدای ﷻ ته كاوه كما سيئاتي. له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چي يو حزب پخپله فتيه وه چي ويل به يې وروسته تر ويښيدلو يوماً او بعض يوم كما سيئاتي. او بل حزب يې هغه ملوک دي چي ملكاً بعد ملكاً پر ښار د افسوس سلطنت كاوه كما مر في تفصيل القصة "احصى" فعل ماضي ده يعني ضبط كوي يې دی "لما لبثوا" يعني لبث ددوی، نو كلمه د ما مصدريه ده "امداً" از روی غايت او پای. نو د اصحاب كهف لپاره چي مؤمنان وه خپل عجز ښكاره سي و يفوضوا ذالک الى العالم كما سيئاتي. او اخير الامر به دوی ته خپل حال ورمعلوم سي چي خدای ﷻ ددوی ابدان څرنګه درې سوه نهه كاله ساتلي وه له تغير څخه. نو ايمان به يې زيات سي، او د مؤمنانو د هغې زمانې لپاره به اظهار د لفظ الهي وګرځي او آية بينة به وګرځي پر كفارو د هغې زمانې چي له بعث بعد الموت څخه يې انكار كاوه كما مر في تفصيل القصة.

نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ نَبَاَهُمْ بِالْحَقِّ ط

موږ تاته يا محمد (ﷺ) قصه كوو او تاته بيان كوو او تا خبروو "نبأهم" ای

خبر اصحاب الکهف والرقیم "بالحق" صفت دی د مصدر محذوف ای نقص قصصا متلبسًا بالحق، یعني داسي قصه نه ده لکه قصه کونکي چي قصي کوي حق او باطل پکښي ګډوډ وي.

## إِنَّهُمْ فِتْيَةٌ آمَنُوا بِرَبِّهِمْ وَزِدْنَاهُمْ هُدًى ﴿١٣﴾

دوی یوه ډله د ځوانانو وه چي ایمان یې راوړی وٚ پر رب ددوی یعني بالتوحید بدون الشریک له لا في الذات کما یقوله الثنویة ولا في المعبودیة کما یقوله الوثنیة یعني بت پرستان ؛ او زیات کړی وٚ موږ دوی ته هدایت یعني ثبات پر دین د اسلام. او سره ددې چي دوی د ډېرو کړاوونو سره مخامخ سوه د جبار دقیانوس له خوا څخه بیا هم خدای ﷻ دوی ته توفیق د ثبات پر دین قوي ورکړی.

**فائده:** په دې کي اختلاف دی چي دوی د کومي زماني مؤمنان وه. بعض علماً وایي چي دوی دمخه تر عیسی بن مریم وه او عیسی علیه السلام خبر ددوی و قوم ته ورکړی وٚ او له خوبه راوېښېدل ددوی وروسته تر عیسی علیه السلام یعني في زمان الفترة بین عیسی و محمد علیهما السلام . او بعض مفسرین وایي چي دوی پر دین د عیسی علیه السلام وه قال الطبري وعلیه اکثر العلماً.

**درویش وایي:** چي دا د هغه سوال ددوی اجابت وٚ چي دوی په کهف ننوتل او داسي خواست یې وکړی "ربنا آتنا من لدنک رحمةً وهیئ لنا من امرنا رشداً" ولي چي دوی په هغه وخت کي چي دا سوال یې کاوه ایمان بالغیب وٚ بالانبیاً والبعث بعد الموت، نو خدای ﷻ و دوی ته زیات کړی هغه هدایت بالغیب چي درې سوه نهه کاله یې په خوب کي وساتل او ځواني یې پر ځای وه او کالي یې هم نه وه خیرن سوي. نو ایمان یې د عیان درجې ته ورسېدی. او غیب چي ایمان پر بعث بعد الموت وٚ په سترګو یې په ولیدی. وهذا معنی الحدیث القدسي "من تقرب الی شبراً تقربت الیه زراعًا الی اخیر الحدیث".

## وَرَبَطْنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ إِذْ قَامُوا

او قوي کړه موږ ددوی زړونه چي هجرت د اقرباؤ مور او پلار او له نعمتو څخه یې وکړی یعني ښه نعمتونه او ښې ښې جامې ور رسېدلې، ولي چي دوی د

دقيانوس د وزيرانو زامن وه هغه يې تولـه پـه زاويـه كې د هجران وګرځول او بې خوفه يې اظهار د توحيد د معبود بالحق وكړى "اذقاموا" چې دوى ودرېدل په حضور كي د دقيانوس جبار چې هغـه دوى تـه سخت عتـاب وركړى پـر ترك د عبادت الاصنام او دوى هيڅ پرواه پـه ونه كړه بلكې اظهار د حق يې ورتـه وكړى په حديث صحيح كې راغلي دي چې عليه الصلوة والسلام وايي "افضل الجهاد كلمة الحق عند سلطان جائر" بهترين جهاد خبره د حق ده په حضور كې د هغې چې ظالم وي، ددې سبب دادى چې مجاهد ظاهري په منځ كې د خوف او رجاء دى او سلطان جائر ته حق ويل سل په سل كې ځان و هلاكت ته سپارل دي.

فَقَالُوا رَبُّنَا رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

دوى وويل (يعني په حضور كې د دقيانوس الجبار چې دوى يې امر كړى په عبادت سره د بتانو سره د تهديد د قتل) چې زمونږ رب يعني المعبود هغه ذات دى چې خالق د اسمانو او ځمكې دى يعني لانعبد الاصنام التي هي جمادات.

لَنْ نَّدْعُوَاْ مِنْ دُوْنِهٖٓ اِلٰهًا لَّقَدْ قُلْنَآ اِذًا شَطَطًا ﴿۱۴﴾

مونږ عبادت نـه كـوو پرتـه لـه هغـه ذاتـه د هيڅ معبود لان كل ماسـواه من المعبودات باطل سوآ كان من الجمادا او غيرها. كه چيرې بل معبود مونږ ووايو بالفرض، نو مونږ داسې خبره وكړه چې ذا شطط ده يعني التجاوز عن الحق. نو شطط صفت د قول محذوف دى په تقدير د مضاف او يا قول عين شطط دى مبالغةً نحو زيد عدل، وهذا المجاز شائع في لغة العرب.

هٰٓؤُلَآءِ قَوْمُنَا اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اٰلِهَةً

دغه كسان يعني اهل بلدة افسوس يعني اكثرهم التابعين للملك دقيانوس الجبار، زمونږ قوم دى يعني سره هم نسب يو چې دوى ګرځولي دي ماسوى له خداى ﷻ معبودات چې بتان دي.

**يوه سه**: چې هؤلآ مبتدا ده او قومنا يې عطف بيان دى او اتخذوا يې خبر دى په تعبير د اسم الاشارة تحقير ددوى غرض دى ...... مثنوي:

پیش چو بی پیش سنگ نقشی کنند ..... ای بسا گولان که سرها مینهند
دیو الحاح غوا تیت میکند ..... شیخ الحاح هدایت میکند
(دیو یعني شیطان. الحاح کوشش. شیخ. پیر طریقت)

لَوْلَا يَأْتُونَ عَلَيْهِم بِسُلْطَٰنٍۭ بَيِّنٍ

ولې دوی راتګ نه کوي علیهم ای علی الوهیت تلک الاصنام په یو دلیل ظاهر یا عقلي یا نقلي.

**یوه سه**: چې لولا په معنی د هلا دی (چرانمی آرند کافران) دا آیت انکار او تهدید دی پر بت پرستانو.

فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا ﴿۱۵﴾

څوک دی لوی ظالم چې پر خدای جل جلاله دروغ وایي یعني چې خدای جل جلاله لره شریک په معبودیت کې بولي یعني بتان.

**یوه سه**: چې استفهام لپاره د انکار دی، یعني تر دغو کسانو لوی ظالم نشته یعني هم دغه کسان لوی ظالمان دي، نوعذاب یې هم اشد دی تر هر ظالم.

وَإِذِ اعْتَزَلْتُمُوهُمْ وَمَا يَعْبُدُونَ إِلَّا اللَّهَ

هغه وخت چې تاسې ګوښه سواست له دوی څخه یعني ددوی له عقیدې څخه د شرک او اراده د اعتزال جسماني هم لرئ.

**یوه سه**: چې دا خطاب د اصحاب کهف خپل تر منځ دی، د رویش وایي چې د اعتزال جسماني قید غوارې تاچې جزا یعني قولهم فأووا الی الکهف پر مرتب سي فافهم.

**یوه سه**: چې "وما یعبدون" عطف دی پر ضمیر منصوب یعني هم، و کلمة ما مصدرية والمعنى او له عبادت څخه د غیر الله.

فَأْوُۥٓا إِلَى الْكَهْفِ

نو پناه یوسئ و کهف ته د غره، په دې آیت کې اشاره و دې ته ده چې اعتزال د عقیدې اعتزال د جسم هم غواړي په مجمع الفتوی کې وایي چې یو سړي د امام

رستغفني ځځه پوښتنه وکړه چي نکاح د اهل سنتو د اهل اعتزال سره روادی؟ ده په ځواب کي ورته وویل لایجوز. لان الاعتزال في العقيدة يقتضي الاعتزال الجسماني، يعني په نکاح ددوی سره خو اجتماع جسماني ستله.

يَنْشُرْ لَكُمْ رَبُّكُمْ مِّنْ رَّحْمَتِهٖ وَيُهَيِّئْ لَكُمْ مِّنْ اَمْرِكُمْ مِّرْفَقًا﴿۱۶﴾

دا ځواب د امر دی والمعنی فراخي به جوړه کړي رب ستاسي له رحمت څخه خپل في الدنيا والآخرة او اسانه به کړي خدای ﷻ ستاسي له حال څخه چي تهښته د دين په سبب د داسي شي چي تاسي نفع پر واخلئ يعني رزق وغيره.

**سوال**: دا غيب حال دوی ته څه معلوم سو؟

**ځواب**: له قوت ځځه د اعتقاد او د يقين د خدای ﷻ پر رحمت باندي، له دي سببه په حديث صحيح کي راغلي دي چي "ادعوا الله وانتم موقنون بالاجابة. لان القدرة عامة والرحمة شاملة والله يعلم بوطن عباده" شيخ شيرازي وايي:

ای کریمی که از خزانه غیب ......... گبرو ترسا وظیفه خور داری
دوستان را کجاکنی محروم ......... تو که بادشمنان نظر داری

وَتَرَى الشَّمْسَ اِذَا طَلَعَتْ تَّزٰوَرُ عَنْ كَهْفِهِمْ ذَاتَ الْيَمِيْنِ

او ته وينې (يا محمد ﷺ) او يا هغه سړی چي صالح د خطاب وي او رويۀ له ده څخه راتلای سي) لمر چي د مشرق له خوا راوخېږي (پوه سه! چي د کهف خوله د جنوب و خواته ده) "تزاور" اصل يې تتزاور ؤ يوه تا يې حذف کړه، مېلان کوي او ګوښه تېرېږي له غار څخه ددوی (الاضافت اليهم لادنی ملابسة. ولي غاره خو په حقيقت کي غر دی لکن دوی اوس پکښې استوګنه لري) و جهت ته: يمين الكهف عند توجه الداخل الى قعر الكهف چي د داخل د مغرب خوا ده، نو شعاع د لمر پر دوی نه واقع کېږي چي ازار وررسوي.

وَاِذَا غَرَبَتْ تَّقْرِضُهُمْ ذَاتَ الشِّمَالِ

"واذا غربت" ای تراها عند غروبها "تقرضهم" ای تجاوز عنهم و جهت ته د شمال د کهف چي جانب د مشرق دی.

**درویش وايي:** چي ددې مقام فهم اسانه دی چي خوله د کهف جنوب سي.

**پوه سه:** چي بعض مفسرین لکه قتیبه رح ددې مقام حل د ریاضي پر مدار د لمر بیان کړی دی. لکن نور علما دا توضیح المقام د قتیبه خطأ بولي. او روح البیان وايي چي دا تجاوز د لمر ددوی له کهف څخه ذات الیمین او ذات الشمال خرق العادة بولي کرامةً لهم. او مظهري رح وايي چي صرف د لمر له دوی څخه په قدرت د خدای ﷻ دی او دلیل یې دا قول د خدای ﷻ گرځولی دی چي رابسي "ذالک من آیات الله" یعني دا تېرېدل د لمر په وخت د طلوع او غروب ذات الیمین والشمال له عجائبو څخه د صفت د خدای ﷻ ودلالات قدرته التي یعتبربها.

**پوښتنه:** چي د مخه په قصه کي تېره سوه چي دقیانوس د دوی د کهف خوله بنده کړه د ډبرو په دېوالـه، نو د کهف خوله چي بنده وي، نو ورانگي د لمر خو تر باب مسدود نه سي ورننوتلای حتی یحتاج الی التزاور والقرض؟

**ځواب:** دوی چي په کهف کي داخل او بیده سوه دقیانوس هغه وخت په دوره نورو ښارو ته تللی وَ والله اعلم چي ده څو میاشتي په دوره کي تېري کړي وې هغه وخت خو د کهف خوله خلاسه ولاړه وه او تزاور او قرض ته یې ضرورت درلودی، دقیانوس چي وروسته تر تلاش ددوی ځای پیدا کړی او بند یې کړی په دېواله سره د ډبرو او ختو وقد مر بیان ذالک في تفصیل القصة.

**درویش وايي:** چي روح المعاني هغه توجیه د ریاضي د مدارات راوړي ده په نقل سره د عبد الله بن مسلم اوابن عطیه. لکن زجاج ذالک البحر الزاخر وايي چي دا توجیه پر طرز د ریاضیینو صحیح نه ده بلکي اصل وجه د تزاور او قرض یمینًا او شمالاً صرف قدرت د خدای ﷻ دی علی منهاج خرق العادة کرامةً لهم.

وَهُمْ فِي فَجْوَةٍ مِّنْهُ ۚ ذَٰلِكَ مِنْ آيَاتِ اللَّهِ ۗ مَن يَهْدِ اللَّهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِ ۖ

او اصحاب کهف په فراخه ځای کي د کهف دي نه په غار کي تکلیف ورسېږي نه د هوا تعضن، کلمه د من موصوله مبتدأ متضمن معنا لره د شرط ده ځکه یې په خبر کي فا راوړه او عائد و منْ ته محذوف دی ای من یهدیه یعني چا ته چي توفیق د هدایت خدای ﷻ ورکړي، نو هغه لار ته د حق رسېدونکی دی او دغه فلاح د عذاب اخروي.

**درويش وايي:** چي ددې آيت مصداق اصحاب كهف دي، ولي سره ددې چي دوى د وزيرانو زامن وه او پلرونه يې اتباع د دقيانوس وه په بت پرستۍ بيا هم دوى ته خداى جل جلاله توفيق د راه راست او د اسلام وركړى چي په هيڅ كراو سره له هغې لارې څخه برگشته نه سوه كمامر تفصيله.

# وَمَنْ يُّضْلِلْ فَلَنْ تَجِدَ لَهٗ وَلِيًّا مُّرْشِدًا ﴿۱۷﴾

كه څوک خداى گمراه كړي ته نسي پيدا كولاى ناصر دده او لارښوونكى.

# وَتَحْسَبُهُمْ اَيْقَاظًا وَّهُمْ رُقُوْدٌ

ستا خيال پر كيږي ايها المخاطب يعني ان رئيتهم چي دوى ويښ دي ولي چي سترگي يې روڼې دي او يوې خوا بلې خوا ته گوري او په حقيقت كي دوى بيده دي پوه سه: چي "رقود" جمع د راقد ده لكه قعود چي جمع د قاعد ده.

# وَّنُقَلِّبُهُمْ ذَاتَ الْيَمِيْنِ وَذَاتَ الشِّمَالِ

او موږ يې يعني بېله ارادې ددوى يعني مرةً للجنة ذات اليمين ومرةً ذات الشمال، نو په كال كي دوه واره. او ابن عباس رضي الله عنهما وايي چي په كال كي يو وار له يوه جانب څخه و بل جانب ته اړوي لئلا تاكل الارض لحومهم.

**پوښتنه:** خداى جل جلاله چي پر دې قادر دى چي درې سوه نهه كاله يې دوى په خوب كي وساتل، نو پر دې خو هم قادر چي بېله تقلبه دې مځكه ددوى غوښې نه وخوري فما معنى التعليل في قول ابن عباس رضي الله عنهما؟

**ځواب:** دا بناً پر عالم اسباب دي.

# وَكَلْبُهُمْ بَاسِطٌ ذِرَاعَيْهِ بِالْوَصِيْدِ

او سپى ددوى غځولي يې دي لاسونه په فنا كي د دروازې.

**پوه سه:** چي نحات د كوفې مطلقاً عمل د اسم فاعل روا بولي. يعني كه په معنى د حال يا ماضي يا استقبال وي، او نحات د بصرې يې عمل مشروط بولي چي اسم فاعل په معنى د حال يا استقبال وي، نو دوى باسط دلته حكايت د حال ماضيه بولي يعني ماضي يې حاضر في الحال گرځولې ده وذالک شائع في العربية فافهم.

**فائده:** عكرمه رحمه الله له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت كړی دی او اكثره مفسرين هم پر دغه مسلك دي چي كلب په آيت كي په معنی معروف سره دی چي په پښتو يې سپی بولي، او يو شاذ روايت د ابن جريج څخه منقول دی چي دلته كلب په معنی د اسد دی يعني زمری.

**درويش وايي:** چي دا روايت له تفصيل څخه د قصې مخالف دی والله اعلم.

**فائده:** مشهوره داده چي نوم يې قطمير و او له حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دی چي نوم يې زبان و، اوزاعي رحمه الله وايي چي نوم يې تقور و، او سدي رحمه الله وايي چي نوم يې تور و، او كعب رحمه الله وايي چي نوم يې صهبا و، خالد بن معدن رحمه الله وايي چي هيڅ شی له دوابو څخه په جنت كي سوی له كلب څخه د اصحاب كهف نسته... بيت:

پسر نوح با بدان بنشست خانه نبوتش گم شد
سگ اصحاب كهف روزی چند پی پاكان گرفت مردم شد

لَوِ اطَّلَعْتَ عَلَيْهِمْ لَوَلَّيْتَ مِنْهُمْ فِرَارًا وَلَمُلِئْتَ مِنْهُمْ رُعْبًا ﴿١٨﴾

كه ستا اطلاع راسي پر دوی او ورته وګوري و دوی ته يا محمد (صلی الله عليه وسلم) ته به شا وګرځوې دوی ته (پوه سه: چي فرارًا منصوب دی مفعول مطلق دی لان الفرار نوع من التولي كما لايخفی. نو حاصل د توليت هربت منهم) او ستا زړه به ډك سي په بيره له دوی څخه. قيل لاجل وحشت المكان. او كلبي رحمه الله وايي چي په دې سبب چي ددوی سترګي لكه د ژوندو خلاصي وي ستا به دا خيال وي چي اوس به زما سره خبري وكړي. وقيل غير ذالك. والصحيح دوی ساتلي دي له دخول څخه د بوچا پر دوی بالقاء الرعب في قلب من يريد الدخول عليهم. له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چي موږ د معاويه رضي الله عنه په ملګری چي د غزوة المضيق په نامه شهرت لري د روم خوا ته تللي و. نو معاويه رضي الله عنه چي ددوی پر كهف تېرېدی وه يې ويل چي كاشكي موږ دا د كهف دروازه ورخلاصه كړې وای او اصحاب كهف مو ليدلي وای، نو ابن عباس رضي الله عنهما ورته وويل "قد منع من ذالك من هو خير منك يعني رسول الله صلی الله عليه وسلم حيث قال الله تعالی لواطلعت الآية خير معاويه رضي الله عنه دده خبره ونه منل يو څو كسه يې ور واستول چي تاسي ورسئ د غار خوله خلاصه كړئ او

اصحاب کهف وګوري، دوی چې د کهف دروازه خلاصوله یو باد خدای ﷻ پیدا کړی چې اور پکښې و تیوله استولي کسان یې وسول، ددې واقعې روایت ابن ابي شیبه او ابن المنذر او ابن ابي حاتم رح کړی دی.

وَكَذَٰلِكَ بَعَثْنَٰهُمْ لِيَتَسَآءَلُوا۟ بَيْنَهُمْ ۚ

او دغسې (لکه مو ړ چې دوی بیده وساتل په کهف کې مدة طویلة یعنې درې سوه نهه کاله، او بدنونه ددوی مو وساتل مع طول الزمان) دوی مو راوپاځول له دغه اوږده خوب څخه (چې کټ مټ لکه مرګ یعنې آیة علی کمال قدرتنا) چې دوی یو له بله څخه پوښتنه وکړي، نو به دوی په خپل حال وما صنع الله بهم کما مر في القصة الطویلة. نو یقین به یې نور هم زیات پر قدرت د خدای ﷻ راسي او دوی ته به پوره بصیرت او پوهنه په بعث بعد الموت کې حاصله سي، او شکر به ووایي د ما انعم الله علیهم.

**درویش وایي:** چې پر دې تقریر لام جاره لپاره د علت د بعث دی. لکن بغوي وایي چې دا لام لام العاقبة دی کما في لهم لدوا للموت وابنوا للخراب و نسب هذا القول الی علي كرم الله وجهه. بغوي رح وایي چې دوی خو د سوال لپاره خدای نه وه بعث کړي بلکې ددې لپاره وه چې د قدرت عظیمه د خدای ج دلیل وګرځي کما مر في قصتهم.

قَالَ قَآئِلٌ مِّنْهُمْ كَمْ لَبِثْتُمْ ۖ

وویل یو قائل له دوی څخه چې رئیس ددوی و مکسلمینا څومره وخت به تېر سوی وي زمونږ په خوب کې، ولې چې د هغه سائل په خیال خوب څه دراز ورغلی تر معتاد، او بعض مفسرین وایي چې دا پوښتنه یې ددې لپاره وکړه چې بعض لمونځونه خو به نه وي راڅخه قضا سوي.

قَالُوا۟ لَبِثْنَا يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ ۚ

دوی وویل مونږ په درنګ کړی وي په کهف کې یوه ورځ یا بعض د یوې ورځې، ولې دوی چې کهف ته داخل سوه سهار وختي و او د ماز دیګر په وخت کې راویښ سول لمر ته یې فکر و دوی چې ویل لمر به لوېدلی وي، نو یوه ورځ

يې ذكر كړه وروسته چې يې ولمر ته وكتل لږ وخت د لوېدلو يې پاتې ؤ، نو يې وويل "اوبعض يوم".

**يوه سه:** چې دا جواب يعني بعض يوم مبني دى پر غالب الظن ددوى، نو دا دليل دى پر دې مسئله چې قول په غالب الظن روا دى كما لمجتهدى الامة في المسائل القياسية خلافًا للوهابية والسلفية واصحاب الظواهر الحديث، اخير مكسلمينا چې رئيس ددوى ؤ وويل چې اتفاق پر دې خبره وكړئ.

قَالُوا رَبُّكُمْ أَعْلَمُ بِمَا لَبِثْتُمْ

چې خداى جل جلاله ستاسې ښه خبر دى، كلمه د "ما" مصدريه ده اى بلبثكم.

فَابْعَثُوا أَحَدَكُمْ بِوَرِقِكُمْ هَٰذِهِ إِلَى الْمَدِينَةِ

نو واستوئ يو ستاسي سره د روپو او نقدو چې دغه دي و ښار ته يعني افسوس، يعني تمليخا چې د ډوډۍ راوړل له ښار څخه د هغه پر ذمه وه.

**يوه سه:** چې ورق سپينو زرو ته وايي چې سكه پر وي، دغه چې دوى له پلرو څخه راختي وه كماهر في القصة او دا ورق مضروب په نامه د دقيانوس وه.

**يوه سه:** چې زود چې يې له كوره را اخستې منافي د توكل سره نه دى بل هو ديدن المتوكل.... مصرع: كسب كن پس تكيه بر جبار كن.

فَلْيَنْظُرْ أَيُّهَا أَزْكَىٰ طَعَامًا

بحذف المضاف اى اهل المدينة يعني طعام يې حلال دى ولې چې په مدينه كي طعام خرڅونكي مؤمنان وه چې ځانونه يې پټ ساتل چې طعام به يې د غصب او سرقې نه ؤ او بعض وايي چې هغه ارزانه طعام وي.

فَلْيَأْتِكُمْ بِرِزْقٍ مِنْهُ وَلْيَتَلَطَّفْ وَلَا يُشْعِرَنَّ بِكُمْ أَحَدًا ﴿١٩﴾

اې د پېرو نرمي په معامله كي يا كوم دكاندار يې خطا نه باسي. او يا دي تكلف پر ځان د پټېدو كوي چې څوك يې ونه پېژني، او نه خبره وي په ځان هيڅ څوك.

إِنَّهُمْ إِنْ يَظْهَرُوا عَلَيْكُمْ

په تحقيق كه اهل د ښار چې د جاهليت نوم يې افسوس ؤ او اسلامي نوم يې

وروسته طرطوس وګرځېدي، ومعنی د انهم ان یظهر واعلیکم چي تاسي ګډ وه
پېژندلاست چي دا هغه تبتېدلي کسان دي.

**يَرْجُمُوكُمْ أَوْ يُعِيدُوكُمْ فِي مِلَّتِهِمْ وَلَنْ تُفْلِحُوا إِذًا أَبَدًا ۝**

په ډبرو به مو سنګسار کړي "او یعیدکم" ای یصیرکم جبراً في ملتهم. او
هرګز فلاح نسي پیدا کولای که ددوی په ملت کي داخل سي.

**پوښتنه**: اصحاب خو د سره ددوی په ملت کي نه وه، نو د اعادت څه معنی ده؟

**ځواب**: اعاده دلته په معنی د تصییر ده ای یصیرکم جبراً في ملتهم.

**فائده**: بعض متقدمین د علماً کرامو وایي چي ما حساب کړه حروف د قرآن
مجید نیمی د قرآن په قول کي چي سورة کهف کي واقع دی "ولیتلطف" کي
پیدا کړی لام ثاني یې نصف اول راغلی او طاً او فاً په نصب ثاني کي حساب
سوه کذا في البستان. وهذا من لطائف ذهنه الوقاد رحمه رب الارباب.

**وَكَذَٰلِكَ أَعْثَرْنَا عَلَيْهِمْ لِيَعْلَمُوا أَنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ**

داغه رنګه (لکه موږ چي بیده کړي وه زماناً طویلاً (۳۰۹) بیا راویاڅول تا
چي دوی ته بصیرت زیات سي په قدرت کي د خدای ﷻ) داغه رنګه موږ خبر
کړه یعني اهل د افسوس المؤمنین والکافرین. چي پوه سي هغه خلګ چي
هغوی موږ پر دوی مطلع کړه. دا چي د الله تعالی وعده بالبعث بعد الموت حق
ده. لان نومهم مدة طویلة (۳۰۹) بیا وروسته بیداري ددوی لکه ځان د هغو
خلګو چي مړه سي او بیا په قیامت ژوندي سي.

**وَأَنَّ السَّاعَةَ لَا رَيْبَ فِيهَا**

او قیامت موعود هیڅ شک نسته پکښي او له دائره څخه د امکان او د قدرت
عظیمه د خدای ﷻ وتلی شی نه دی. فان من توفی نفوس اهل الکهف یعني بالنوم
الطویل دري سوه نهه کاله په داسي شان چي ابدان یې له تهوک کېدلو څخه
خلاص وه حتی چي جامې یې پر خپل ځان باقي وې او حواس یې ټول روغ رمټ وه،
او بیا رب ﷻ روحان ددوی له خوب څخه بیداره کړه هغه ذات قادر دی چي تول له

انسانان دي د مرگ په خوب بيده کړي او روحان دي ځني قبض کړي او بيا وروسته دي ابدان ددوی سره جمع کړي که څه هم اجزاء د بدن يې پوسيده شوي وي او روحان مقبوضه دي ورته ايله کړي عند النفخة الثانية فاذا هم قيام ينظرون.

**درويش وايي:** چې قصه د تمليخا چې د دوی لپاره افسوس ته ولاړی او بيا خلگ د افسوس چې په هغه وخت کي اکثريت د مؤمنانو وو پر اصحاب کهف مطلع کړه او نور احوال په قصه طويله کي تېر شوه فتذکر هداک الله.

**تاريخ:** د سهار اذانونه د يکشنبې ورځ د محرم الحرام د مياشتي دوولس تاريخ دی او سنه (۱۴۳۰) هجري قمري ده چې درويش دغه بيان نوشته کړی اللهم اغفرلي ذنوبي کلها واغفر لوالدي ووفقني لاتمام هذا التفسير بالخير والعافية بفضله تعالى وکرمه وما ذالک على الله بعزيز.

## إِذْ يَتَنَٰزَعُونَ بَيْنَهُمْ أَمْرَهُمْ

چې ددوی نزاع وه په خپل منځ کي. دا ظرف دی اعثرنا. يعني اعثرناهم حين يتنازعون. قال عکرمه رحمه الله چې ددوی تنازع په امر کي د بعث بعد الموت وه، يوې ډلي چې کافران وه ويلې چې بعث يوازې د روحانو دی دون الاجساد او مسلمانانو ويل چې بعث د ارواح او اجسادو دواړو دی جميعاً.

**درويش وايي:** چې ددې مذهب تائيد قرآن کريم او احاديث نبويه هم کوي، ولې د جنت احوال چې په هغه کي د هر قسم مېوې شته من التمر والعنب والتين وغير ذالک. او حوري زوجات شته وغير ذالک دا ټول خو د ارواح سره اجساد په کار دي دون الارواح فقط کما لا يخفى، نو اصحاب کهف چې لنه اوږده خوبه (۳۰۹) خدای جل جلاله راويښ کړه، نو په خلگو يې بعث د ارواحو والاجساد دواړو وليدی. يا اختلاف ددوی په امر کي د فتيه وو هغه وخت چې خدای جل جلاله مړه کړه ثانياً بالموت، بعضو به ويل چې اوس مړه شوه او بعضو به ويل چې مړه نه دي بلکې لکه د مخه چې بيده وه اوس هم بيده شوه. ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې تنازع ددوی په ابادی کي وه کما يدل عليه مابعده. مسلمانانو ويل چې د وړاندي سره د کهف مسجد جوړ وو لانهم کانوا على ديننا وقد ماتوا مسلمين او مشرکانو

ويل چي مونږ كهف ته يوه ابادي كوو لكه يو قريه غوندي چي خلگ به پكښي استوگنه كوي. دوى دا ويل چي اصحاب كهف خو زمونږ هم نسبه وه.

فَقَالُوا ابْنُوا عَلَيْهِمْ بُنْيَانًا ۖ رَّبُّهُمْ أَعْلَمُ بِهِمْ ۚ

نو وويل مشركانو د اهل افسوس چي مونږ د قبرو او كهف سره يوه قريه جوړ ووكمامر.

**يوه سه:** چي "ربهم اعلم بهم" جمله معترضه ده او قول د خداى ﷻ ردا على المتنازعين في امر الفتية فان كلا من الفريقين دوى وځان ته منسوبول المسلمون من حيث الدين، والمشركين من حيث النسب كمامر، او سره ددې چي اصحاب كهف له كفره او له اهل كفره بېزاره وه، او له عوامو څخه د مؤمنانو هم نه وه عملاً بلكې دوى له خواصو څخه د اهل الله وه.

**يوه سه:** چي خفاجي په حاشيه كې د بيضاوي راوړي دي چي له دې آيت څخه دا معلومه سوه چي د قبورو سره د صلحاؤ نژدې مسجد جوړول روا دى او لمونځ پكښې كول هم روا دى. روح المعاني داسې الفاظ استعمال كړي دي وهو قول باطل، عاطل، فاسد انتهى. او مظهري رح وايي هذه الآية تدل على جواز بنا المسجد ليصلي فيه عند مقابر الاولياء الله للتبرك بهم. او شيخ الاستاذ محمد فاخر المحدث رح وايي چي بنا د مسجد مكروه دد. او د روح المعاني او شيخ فاخر رح دلائل دا حديثونه دي (١) ما رواه مسلم عن ابى الهياج الاسدي قال قال لي علي رضي الله عنه ولا ابعثك على ما بعثني رسول الله ﷺ ان لا تدع تمثالاً الا طمسته (يعني د يوه انسان يا حيوان بت كه دي وليدى يا پوره عكس هغه خرابو د او كه دي لوړ قبر وليدى د مځكې سره يې يو شى كړه) و ما رواه البخاري و مسلم عن جابر رضي الله عنه قال نهى رسول الله ﷺ ان يجصص القبر وان يبنى عليه وان يقعد عليه، وما رواه البخاري ومسلم عن عائشة وابن عباس رضي الله عنهم قال لما نزلت برسول الله ﷺ يعني المرض الذي مات فيه طفق يطرح خميصة له على وجهه فاذا اغتم كشفها عن وجهه (شروع يې وكړه چي يو شړى يا پټو به يې دد پر مخ باندې واچول چي نفس به يې تنگ سو د مخه به يې ايسته كړى) ويقول

وهو كذالك لعنة الله على اليهود والنصارى اتخذوا قبور انبيائهم مساجد يحذر مثل ماصنعوا (مسلمانان يې وبېرول د مثل کړو ورو د يهودانو او د نصارى وو) ددې حديث ځواب امام مظهري رح داسې ورکړی دی چې دا حديث خو پر دې دلالت کوي چې قبرونه په گچو او سمېټو مه پخوئ او خونه مه پر جوړوئ او قبرونه ډېر مه لوړوئ، ولا دلالة على كراهة بنا بقرب منها.

**درویش وايي:** چې مسجد پر قبر جوړول او مسجد و قبرو ته نژدې جوړول فرق سره لري، اول مورږ هم مکروه بولو او خبره زموږ خو په نژدې جوړولو کې د مسجد ده و قبر ته وشتان بينهما. بلکې که نژدې و قبر ته مکروه وي، نو مسجد نبوي خو هم قبر انور ته د عليه الصلوة والسلام نژدې دی. خبره داده چې د خفاجي او مظهري مقصد دادی چې لکه په ښار کې د هرات افغانستان چې مدفن د اوليا الله الکرام دی باچهانو يا نورو سرمايه دارانو د اوليا الله قبرو ته نژدې لوی او کوچنی مسجدونه جوړ کړي دي تاچې که څوک نفل وغيره گذاري په دغو مسجدو کې چې پاکه ځکه يې ده گذاري به يې، او قبرونه له بنا څخه خالي ولاړ دي هيڅ عالم د عصر قديم الى يومنا انکار نه دی کړی فتدبر هداک الله عزوجل.

قَالَ الَّذِيْنَ غَلَبُوْا عَلٰٓى اَمْرِهِمْ لَنَتَّخِذَنَّ عَلَيْهِمْ مَّسْجِدًا ﴿۲۱﴾

وويل هغو کسانو چې غالب په حال کې د اصحاب کهف وه (يعنې چې مسلمانان وه چې مشر يې ملک صالح بيدوسيس او اصحاب ذ هغه وه، ولې دوی ثروت والا هم وه او مملکت د افسوس يې هم په قدرت کې ؤ) هرآئينه موږ بنا کوو پر کهف د دوی مسجد چې مسلمانان به لمونځونه پکښې کوي او په دوی سره به تبرک کوي.

**درويش وايي:** چې چونکه اصحاب کهف د غره په غار کې دي او پر دوی سربېره خو بنا د مسجد نسي کېدای لکه مدلول د على د لفظ چې دی او داغه رنگه خلگ يعنې مسلمانان د اطرافو چې د اصحاب کهف زيارت ته ورغلي دي مسجد يې د غار وخولې ته نژدې ليدلی دی، نو ناچاره "على" لپاره د استعلا نه دی بلکې په معنی د قرب دی، والقرينة عليه ماذكرنا. فقير وايي چې هم دغه

لفظ د علي منشأ د اختلاف د د روح المعاني او مظهري وګرځېدلـه، دا وه د فقير ترجمه د آيت والله اعلم بما في كتابه.

**سَيَقُولُونَ ثَلٰثَةٌ رَّابِعُهُمْ كَلْبُهُمْ**

ژر دی چي وه به وايي هغه کسان چي په زمانه کي د عليه الصلوة والسلام وه او په تعداد کي د اصحاب کهف يې اختلاف ؤ "ثلثة" خبر د مبتدأ محذوفي دی اى هم ثلثة. څلورم يې سپی ددوی دا جمله صفت د ثلثة ده. والمعنى ګرځونکي ددوی څلورم سپی دی يعني د سپي سره څلور ګرځي.

**وَيَقُولُونَ خَمْسَةٌ سَادِسُهُمْ كَلْبُهُمْ رَجْمًا بِالْغَيْبِ**

او بعض وايي چي دوی پينځه دي شپږم يې سپی دی وقس هذه الجملة على ماقبلها في الاعراب. ويشتل کوي يعني وايي خبر غائب له دوی څخه يعني ليس في خزانة علمهم ذالک.

**پوه سه**: چي دلته يې سين نه راوړی له دې سببه چي "يقولون" عطف دی پر ماقبل يقولون نو داهم تر سين لاندي راځي. بغوي رحمه الله وايي چي په يو روايت کي راغلي دي چي د نصاری وو هيئت يعني وفد چي مدينې منورې ته راغلی ؤ لپاره د بحث د عليه الصلوة والسلام سره په شان کي د عيسى عليه السلام "چي قصه يې وړده ده" په هغو کي له مشرانو څخه په هغو کي يو په نامه د سيد ياديدی چي مذهب يې د يعقوبيه نصاری وو څخه ؤ هغه وويل چي اصحاب کهف درې دي څلورم يې سپی دی، او بل له مشرانو څخه عاقب ؤ چي د نصاری ؤ نسطوري په مذهب ؤ هغه وويل چي اصحاب کهف پينځه دي او شپږم يې سپی دی.

**پـوه سـه**: چي "رجمـا" منصوب دی مفعول مطلق د فعل مقدر دی يعني يرجمون رجمًا.

**وَيَقُولُونَ سَبْعَةٌ وَّثَامِنُهُمْ كَلْبُهُمْ**

او وايي مسلمانان په اخبار د رسول الله صلى الله عليه وسلم عن قول جبرئيل چي اصحاب کهف اووه دي اتم يې سپی دی.

**سوال:** ثامنهم كلبهم خو صفت د سبعة نكره دى، نو واو يې ولې پر داخل كړى،
روح البيان وايي چي واو يې پر داخل كړى لپاره د تاكيد د نسبت بين طرفيها يعني
ثامنهم وكلبهم، او مظهري وايي لتاكيد لصوق الصفة بالموصوف فتامل.

قُلْ رَّبِّيْٓ اَعْلَمُ بِعِدَّتِهِمْ مَّا يَعْلَمُهُمْ اِلَّا قَلِيْلٌ ۟

ته ورته ووايه يامحمد ﷺ چي زما خداى خبر دى په عدد د دوى اونه دي په
خبر مگر لږ خلگ يعني المسلمون لان قول المؤمنين مستند الى الوحي المفيد
لحق التيقن، ابن عباس رضي الله عنهما وايي چي زه له جملة څخه د قليل يم يعني چي دوى
اووه دي اتم يې سپى دى رواه ابن جرير، او ورته روايت د ابن مسعود رضي الله عنه څخه
هم منقول دى.

**فائده:** بغوي رحمه الله له ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت راوړى دى چي د اصحاب
كهف نومان دادي (۱) مكسلمينا (۲) تمليخا (۳) جرطونس (۴) سنونس
(۵) شارينوس (٦) ذولواس (۷) كعسططيونس (۸) راعي چي نوم يې نه دى
معلوم، رواه الطبراني في الاوسط باسناد صحيح. وقال ابن حجر في شرح
البخاري چي ددوى د نومانو په ويلو كي اختلاف ډېر دى ولا يقع الوصوق بشئ.

**درويش وايي:** چي حضرت علي څخه داسي روايت نقل سوى دى چي
اصحاب كهف اووه نفره وه نومان يې داسي روارې دي. يمليخا. مكشلينا.
مشلينا. مرنوش، دبرنوش، وشاذنوش او اووم يې راعي دى، د هغه نوم يې
كفتططيوش ذكر كړى دى، او كاشفي رحمه الله په تفسير حسيني كي وايي چي اصح
داده چي د راعي نوم يې مرطوش و، امام نيسابوري له ابن عباس رضي الله عنهما څخه
داسي روايت رانقل كړى دى چي نومان د اصحاب كهف لپاره د طلب، د هرب او
د اور د وژلو لپاره په يوه ټوكره كي دې وپېچي اور ته دې ور وغورځوي اور به
مړسي. او د كوچني د ډېري ژړا لپاره دې په يوه كاغذ كي دې نوشته كړي او تر
سر دې ورلاندي كړي، او د كښت د حفاظت له آفاتو څخه دا نومان دې نوشته
كړي تعويذ دې ځني جوړ كړي پو ښونه دې ور كړي او د كښت په منځ كي دې

لکره ودروي او تعویذ دي په هغه پوري غوټه کړي، او چي د چا درېمه درېمه ورځ تبه کېږي او د سر درد لپاره او د غنی او جاه وجلال او ورتګ د حاکمانو ته تعویذ دې کي په دې تېولو صورتو کي تر راسته مو ته دې غوټه کړي، او که د ښځي ولادت سخت وي نوشته دې کړي تر چپه ورانه دې ورغوټه کړي،

فَلَا تُمَارِ فِيهِمْ إِلَّا مِرَآءً ظَاهِرًا

او ته یا محمد ﷺ بحث مه کوه په باره کي د عدد د اصحاب کهف، مګر نه بحث په ظاهر د قصصنا الیک او نسبت د جهل و مخالف ته مه کوه او ډېر تعمق هم مه پکښي کوه اذ لافائدة في الجدال في ذالک.

وَلَا تَسْتَفْتِ فِيهِم مِّنْهُمْ أَحَدًا ﴿٢٢﴾

او ته فتوی مه غواړه په شان کي د اصحاب کهف، له اهل کتابو څخه د هیڅ چا څخه یعني له دوی څخه د متعلم پر ډول سوال او پوښتنه مه کوه ولي چي تاته په وحي حال ددوی معلوم سو وفي ذالک کفایة لک فلاحاجة الی السوال عنهم او بل دا سوال مفضي و نزاع ته ګرځي لانک علی الحق في حالهم واهل الکتاب علی الجهل المطلق.

وَلَا تَقُولَنَّ لِشَاْىْءٍ إِنِّي فَاعِلٌ ذَٰلِكَ غَدًا ﴿٢٣﴾ إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ

او ته مه وایه د یو کار په باره کي چي زه دا کار کوم صبا مثلاً.

**یوه سه:** چي ذکر د صبا په اعتبار د شان نزول دی ورنه مراد مطلق زمان مستقبل دی، مګر مقرون په دې کلمه سره یعني د "ان شاء الله".

**یوه سه:** چي دا استثنا له نهي څخه ده والمعنی لاتقولن لاجل شئ چي ستا ورته قصد وي چي زه دا کار کوم په زمان مستقبل کي الا ان یشاء الله والاستثنا مفرغ یعني لاتقولن في حال من الاحوال الا متلبساً بمشیته تعالی ای الا قائلاً ان شاء الله.

**یوه سه:** چي المنذر له مجاهد څخه روایت کړی دی چي یهودانو و قریشو ته ویلي وه چي تاسي ددغو مدعي النبوة څخه پوښتنه وکړئ د روح یعني چي روح انساني څه شی دی او اصحاب کهف څوک وه او ذو القرنین څوک و، نو

قریشو له علیه الصلوة والسلام څخه دا دري پوښتني وکړې، فقال علیه السلام ایتوني غداً اخبرکم" او ان شآ الله یې نه وویل هغه ؤ چي وحي معطل سوې تر ډېرو ورځو پوري چي له دري څخه نیولې تر څلوېښتو ورځو پوري، شاه عبدالعزیز په تفسیر عزیزي کي روایتونه راوړي دي چي قریشو د علیه الصلوة والسلام په تکذیب خولې پوري کړې حتی چي ویل به یې ان محمد ودعه ربه وقلی، پر علیه الصلوة والسلام باندي سخت د تکلیف، او خفګان بار ولوېدی، نو دا آیت نازل سو یعني په دې آیت کي خدای ﷻ سبب د تاخیر د وحي بیان کړی چي ان شآ الله دي نه وه ویلي، چي دا بیان مفصل د سورت بني اسرائیل په تفسیر کي ددې قول د خدای ﷻ "ویسئلونک عن الروح آه" تېر سوی دی فارجع هناک.

**درویش وایي:** چي ان شآ الله ته په عربي ژبه کي استثنآ وایي دا له دې سببه چي ان شآ الله مشابه ده استثنآ په تحقیق کي فتدبر هداک الله تعالی.

وَاذْكُرْ رَّبَّكَ إِذَا نَسِيتَ

او ذکر د خدای (ﷻ) کوه، یعني قل ان شآ الله، که دي اول وار ان شآ الله نه وه پیاد وروسته دي پیاد سوه بیا ان شآ الله ووایه. په حدیث کي راغلي دي چي دا آیت چي نازل سو، علیه الصلوة والسلام وویل ان شآ الله.

وَقُلْ عَسَىٰ أَن يَهْدِيَنِ رَبِّي لِأَقْرَبَ مِنْ هَٰذَا رَشَدًا ﴿٢٤﴾

ووایه چي شاید چي ما ته دي هدایت زما رب یعني توفیق دي راکړي، یعني یو شي ته چي هغه اقرب او اظهر وي تر قصه د اصحاب کهف په دلالت کي پر نبوت زما، وقد فعل ذالک حیث اراه اعظم من البینات، لکه د ډېرو انبیآ علیهم السلام قصې، او د حوادثو علم چي په مستقبل زمان کي راتلونکي وي.

**درویش وایي:** چي ان شآ الله دومره لوی نعمت دی چي د ډېرو مشکلاتو څخه سړی خلاصوي (۱) که څوک د یو چا سره مثلاً وعده د یو شي وکړي، نو وفآ بالعهد خو واجب دی شرعاً عند القدرة او که یې متصل د وعدې سره ان شآ الله وویل بیا یې ایفا نه ده واجب (۲) که چا ماینې ته وویل پر ما طلاقه یې که

څه هم ثلاثا وي او متصل يې ان شآ الله وويل نه پر طلاقېږي (۳) په عقود کې
مثل البيع والشرا والاجارة کي ان شآ الله متصل وويل هغه عقد نه دی لازم.
**مسئله**: که یو سړي و بل ته وويل چي ته مؤمن يې؟ ددې په ځواب کي په نېز
د امام اعظم رح به ان شآ الله نه وايي بلکې وايي به انا مؤمن حقاً، او امام شافعي رح
وايي چي ددې په ځواب کي هم ان شآ الله صحيح دی لان عاقبة الامر غيب.
**مسئله**: د ابن عباس رضي الله عنهما پر مذهب استثنآ منفصل هم رواه ده استدلالاً بهذه
الآية، لکن اکثره فقهآ پر خلاف ددې دي، ائمه رح وايي که چېري استثنآ منفصل
روا سي، نو بايد هيڅ عقد من البيع والشرآ والنکاح وغير ذالک دي لازم نه سي،
ولې په استثنآ منفصل به يې فسخ کړي، او صدق او کذب به د چا نه سي معلوم
لاحتمال الاستثنآ المنفصل فافهم. امام قرطبي په خپل تفسير کي وايي په
تأويل ددې آيت چي ابن عباس رضي الله عنهما دليل پر جواز د استثنآ منفصل ګرځولی د
داسي وايي چي استثنآ منفصل چي په دې آيت کي راغلې ده لپاره د رفع د اثم او
تبری ده، واما الاستثنآ المغير للحکم فلا يكون الا متصلاً انتهى.
**درویش وايي**: چي د تاريخ په پاڼو کي د امام اعظم رح په مناقبو کي راغلي دي
چي محمد بن اسحاق صاحب المغازي د ابو حنيفه رح سره حسد درلودی په دې سبب
چي منصور ابي جعفر امير المؤمنين امام اعظم رح تر ټولو علماؤ افضل باله او ددهٔ
لوی احترام يې کاوه. يو وخت محمد بن اسحاق او امام اعظم رح په مجلس کي د ابي
جعفر المنصور سره يو ځای سوه، نو محمد بن اسحاق و امام اعظم ته وويل چي ته
څه وايه چي که يو سړی طلاق مانيئې ته ور کړي او يا يې پر يو شي قسم واخستی
وروسته يو ګړی ساکت سو بيا يې ان شآ الله وويل! امام اعظم ورته وويل چي ان
شآ الله يې په درد نه خوري ولي چي منفصل ده انما ينفعه اذا کان متصلاً. محمد بن
اسحاق ورته وويل کيف لا ينفعه او سره ددې نيکه د امير المؤمنين چي ابن
عباس رضي الله عنهما دی وايي چي استثنآ يعني ان شآ الله عمل په کېږي وا و بعد سنة لقوله
تعالى "ذکره واذا ربک اذا نسيت" فقال امير المؤمنين لابی حنيفة رح اهکذا مذهب
جدي؟ قال ابو حنيفه رح نعم. نو منصور په ډېر غضب ورته وويل "اتخالف جدي يا ابا

حنيفة" فقال ابو حنيفة لمذهب جدك تاويل صحيح. هغه دا چي په استثناً منفصل سره ګناه پوره ته کېږي اما حکم ته تغيير نه رسوي کالطلاق وغيره. بيا امام اعظم و منصور ته وويل چي دا محمد بن اسحاق او ملګري دده تا اهل د خلافت نه بولي، ولې دوی خو ستا سره بيعت کړی دی او دا يې ويلي دي چي ته زموږ دخوا خليفه يې. نو که ته استثناً منفصل روا بولې دې خلګو ته ووايه چي د بيعت سره سره ان شا الله وواياست پر تاسي حنث او نقض العهد نه لازمېږي بل خليفه به وټاکو، منصور پر خپلو عسکرو رېغ وکړی چي ونسئ محمد بن اسحاق او پټو يې په غاړه کي ورواچوئ بندي خاني ته يې بوزئ وفيه تعظيم امام الملة قائل الحق بغير علة.

## وَلَبِثُوا فِي كَهْفِهِمْ

او اصحاب کهف د رنګ وکړی په کهف کي ژوندي مضروباً على اذانهم.

**درويش وايي**: چي اوس خدای پاک بيان د مدت د لبث ددوی کوي چي دمخه يې مجملاً ويلي وه فضربنا على آذانهم في الكهف سنين عدداً.

## ثَلٰثَ مِائَةٍ سِنِينَ وَازْدَادُوا تِسْعًا ﴿٢٥﴾

درې سوه کاله (ابن مردويه له ابن عباس رضي الله عنهما او جرير له ضحاک رحمه الله څخه داسي روايت کړی دی چي "ثلاثة مائة" چي نازل سوه خلګو وويل چي درې سوه مياشتي دي که کلونه؟ فانزل الله تعالى سنين) دوی زيات لبث وکړی نهه کاله. بغوي وايي چي له حضرت علي څخه روايت دی چي په نزد د اهل کتابو درې سوه کاله شمسي وه او خدای پاک درې سوه کاله قمري ياد کړل كما هو مسلك الشريعة المحمدية، او تفاوت په منځ کي د شمسي کلو او د قمري کلو په سل کاله کي درې کاله دی يعني په سل کاله شمسي کي درې کاله قمري پر بالا کېږي، نو په درې سوه کاله کي نهه کاله پر بالا سوه، ولهذا قال الله تعالى "وازدادوا تسعاً" کلبي رحمه الله وايي چي نصارى د نجران وويل اما ثلث مائة فقد عرفنا واما التسع فلا علم لنا به فنزلت.

## قُلِ اللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا لَبِثُوا

ته ووايه چي خدای (جل جلاله) ښه خبر دی په ما لبثوا ددوی يعني چي مراد قمري

کلونه دي، ولي د شريعت محمدي ډېر احکام پر قمري حساب مبني دي لکه روژه، حج او غيرهما بلکې عرب د زمانې د آنحضرت ﷺ شمسي حساب يې عموماً نه پېژندی فتامل.

لَهُۥ غَيْبُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۖ أَبْصِرْ بِهِۦ وَأَسْمِعْ ۚ

خاص په خدای ﷻ پوري دی علم د هغو شيانو چي له مخلوقه څخه غيب او پټ وي په اسمانو او په مځکه کي وي "ابصر و اسمع" دواړې صيغې د افعل التعجب دي. فارسي ترجمه يې داده چي "بينا است خدای تعالی بهر موجود وچه شنو است بهر موجود. قال الشيخ رح چي ضمير د "به" خدای پاک ته راجع دی او محلاً مرفوع دی لکونه فاعلاً لفعل التعجب والبا زائدة کما في کفى بالله، والهمزة في الفعلين لصيرورة اصله بصر الله وسمع ثم غير الى اللفظ الامر وليس بامر حقيقةً اذلا معنى للامر ههنا. ومعناه ما ابصر الله بکل موجود وما اسمعه لکل مسموع وصيغة ليست على حقيقتها لاستحالة التعجب على الله تعالى بل للدلالة على ان شانه تعالى في علمه بالمبصرات والمسموعات خارج عن ادراک العقلا اذ لا يحجبه شئ ولا يحول دونه حائل ولا يتفاوت بالنسبة الى علمه لطيف ولا کثيف ولا الصغير ولا الکبير انتهى کلام الشيخ رح بنقل روح البيان. او امام مظهري په ډېر لنډ عبارت تولہ معنى د شيخ د عبارت راوړې ده، ابصربه (اى بالله) و اسمع (اى بالله تعالى) وروسته وايي چي خدای پاک کمال خپل په ابصار او سمع کي په صيغه د تعجب راوړی لپاره د دلالت پر دې باندي چي حال د خدای ﷻ په ادارک او علم کي د مبصراتو او مسموعاتو خارج عما عليه ادارک السامعين والمبصرين اذ لا يحجبه شئ "اى کما في المبصرين والسامعين من البشر فافهم.

مَا لَهُم مِّن دُونِهِۦ مِن وَلِىٍّ وَلَا يُشْرِكُ فِى حُكْمِهِۦٓ أَحَدًا ﴿٢٦﴾

"مالهم" اى لاهل السموات والارض "ماسوى له خدای ﷻ څخه "من ولي" يعني ناصر او متولي د دوی کلمه د "من" لپاره د استغراق د نفي ده "ولا يشرک في حکمه" اى في قضائه او امره ونهيه "احداً" هيڅ څوک له اهل السموات والارض څخه.

وَاتْلُ مَا أُوحِيَ إِلَيْكَ مِن كِتَابِ رَبِّكَ لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمَاتِهِ

او ته يا محمد (ﷺ) تلاوت وكړه د هغه څه چي ماته وحي كړي له قرآن څخه د رب ستا يعني ته متابعت كوه د ما في القرآن او د مكې د كفارو و خبرو ته مه گوره چي دوى وايي ايت بقرآن غير هذا "اوبدله" دا يې دليل دى، يعني هيڅ قدرت نه لري چي تبديل يا تغيير د كلماتو د قرآن كريم وكړي غير له خداى ﷻ څخه.

وَلَن تَجِدَ مِن دُونِهِ مُلْتَحَدًا ﴿٢٧﴾

او ته نه سې پيدا كولاى يا محمد (ﷺ) غير له خداى ﷻ څخه كه ته متابعت د قرآن ونه كړې حسب ما نزل "ملتحداً" ابن عباس رضي الله عنهما وايي ځاى د ساتني له عذاب څخه د خداى ﷻ او بعض وايي ځاى د تېښتې.

وَاصْبِرْ نَفْسَكَ

او ته ثابت او محكم وساته خپل ځان، بغوي رحمه الله وايي چي دا آيت نازل سوى دى په باره كي د عيينة بن حصين فزاري چي دى رسول الله ﷺ ته راغلى يعني دمخه تر اسلام او د عليه الصلوة والسلام سره فقرا د مسلمانانو ناست وه فيهم سلمان رضي الله عنه او حضرت سلمان يو پشمي پنډ پټو پر ځان پېچلى ؤ چي خوله يې پكښې كړې وه لشدة الحرارة، نو عيينة و عليه الصلوة والسلام ته وويل "اما يؤذيك ريح هؤلا"؟ ددوى د خولې كريه بوئ تا نه په عذابوي؟ "ونحن سادات مضر واشرافها فان اسلمنا اسلم الناس وما يمنعنا من اتباعك الاهؤلا" موږ د مضر د قوم هغه سرداران او اشراف خلگ يو كه موږ مسلمانان سو نو نور خلگ يعني زموږ د قبيلې هم ايمان راوړي او زموږ د ايمان راوړل مانع نه دي مگر دغه فقرا يعني موږ ددوى په ناسته شرمېږو او ددوى د خولې د بدبوئي په عذابېږو، نو دوى له مجلسه وشړه او يا يوه ورځ زموږ سره كښېنه تبليغ راته كوه او بله ورځ ددوى سره. فانزل الله تعالى هذه الآية.

مَعَ الَّذِينَ يَدْعُونَ رَبَّهُم بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيدُونَ وَجْهَهُ

سره د هغو كسانو چي دوى عبادت او ذكر كوي د خداى پاك د سهار په وخت

كي او د مازديگر په وخت كي يعني في طرفي النهار او په دي كي ددوى اراده د رضا د خداى ﷻ ده، يعني نه رياء دا كار كوي او نه نفاقًا او بل د دنيا شى يې هم نه دى په كار او آخرت په كار لري. او بعض مفسرين وايي چي دا آيت په اصحاب صفه كي نازل سوى دى چي دوى اووه سوه (۷۰۰) ته بالغ وه چي ټوله فقرا ؤ چي نه يې كښت درلودى او نه يې مواشي درلوده او نه يې تجارت، يو لمونځ چي به يې وكړى د بل لمانځه په انتظار كي به يې تسبيح او تهليل وايه. نو دا آيت چي نازل سو رسول الله ﷺ وويل الحمد لله جعل في امتي من امرني ان اصبر معهم. والاول من شان النزول اجود واصح اسنادًا والله اعلم بمراده في كتابه.

**وَلَا تَعْدُ عَيْنٰكَ عَنْهُمْ ۚ تُرِيْدُ زِيْنَةَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ**

او نه دې اړوه خپلي دوې سترګي (كنايه ده له رغبت څخه) ددوى څخه يعني الفقرا المذكورين الى غيرهم چي ته اراده لرې او طلب د مجالسه د اغنياؤ وكړې چي صاحب د زينت د دنيا دى. حسين كاشفي رح په تفسير حسيني كي وايي بايد دانست كه آن حضرت هرگز بدنيا يى زينت آن ميل نبوده بلكه معناى آيت اينست كه مكن عمل كسى كه به زينت چه مائل بدنيا از فقرا معرض وبر اغنيا مقبل باشد. ددې دليل دا قول د عليه الصلوة والسلام دى چي خلګو ته بې په نصيحت كي ويل "لا تجالسوا الموتى. يعني الاغنيا.

**وَلَا تُطِعْ مَنْ اَغْفَلْنَا قَلْبَهٗ عَنْ ذِكْرِنَا وَاتَّبَعَ هَوٰىهُ وَكَانَ اَمْرُهٗ فُرُطًا ﴿۲۸﴾**

او نه متابعت مه كوه په ګوښه كولو د فقراؤ د خپل مجلس څخه د هغه چا چي موږ غافله كړي له ذكر څخه زموږ چي يا كلمه توحيد مراد ده يا قرآن كريم او متابعت د خواهش نفساني كوي لكه روسا د قريشو لكه په مانحن فيه چي عيينه بن حصين الفزاري چي د عليه الصلوة والسلام څخه د طرد د فقراؤ د خپل ځان څخه خواهش كړى ؤ كه څه هم نورو اشرافو د قريشو هم دا غه مطالبه كوله. او بعض مفسرين وايي چي مراد په دې آيت كي اميه بن خلف الجمحي دى ما روى عن ابن عباس رضي الله عنهما.

**درویش وايي:** چي ولا منافات بين الروايات. ولي چي موږ وویل چي اشراف د قریشو تولہ طالبان د طرد د فقراؤ وه، او د "كان امره فرطا" دېري ترجمې کړل سوي دي لکه (۱) ضياعًا (۲) ضيع امره وعطل ايامه (۳) ندمًا (۴) سرفًا (۵) متروكًا (۶) باطلاً (۷) مخالفًا للحق (۸) مجاوزًا عن الحد (۹) تاركًا للحق.

**درویش وايي:** چي دا معناوي ټولي مقاربة المآل دي.

## وَقُلِ الْحَقُّ مِن رَّبِّكُمْ

او ووایه یا محمد (ﷺ) چي حق هغه دی چي له جانبه څخه د خدای ﷻ وي لامایقتضیه الهوی.

**پوه سه:** چي "الحق" مبتدأ ده "من ربكم" يې خبر دی، او دا احتمال كه څه هم مرجوح دی چي الحق دي خبر د مبتدأ محذوفي وي او من ربكم دي حال وي والتقدير الاسلام او القرآن هو الحق كائنًا من ربكم.

## فَمَن شَاءَ فَلْيُؤْمِن وَمَن شَاءَ فَلْيَكْفُرْ

که د چا خوښوي ایمان دي راوړي او که د چا خوښه وي کفر دي مختاره کړي.

**فائده:** دا تخییر لپاره د تهدید او د وعید دی، گویا دا جواب دی د قول د عیینه چي عليه الصلوة والسلام ته يې وویل "اما يؤذيك ريح هؤلاء يعني الفقراء ونحن سادات مضر واشرافها فان اسلمنا اسلم الناس يعني قبيلة مضر كلهم وما يمنعنا عن اتباعك الا هؤلاء يعني الفقراء الذين لثيابهم وعرقهم رياح منتنة فنحيهم وحتى نتبعك" حاصل د ځواب يې دادی چي حق چي اسلام يا قرآن دی کائن د خدای ﷻ له خوا دی او هغه خدای زه امر کړی یم په دې سره چي ځان به صبر کوې پر نشت او برخاست ددغو فقراؤ سره او زه يې نهي کړی یم له شړلو څخه ددوی، نو که ستاسي خوښه وي ایمان راوړئ او که ستاسي خوښه وي پر خپل کفر دوام وکړي زه ستاسي په کفر باک نه کوم، ولي ضرر يې تاسي ته راجع دی ماته نه دی.

**درویش وايي:** چي په پښتو کي هم داسي امر تخییري سته لکه د يو سړي زوی چي پلار ته ووايي چي زه امريكا ته ځم مثلاً، پلار خو يې اولاً منع کړي

لکن زوی یې تینګار وکړي، نو پلار یې ورته ووایې که پر کور کښېنې که امریکا ته ځې.

# إِنَّآ أَعْتَدْنَا لِلظَّٰلِمِينَ نَارًا أَحَاطَ بِهِمْ سُرَادِقُهَا

موږ اراسته کړی دی ظالمانو ته یعني کافرنو لره اور یعني دوزخ.

**پوه سه:** چې دا جمله "احاط بهم سرادقها" په تقدیر د قد حال دی له ظالمین څخه یا صفت د "نار" دی چې احاطه به کړي پر دوی سرادق د اور.

**پوه سه:** چې سرادق لفظ مفرد معرب دی یعنې د بلې ژبې لفظ عربو استعمال کړی دی. ولې چې په کلام کې د عربو اسم مفرد چې دریم حرف دې الف وي وروسته دې دوه حرفه نور وي نسته، په نهایه نومې کتاب کې وایې چې "سرادق کل شئ احاط بشئ من حائط او خبأ" یعنې خېمه. نو له دې عبارت څخه هم دا فهمېږي چې سرادق لفظ مفرد دی.

**درویش وایي:** چې سرادق، فسطاط او خبأ سره یو دي، او یو ضعیف احتمال دا هم دی چې جمع د سردق دي وان لم یستعمل مفرده في کلام العرب، په حدیث شریف کې راغلي دي چې روایت یې احمد. ترمذي او حاکم رح کړی دی عن ابي سعید الخدري رضي الله عنه عن النبي ﷺ قال سرادق النار اربعة جدر کثف ځلور دېواله دي پنډ چې هر دېوال یې د ځلوېښتو کالو لار ده. او بغوي له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت کړی دی چې "هو حائط من نار" او بعض وایي چې یو ددوی دی چې پر کفارو احاطه کوي.

**درویش وایي:** چې په هر صورت د کلام بنأ پر تشبیه ده چې هغه اور یا دېوال د اور یې مشابه کړی په خېمه سره، وجه التسمیة الاحاطة باهل النار کالخیمة والفساط.

# وَإِن يَسْتَغِيثُوا۟ يُغَاثُوا۟ بِمَآءٍ كَٱلْمُهْلِ يَشْوِى ٱلْوُجُوهَ

او که دوږخیان شکایت وکړي د ډېرې تندې. ددوی پر یاد رسي کېږي په اوبو سره چې لکه مهل داسې وي. چې داغوي مخان ددوی من شدة الحرارة، بغوي رح

وايي چي د ابن عباس رضي الله عنه روايت دی چي مهل يو ختيه اوبه دي لکه زيت د تېلو ختيه اوبه، او مجاهد رح وايي چي مهل د دوږخيانو ويني او نوونه دي چي په دوږخ کي يو ځای سره جمع کېږي، نو چي دوی تري سي هغه ورکول کېږي، او روح البيان د مهل ترجمه په ويلي وسپنه سره کړې ده.

**يوه سه:** چي ترمذي، ابن ابي حاتم، ابن حبان، حاکم او بيهقي رح له ابي سعيد الخدري رضي الله عنه څخه روايت کړی دی او هغه له رسول الله ﷺ څخه في تعبير قوله تعالى بماء كالمهل قال عليه السلام كعكر الذيت (ختيه بيل) چي دوږخي دا اوبه مخ ته نژدې کړي د مخ پوست يې پکښي راشوه سي.

بِئْسَ الشَّرَابُ وَسَاءَتْ مُرْتَفَقًا ﴿۲۹﴾

بد مشروب دی مهل او بد دی اور. قال ابن عباس رضي الله عنه منزلاً وقال مجاهد رح مجتمعاً. وقال عطا مقراً وقال قتيبي مجلساً.

**درويش وايي:** چي اصل معنی د ارتفاق چي مصدر دی د مرتفعًا چي سړی څنګل پر مځکه کښېږدي او بارخو پر تکيه کړي د استراحت لپاره، نو د مرتفعًا متكئًا ومسترحًا معنی يوه ده.

**سوال:** په اور کي تکيه او استراحت له کومه؟ کما لايخفی؟

**ځواب:** مرتفعًا چي يې د دوږخيانو په باره کي راوړی دی "حسنت مرتفقًا" چي يې حال کړی د جنت والو کما سيئاتي فتدبر وامثاله كثيرة.

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ إِنَّا لَا نُضِيعُ أَجْرَ مَنْ أَحْسَنَ عَمَلًا ﴿۳۰﴾

په تحقيق هغه کسان چي ايمان يې راوړی وي او عملونه يې کړي وي د ښو کارو من الفرائض والواجبات والسنن والمستحبات قوليه او جسديه او ماليه موږ نه ضائع کو ثواب د هغه چا چي عمل صالح وکړي.

**پوښتنه:** يو مؤمن به عمل صالح تو له کوي مګر منهيات به هم ورسره کوي د هغه حال نه سو بيان؟

**ځواب:** ترک د منهياتو په عمل کي د صالحاتو مندرج دی کريمه "ان

الصلوة تنهى عن الفحشا والمنكر الآية"

اعراب: خبر د "ان" اول په "ان" ثاني سره د ما في حيزه دي، والعائد محذوف تقديره من احسن منهم، او يا ضرورت و حذف ته د عائد نسته، ولي چي په عموم كي د من احسن عملاً الذين آمنوا داخل دي فتدبر هداك الله الى درك لطائف كلام الله جل جلاله.

## أُولَٰئِكَ لَهُمْ جَنَّٰتُ عَدْنٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهِمُ ٱلْأَنْهَٰرُ

دوى لره دي جنتونه د استوګني "تجري" اى من تحت قصورهم يوه والـه د اوبو ده چي مادة اصلي ده د حيوة د انسانانو حتى آدم عليه السلام او د ټولـو حيوانانو او د ټولو درختو او د نباتاتو وغيرها، كريمه "فيه شفاً للناس" او دريمه د شيدو ده چي هيڅ په حلق كي نه بنديږي او په هيڅ مرض كي شيدې ممنوع نه دي او اطبا وايي چي شيدې حامل د څورلسو (۱۴) ويټامنو دي چي په بله عذا كي جمعاً نسته، كريمه "من بين فرس ودم لبناً خالصاً سائغاً للشاربين الآية. او څلورمه والـه د شرابو ده.

**پوښتنه**: د دنيا شراب خو د سر درد لري او د انسان عقل مغلوبه ګرځوي، آيا د جنت په شرابو كي هم دا خصلت سته كه څرنګه؟

**ځواب**: د جنت شراب له دې شيانو څخه پاک دي، كريمه "لافيها غول ولاهم عنها ينزفون" مونث د ضمير و خمر ته راجع دى چي مونث سماعي دى.

**پوه سه**: چي "عدن" ډېر اوسېدلو ته وايي، ټوله جنتونه عدن دي لخلود المومنين فيها ابداً، ولهذا يقال عدن الما بمكان اذا قام به.

**فائده**: جمله د "اولئک لهم جنات الآية" جمله مستانفه ده د بيان د اجر چي په دمخه آيت كي راغلى ؤ.

## يُحَلَّوْنَ فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ مِن ذَهَبٍ

دوى ته زيور وركول كېږي د اساور، د سرو زرو.

**پوه سه**: چي اساور جمع د اسورة جمع سوار ده، نو منتهى الجموع ده غير منصرف ده لان صيغة منتهى الجموع قائم مقام السببين لعدم الانصراف كما

في كتب النحو، سوار په پښتو بنګړي بولي او په فارسي يې دستينه يا ودست برنجن بولي او په اردو يې کنګهن بولي.

**فائده:** کلمه د من لپاره د بيان ده د تبعيض نه ده، او اساور چي يې نکره راوړه او داغه رنګه ذهب يې هم نکره راوړه لپاره د تعظيم د حسن ددوی.

**فائده:** طبراني په اوسط کي او بيهقي له ابي هريره ﷺ څخه نقل کړی دی قال قال رسول اللهﷺ "لوان ادنی من اهل الجنة حلية، اعدلت بحيلة اهل الدنيا جميعًا لكان مايحيله الله تعالى في الآخرة افضل من حلية اهل الدنيا جميعًا" له کعب الاحبار څخه روايت دی چي خدای ﷻ يو ملکه پر دې کار ګمارلې ده چي زيورات د اهل جنت جوړوي من اول خلقه الى ان تقوم الساعة" که يو زيور له زيوراتو څخه د اهل جنت و دنيا ته راوړل سي لذهب بضوء الشمس يعني ضوء الشمس به مغلوبه سي.

## وَيَلْبَسُونَ ثِيَابًا خُضْرًا مِّن سُندُسٍ وَإِسْتَبْرَقٍ

او جنتيان به اغوندي کالي د شنه يا زرغونه رنګ (ابن السني او ابو نعيم دواړه په طب نبوي کي وايي عن انس ﷺ قال كان احب الالوان الى رسول الله الخضرة) سندس نازل وربښميني جامې ته وايي "واستبرق" وهو ما غلظ من الحرير، بغوي وايي چي غلظ په کالو کي د اهل جنت په معنی د محکم والي دی.

**درويش وايي:** چي له دې څخه خو دا معلومېږي چي سندس محکم نه دي وليس كذالك. په بعضو تفاسيرو کي وايي چي د سندس جامه سربېره اغوندي او د استبرق جامه لاندي تر سندس اغوندي كما هو المروج في نسا الاغنيا اليوم. نو په استبرق سره يې ستر د عورت کېږي او په سندس سره يې زينت، ولي چي تر سندس لاندي د استبرق رنګ هم معلومېږي او خپل رنګ خو يې خپل دی، والله اعلم بحقيقة الحال ادخلنا الله الجنة بفضله وكرمه لنعلم حقيقة حال الثياب.

## مُّتَّكِئِينَ فِيهَا عَلَى الْأَرَائِكِ

او تکيه به کوي اهل جنت په جنت کي پر پلنګانو، لکه په دنيا کي چي متنعمين خلګ داغسي کوي.

**پوه سه**: چي "ارائک" جمع د اریکة ده چي پلنګ یا چپرکټ یې بولي، لکن چي په حجال کي وي حجال جمع د حجلة ده چي هغې خوني یا خېمې ته وایي چي د پرده ښه یې ښائسته کړې وي په مفروشات فائقه وو او په پردو لپاره د زوم او ناوي، بیهقي رح له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت کړی دی چي سریر ته ارائک نه وایي چي په حجلة کي نه وي او که حجله بې سریره وه هم یې اریکه نه بولي، او چي سریر او حجله دواړه سره یو ځای سي نو یې اریکه بولي کذا قال صاحب روح البیان والمظهري في تفسیره.

نِعۡمَ ٱلثَّوَابُ وَحَسُنَتۡ مُرۡتَفَقٗا ﴿٣١﴾

ښه جزا ده جنت و نعیمها، او ښه ځای دی جنت د مجلسیانو لپاره او ښه ځای د قرار دی جنت. او یا معنی دا چي ښه دي ارائک د تکیې لپاره.

**درویش وایي**: چي دا نعمتونه او ملبوسات او مشروبات په جنتو کي نور نور نعمتونه من الماکولات والروائح الطیبة من الازهار، چي مهربانه خدای ﷻ په کریم قرآن کي ځای پر ځای مورږ ته ذکر کړي دي. دا د ښو ښو درختو د اعمال صالحه وو په دنیا کي میوه ده او فضل الهي علاوه دی. شیخ مصلح الدین الشیرازي قدس سره وایي:

قیامت که بازا مینو نهند ........ منازل باعمال نیکو دهند
کسی را که حسن عمل بیشتر ........ بدرگاه حق منزلت پیشتر
بضاعت بچند انکه آری بری ........ اگر مفلسی شرمساری بری
که بازار چندان که اگنده تر ........ تهی دست را دل پراگنده تر

**حکایت**: یو سړي په بلخ کي وخیل بزګر یا مریي ته وویل چي په فلاني مځکه په غنم وکرې، هغه اوربشي په وکرلې د لو وخت چي راغلی هغه مالک چي ورغلی که څه ګوري پر مځکه د اربشو کښت ولاړ دی، نو هغه بزګر یا مریي ته یې وویل چي ما نه وه درته ویلي چي په دغه مځکه غنم وکره، بزګر ورته وویل چي هو راته ویلي دي وه لکن ما چي اوربشي وکرلې په ګمان ددې چي ګوندي غنم راوکړي، د مځکي مالک ورته وویل "یا احمق هل رئیت احداً ذرع الشعیر فحصل

حنطة؟ قال العبد فكيف تعصى الله انت وترجوا جنته ونعيمها" مولى روم وايي:
جمله دانند این اگر تو نگروی ....... هرچه میکاریش روزی بدروی
**درويش وايي:** چې دا معنی د هغه حديث نبوي ﷺ ده الدنيا مزرعة الآخرة

## وَاضْرِبْ لَهُم مَّثَلًا رَّجُلَيْنِ

ته بیان کړه کفارو ته د مکې يو مثال د دوو کسانو، بغوي رحمه الله وايي چې دا آيت نازل دی د دوو ورونو په باره کې چې د اهل مکې وه من بني مخزوم يو مسلمان ؤ نوم يې ابو سلمه عبد الله بن عبد الاسود بن عبد ياليل وكان زوج ام سلمة قبل النبي ﷺ او بل کافر ؤ وهو الاسود بن عبد الاسود بن عبد ياليل، وقيل هذا مثل لعيينة بن حصين واصحابه مع سلمان واصحابه ومشبها برجلين من بني اسرائيل چې دوه ورونه وه چې يو مؤمن ؤ چې نوم يې يهودا په قول د ابن عباس رضي الله عنهما وقال مقاتل تمليخا والآخر كافر ؤ چې نوم يې قطردس ؤ، وهب رحمه الله وايي چې نوم يې قطفر ؤ، نو دا هغه کسان دي چې په سورة والصافات کې خدای ﷻ بيان کړی دی ددې دوو قصو عبد الله بن المبارک له معمر څخه او هغه له عطا الخراساني څخه داسې راوړې ده چې دوه کسه سره شريکان وه دوی اته زره (۸۰۰۰) ديناره په دوارو درلوده يعني سره شريکان وه، او بعض وايي چې دوه ورونه وه چې له پلاره څخه په ميراث اته زره دينار په ميراث وريا ته سوي وه، تقسيم يې سره وکړی څلور څلور زره ديناره هر يوه ته ورورسېدله (وهذه الرواية هو الاصح عند الاكثر) نو دا يوه په زر دينار مځکه رانيول، نو هغه ورور چې مسلمان ؤ داسې يې وويل اللهم ان فلانًا قد اشترى ارضًا بالف دينار او زه خدايه رانسم ستا څخه مځکه په جنت کې په زر ديناره، نو هغه زر ديناره يې خيرات کړه مسکينانو ته يې ورکړه، بيا يې هغه بل ورور سرای جوړ کړی په زر ديناره دا مسلمان ورور يې وويل "اللهم ان فلانًا بنى دارًا بالف دينار" زه ستا څخه سرای رانسم په جنت کې، نو زر ديناره يې خيرات کړه، بيا يې ورور کوزده وکړه په زر ديناره او د مايني پر زر وزېور يې هغه زر ديناره مصرف کړه. فقال المؤمن اللهم اني اخطب اليک من نسا الجنة يعني الحور بالف دينار" هغه يې هم خيرات کړه، بيا يې ورور خادمان او متاع البيت په زر ديناره

رانیول، نو مؤمن وویل اللهم اشتری منک خدماً ومتاعاً في الجنة بالف دینار" هغه یې هم خیرات کړه، وروسته مؤمن ته یوه مجبوري ورپېښه سوه په زړه کې یې وروګرځېدله چې هغه بل ورور ته به ورسم شاید څو مرسته راسره وکړي، نو دا مسکین مؤمن ورور د هغه بل ورور د تېرېدلو په لار کې عاجزه کښېناستی هغه په ډېر شان او شوکت مریان ورسره وه چې تېرېدی دی ور ولاړ سو هغه چې ورته وکتل وه یې پېژندی ورته وه یې وویل چې فلانی یې ده ورته وویل هو! هغه ورته وویل چې څه کوې چې دلته ناست یې؟ مؤمن خپل د مجبوریت قصه ورته وکړه او ورته وه یې ویل چې زما سره څه مرسته وکړه، هغه ورته وویل چې هغه څلور زره دیناره دې څه کړه، ما او تا خو د پلار اته زره دیناره میراث سم پر نیمایي سره تقسیم کړه، مؤمن ورور ټوله قصه ورته وکړه، هغه ورته وویل چې ته خیراتونه کوه اذهب فلا اعطیک شیئاً او منت یې هم پر وکړی. او په یوه روایت کې راغلي دي چې هغه کافر ورور دی تر لاس ونیوی ګرځاوه یې پر خپل سرای او مځکه وغیره باندي، فنزلت فیهما واضرب لهم الآیة. ای للکافرین و المؤمنین مثل رجلین ای حال رجلین، بعض مفسرین وایي چې دا مثال فرضي دی. او بعض وایي واقعي دی في زمن النبي ﷺ او في الزمان السابق.

**یوه سه:** چې رجلین په آیت کې په حذف د مضاف ای مثل رجلین بدل دی له مثلاً څخه، او دا وروسته آیت تفسیر د مثل دی فافهم، جلالین وایي چې دا دوه ورونه د یو باچا زامن وه انتهی.

**درویش وایي:** چې علامه بغداد وایي چې دا مثال واقعي دی وهو المعول علیه آه، او قصه د روح المعاني او د روح البیان سره ورته ده مګر مظهري څه زیادت او اختلاف بیان کړی دی چې درویش اشاره ورته وکړه په بیان کې د قصه مذکورې فتدبر.

جَعَلْنَا لِأَحَدِهِمَا جَنَّتَيْنِ مِنْ أَعْنَابٍ

موږ ګرځولي وه یعني ورکړي مو وه و یوه ته ددوی چې کافر و دوه باغونه د انګورو یعني قسم قسم.

**یوه سه:** چې دا جمله ټوله یا بیان د تمثیل دی یا صفت د "رجلین" دی.

وَحَفَفْنٰهُمَا بِنَخْلٍ وَّجَعَلْنَا بَيْنَهُمَا زَرْعًا ﴿٣٢﴾

او احاطه کړي وه موږ د دواړه باغونه د انګورو د خورما په درختو سره یعني څار طرفه د خورما درختې پر راګرځېدلي وې، او ګرځولي وه موږ په منځ کې ددې دوو باغو د کښت ځکه چې غنم وغیره په وکړي لپاره د قوت د عیال خپل.

كِلْتَا الْجَنَّتَيْنِ اٰتَتْ اُكُلَهَا

دواړو باغو ورکړې خپلې مېوې یعني د انګورو تاکانو پوره انګور کړي وه او د خورما درختو ښه ښه وانښکي د خورما کړي وه.

**سوال:** ضمیر د "اتت" چې راجع و کلتا ته دی، ولې یې مفرد راوړی؟

**ځواب:** په شرح جامي او نورو کتابو کې د علم النحو وايي چې کلا او کلتا تثنیه نه دي لعدم ثبوت کل بکسر الکاف في المفرد، بلکې دواړه ذو الزیادة دي فافهم.

وَلَمْ تَظْلِمْ مِّنْهُ شَيْـًٔا

او نه وُکم کړی کلتا الجنتین له اکل څخه یعني له مېوې څخه هیڅ شی یعني باغونه لکه عادت چې دی ګاهي یو کال لږ مېوه وکړي او ګاهي ډېره، دا دوه باغونه له مېوې څخه مالا مال وه یعني پوره مېوه یې کړې وه لکه نور باغونه چې یې په یوه کال کې کوي.

وَّفَجَّرْنَا خِلٰلَهُمَا نَهَرًا ﴿٣٣﴾

یعني بېولې مو وه په منځ کې ددې دوو باغو واله تا چې همېشه اوبه خوړه کېدای او سرسبزي او ښادابي د باغو پر ښه حال باقي وي.

وَّكَانَ لَهٗ ثَمَرٌ

او وه ددغو دوو باغو مالک لره، په قاموس کې وايي الثمرة بالحرکات الثلث حمل الشجر (یعني مېوه د درختې) وانواع المال "او نورو اقسامو ته مال وايي" الواحد ثمرة وثمرة وجمعه ثمار وجمع الجمع ثمر "یعني بضمتین" وجمع الجمع الجمع اثمار" درویش وايي چې نادره بل لفظ درې جمعي لري" والذهب والفضة" یعني سرو او سپینو زرو ته وايي.



Scanned by CamScanner

درویش وایي: چي دلته څه شی مراد دی؟ مجاهد رحمه الله وایي ذهب او فضة مراد دی. او بعض مفسرین وایي چي دي دوو باغو والا اقسام د مالو درلوده ماسوی له جنتین څخه.

فَقَالَ لِصَاحِبِهِ وَهُوَ يُحَاوِرُهُ أَنَا أَكْثَرُ مِنكَ مَالًا وَأَعَزُّ نَفَرًا ﴿٣٤﴾

وویل د دوو باغو څښتن "الصاحبه" یعني الفقیر المؤمن ته. او هغه د صاحب سره خبري کولې زه ستر تا ډېریم من حیث المال او غالب یم پر تا په اولاد او خادمانو او کومک کوونکو کي.

وَدَخَلَ جَنَّتَهُ وَهُوَ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهِ

او داخل سو دا کافر او صاحب یې ورسره ملګری کړی ؤ د فخر لپاره پر باغو یې ګرځاوه. او دی پر خپل ځان ظالم ؤ لفخره وکفره (والواو للحال من فاعل قال اول)

**سوال**: جنتونه خو دوه وه نو دلته یې مفرد ولي راوړی؟

**ځواب**: دخول خو پر یوه یوه جنت ؤ پر دواړو خو یې په یوه واره نه ګرځاوه. او یا له دي سببه یې مفرد ووایه چي پر دواړو باغو یو دېوال راګرځېدلی ؤ او لاتصال کل واحدة من جنتیه بالاخری.

قَالَ مَا أَظُنُّ أَن تَبِيدَ هَٰذِهِ أَبَدًا ﴿٣٥﴾

او وه یې ویل صاحب ته چي زما خو ګمان نه کېږي چي فاني او نیستي دي سي دا باغونه تر ابده پوري. ووجه افراد اسم الاشارة مامر في افراد جنته.

**یوه سه**: چي باعث پر دې خبره طول الامل ؤ او غفلت دده ؤ او د خدای ﷻ په امهال غولېدلی ؤ.

**پوښتنه**: انسان چي عاقل وي که مؤمن او که کافر وي دا ګمان خو نه لري چي زه ابداً ژوندی یم او مړم به نه؟

**ځواب**: دده مراد دا ؤ چي زه به غني، مال او باغونه لرم تر څو چي زه ژوندی یم.

وَمَا أَظُنُّ السَّاعَةَ قَائِمَةً وَلَئِن رُّدِدتُّ إِلَىٰ رَبِّي لَأَجِدَنَّ خَيْرًا مِّنْهَا مُنقَلَبًا ﴿٣٦﴾

او زه ګمان نه کوم چي قیامت دي راسي، ولي دی مشرک ؤ د بعث بعد الموت څخه منکر ؤ کما هو مذهب جمیع المشرکین، بیا یې تنزلاً داسي وویل:

او که زه علی سبیل الفرض رد سم و خدای ﷻ ته زما. یعني وروسته تر مرګه ژوندی سم د خدای د ثواب او عذاب په ورځ. یعني لکه ته چي وایي چي بعث بعد الموت سته، هر آئینه به زه پیدا کوم یعني په آخرت کي بالا او ښه تر دې جنت د دنیا "منقلبًا" ازروی مرجع. دده دا عقیده وه چي ما ته چي خدای ﷻ دا مال راکړی دی په دنیا کي البته زه پر خدای ګران یم او ددې کرامت مستحق یم.

**درویش وایي**: چي د افراد د ضمیر د "منها" وجه هغه وه چي تېره سوه، او قراء د حجاز او شام یې په تثنیه د ضمیر وایي یعني منهما.

قَالَ لَهُۥ صَاحِبُهُۥ وَهُوَ يُحَاوِرُهُۥٓ أَكَفَرْتَ بِٱلَّذِى خَلَقَكَ مِن تُرَابٍ ثُمَّ مِن نُّطْفَةٍ ثُمَّ سَوَّىٰكَ رَجُلًا ﴿٣٧﴾

وویل و دې کافر ته صاحب دده چي مؤمن و، په داسي حال کي چي هغه ګفت وشنید ورسره کاوه په استفهام انکاري آیا ته کفر کوې په هغه ذات والا قدرت سره چي ته یې له خاورو څخه پیدا کړی یې ته یې "یعني بخلق جدک آدم" بیا له نطفې څخه د پلار او مور بیا یې برابر کړې نر بالغ.

**سوال**: دې کافر خو خدای منی "حیث قال الی ربي" بعث بعد الموت یې نه منی، نو صاحب ولي دده وویل اکفرت آه؟

**ځواب**: انکار د بعث بعد الموت خو له جهته د شک دی په کمال قدرت کي د خدای ﷻ وهو کفر بالله تعالی.

لَّٰكِنَّا۠ هُوَ ٱللَّهُ رَبِّى وَلَآ أُشْرِكُ بِرَبِّىٓ أَحَدًا ﴿٣٨﴾

**یوه سه**: چي اصل د "لکنا" لکن انا و همزه یې حذف کړی د تخفیف له سببه او حرکت یې و نون ته ورکړی، نو دوه نونه سره یو ځای سوه، سره مدغم یې کړه نو الف په خط کي پاته سو، نو جمهور قاریان الف په وقف کي وایي تبعًا للخط او په وصل کي یې ساقطوي.

**یوه سه**: چي "هو" ضمیر شان او "الله ربي" جمله یې خبر دی او دا ټوله جمله منصوب محلاً مفعول د فعل محذوف ده، تقدیره اقول هو الله ربي، او دا ټوله جمله بیا خبر د "انا" دی، زه خدای ﷻ ته هیڅ څوک شریک نه وایم.

**پوه سه**: چي لکن د استدراک لپاره من اکفرت. کما يقال زيد غائب لكن عمرو حاضر. والمعنى ههنا انت كافر بالله وانا مؤمن موحد، مؤمن ورته وويل.

**وَلَوْلَآ إِذْ دَخَلْتَ جَنَّتَكَ قُلْتَ مَا شَآءَ ٱللَّهُ**

ولي چي ته داخل سوی وای خپل جنت ته داسي به دي ويلي وای ماشاء الله.

**فائده**: لولا په معنی د هلا دی چي پر مضارع داسي حرف تحضيض يې بولي يعني باعثه کول پر يو کار او چي پر ماضي داخل سي حرف تنديم يې بولي يعني يوڅوک چي د سړي مخاطب وي پر ماضي کار پښېمانه کول. او "ماشاء الله" خبر د مبتدأ محذوفي دی ای الامر ماشاء الله. او يا مبتدأ ده خبر يې محذوف دی ای ماشاء الله کائن وکلمة ما موصولة على التقديرين.

**لَا قُوَّةَ إِلَّا بِٱللَّهِ**

ددې صاحب د خبرې معنا او غرض دا دی چي تا ولي فخر په باغ کاوه بلکي باغ وغيره به دي و مشيت ته د خدای ﷻ حواله کړي وای او خپل ځان ته به دي عجز ثابت کړی وای چي پر هيڅ شي زه قادر نه يم چي د خدای ﷻ اراده نه وي.

**پوه سه**: چي بهيقي رحمه الله په خپل کتاب "شعب الايمان" له انس رضي الله عنه څخه داسي حديث رانقل کړی دی چي نبي عليه السلام وويل که يو څوک يو شی وويني او خوښ يې سي داسي ووايي "ماشاء الله لاقوة الا بالله" هغه شي ته تاوان نه رسېږي يعني دده له خوا نظر سوء نه پر واقع کېږي، او عين سوء يعني نظر کول حق دی کما جاء في الحديث النبوي ﷺ "العين حق" و ايضاً په حديث صحيح کي راغلي دي "من رائ احداً اعطي خيراً من اهل او مال فقال عند: ماشاء الله لاقوة الا بالله لم ير فيه مكروهاً".

**فائده**: رسول الله ﷺ تفسير د لاحول ولاقوة الا بالله داسي کړی دی "لاحول لاتحول عن معاصي الله الا بعصمة الله. "ولاقوة" على طاعة الله "الا بالله" يعني بتوفيق الله تعالى عليها" په يوه روايت کي راغلي دي چي دغه کلمات د نهه نيوي (۹۹) مرضو دوا ده هغه اسانه مرض يې غم دی.

إِن تَرَنِ أَنَا أَقَلَّ مِنكَ مَالًا وَوَلَدًا ﴿٣٩﴾

که ته ما وینې چې زه کم تر تا یم په مال او اولاد کې.

**فائده**: بعض قرا "ترن" په اثبات د یا وایي په وصل کي فقط.

فَعَسَىٰ رَبِّي أَن يُؤْتِيَنِ خَيْرًا مِّن جَنَّتِكَ

نو شاید چې زما رب به راکړي یعني په اخرت او په دنیا کي ښه ستا تر باغ.

**فائده**: ابن کثیر رح "یؤتین" په اثبات د یا په وصل او وقف دواړو کي وایي، او نافع او ابو عمرو رح یې په وصل کي په اثبات د یا وایي او نور قاریان یې په حذف د یا وایي په وصل او وقف دواړو کي.

وَيُرْسِلَ عَلَيْهَا حُسْبَانًا مِّنَ السَّمَاءِ

او خدای جل جلاله به مسلط کړي ستا پر باغ باندې په سبب د کفر عذاب یا اور له اسمانه "حسبانًا" قتاده رح وایي عذاب، ابن عباس رضی الله عنه وایي اور. او بیضاوي وایي چې "حسبان" جمع د حسبانة ده چې ټکي ته وایي او قتیبي هم ورته ترجمه کړې ده. او روح البیان وایي من برد او صاعقة او نار. دا جامع ترجمه ده.

فَتُصْبِحَ صَعِيدًا زَلَقًا ﴿٤٠﴾

نو به وګرځي ستا باغ مځکه چې پښې پر ښوویږي چې هم به یې درختې او هم نباتات به یې له منځه ولاړ سي.

أَوْ يُصْبِحَ مَاؤُهَا غَوْرًا فَلَن تَسْتَطِيعَ لَهُ طَلَبًا ﴿٤١﴾

او یا به وګرځي اوبه د باغ په مځکه کي تلونکي، هرګز به ستا له طاقته پوره نه وي چې هغه اوبه غائر او ذاهب په مځکه کي یې طلب وکړې فضلاً چې ته به یې بیرته راوګرځوې. **پوهه**: چې غور مصدر دی، یوصف به مبالغة.

وَأُحِيطَ بِثَمَرِهِ فَأَصْبَحَ

او احاطه به وکړل سي پر میوه د باغ او یا تیوله مالونه ستا چې تا فخر په کاوه یعني هغه نابیره تیوله هلاک سي من حیث لا یحتسب فافهم.

**دروېش وايي**: چي مخاطبه د مؤمن فقير او د كافر چي د دوو باغو مالک و پر "لن تستطيع له طلبا" ختم سوه ځکه يې صيغه د خطاب راوړه. او مابعد آيتونه يې بيان د حال د كافر دي.

**پوه سه**: چي "اصبح" دلته په معنى د "صار" دی، په معنى د دخل في الصباح نه دي، كذا في روح البيان، والمعنى صار صاحب الثمرة الكافر.

يُقَلِّبُ كَفَّيْهِ عَلَىٰ مَآ أَنفَقَ فِيهَا وَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلَىٰ عُرُوشِهَا

لاسونه او ورغوي يې سره مښل له ډېره غمه پر هغه مال او نقودو چي د، مصرف کړي وه په ابادۍ کي د جنت او باغ.

**پوه سه**: چي "على" متعلق دی په يقلب پوري لان تقليب اليد كناية عن الندم فكانه قال فاصبح يندم على ما انفق.

**پوه سه**: چي د انګورو تاكان دده په باغ كي سپار تاكان وه، په پښتو كي سپار تاكان هغه د انګورو تاكانو ته وايي چي د لرګو منا ورته جوړه کړي او تاكان سربېره پر منا اچولي وي، اذا عرفت هذا نو معنى د آيت داده چي تاكان پر خپل بام را ايله چي منا وه رالوېدلي وه يعني بام يې دمخه را ايله سو بيا سربېره پر هغه تاكان را لوېدلي وه، له عروش څخه مراد مناوي د سپار تاكانو دي.

**سوال**: د انګورو د تاكانو ذكر يې وكړی او د نخل او زرع ذكر يې نه وكړی او سره ددې چي په جنت كي د كافر خو دا هم موجود وه كما مر في الآيات السابقة؟

**ځواب**: مقصود بالذات او ډېر په جنت كي د كافر د انګورو تاكان وه او شاوخوا د خورما درختي يې صرف لپاره د زينت د جنت وې او زرع په جزوي ځاى كي د جنت وه.

وَيَقُولُ يَٰلَيۡتَنِى لَمۡ أُشۡرِكۡ بِرَبِّىٓ أَحَدًا ﴿٤٢﴾

او وايي دغه كافر كاشكي ما شريک نه وای نيولی د خپل رب سره هيڅ څوک.

**فائده**: دده په دغه وخت كي د مؤمن ورور هغه نصيحت ور پياد سو چي دی يې له شركه منع كاوه او په دې پوه سو چي ماته دا ټوله مصيبت د شرک له سببه راپېښ سو، نو تمنى ددې يې وكړه چي كاشكي زه موحد وای مشرک نه وای.

**پوښتنه**: په دې پښېمانۍ سره دی مسلمان وګرځېدی، او سره ددې چې په حديث شريف کې راغلي دي الندم هو التوبة؟

**ځواب**: روح البيان وايي ولما كان الندم ورغبته في الايمان لطلب الدنيا لم يكن قوله هذا توبة وتوحيداً لخلوه عن الاخلاص. او ابن الشيخ په سورة الانعام کې وايي الرغبة في الايمان والطاعة لاتنفع الا اذا كانت رغبة لكونه ايماناً وطاعةً. اما الرغبة فيه لطلب الثواب وللخوف من العقاب فغير مفيدة انتهى.

**درويش وايي**: چې د ابن الشيخ رح غرض په ايمان د اخص الخواص وي، ورنه تو له مؤمنان په ايمان د ثواب د جنت په اخيرت کې رغبت لري او تو له مؤمنان په ايمان کې له عقاب څخه د خدای په دوزخ سره په آخيرت کې بېرېدله او د "قل انما انا بشير ونذير الآية هم دغه معنى ده، او مظهري وايي چې ظاهره زما په نيز داده چې دغه كافر اصبح كفيه في الدنيا چې باغونه يې خراب وليدل او په ورځ د قيامت چې دی خپل ځای په جنت کې ووينې چې د دنيا په کفر سره يې بدل کړی په دوزخ سره او دا صحيح خبره او مجمع عليها ده چې ايمان د ورځې د آخرت نه ايمان دی او نه فائده لري ولهذا قيل لايدخل النار الا مؤمن يعني مؤمن يوم القيامة فقط لان جميع الكافرين يؤمنون يوم القيامة.

**درويش وايي**: چې علامة بغداد السيد محمود آلوسي رح په روح المعاني کې وايي چې بعض علماً وايي چې دا قول د کافر دي توبه وي له شرک څخه او ندم دي ږ پر شرک باندې فيكون تجديداً للايمان لان ندمه على شركه فيما مضى كما يدل عليه قوله لم اشرک يشعر بانه آمن في الحال فكانه قال آمنت بالله الآن وليت كان ذالك اى الايمان بالله اولاً يعني باغونه به يې هم نه خرابېدلای. په رد کې ددې قول آلوسي رح وايي چې مجرد ندم پر کفر لايكون ايماناً وان كان الندم على المعصية للمؤمن قد يكون توبةً اذا عزم ان لايعود اليها وكان الندم على المعصية من حيث كونها معصية لا لاجل العذر لکه يو غل چې په سترګو ړوند سي وايي زما له غلا څخه آئينده توبه ده كما صرح به في المواقف للقاضي عضد الملة والدين ولم يتحقق ههنا من الكافر المذكور ندم على الكفر من حيث هو كفر بل بسبب هلاک جنتيه والآية فيما بعد ظاهر ايضاً في انه لم يتب عما

كفر به وهو انكار انتهى قول الآلوسي رحمه الله مع زيادة يسيرة تشريح قوله.

وَلَمْ تَكُن لَّهُ فِئَةٌ يَنصُرُونَهُ مِن دُونِ اللَّهِ وَمَا كَانَ مُنتَصِرًا ﴿٤٣﴾

او نه وُ دې كافر لره يو جماعت چې دده سره دې كومك وكړي په دفع كې د عذاب يوم القيامة كما مر من قول المظهري او يا دي هلاك سوى باغ بيرته راوګرځوي يا مثل د هغه په دنيا كې كما هو مفاد قول البغدادي رحمه الله، پرته له خداى ﷻ څخه لكن خداى ﷻ مرسته (كومك) نه ورسره كوي لكفره. او نه وُ دغه كافر چې خپل ځان دې په خپل قوت سره خلاص كړي له انتقام څخه د خداى ﷻ.

هُنَالِكَ الْوَلَايَةُ لِلَّهِ الْحَقِّ ۚ هُوَ خَيْرٌ ثَوَابًا وَخَيْرٌ عُقْبًا ﴿٤٤﴾

(مظهري رحمه الله د هنالک ترجمه په بعث بعد الموت سره كړې ده. او روح البيان داسې ترجمه كړې ده (دروقت زوال نعمت از كافر) او روح المعاني وايي في تلك الحال الذي وقع فيه الاهلاک آه. لكه روح البيان چې معنى كړې وه، يعني پر هر تقدير تصرف او نصرت) خداى لره دى چې حق او ثابت او حي لايموت دى. او خداى رحمه الله افضل دى از روى جزا لاهل طاعته تر بل چا. ولي خداى ﷻ چې قادر مطلق دى ثواب وركوي و اهل طاعت ته په دنيا كې على حسب حكمته او په اخيرت كې ثواب عظيم مؤبد په جنت دار السرور والخلد سره وركوي بخلاف غيره تعالى. ولي د هغو ثواب په مشيت پوري د خداى ﷻ تعلق لري او سره د هغو ثواب او عوض وركول و چاته حقير فاني شئ دى فقط "وخير عقبًا" او خداى ﷻ خير دى په جزا كې اهل طاعت ته تر بل چا.

**فائده:** جزا ته ولي عقبى وايي لانه يعقب الطاعة.

وَاضْرِبْ لَهُم مَّثَلَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا كَمَاءٍ أَنزَلْنَاهُ مِنَ السَّمَاءِ

"واضرب" اى بين يا محمد ﷺ ستا قوم يعني كفار مكه ته حال غريب د ژوند د دنيا (چې اول بنه سرسبز او شاداب وي او سړى په خوشاله وي او ژر زوال لري) لكه اوبه د باران چې موږ اورولو له اسمان څخه.

**پوه سه:** چې "كما" خبر د مبتدأ محذوفي دى اى هو كما.

فَاخْتَلَطَ بِهٖ نَبَاتُ الْاَرْضِ فَاَصْبَحَ هَشِيْمًا تَذْرُوْهُ الرِّيٰحُ ؕ

نو سره خلط او گډوډ سي په هغو اوبو نباتات د ځمکي يعني يو په بل جاروځي په سبب د کثرت او د ګڼوالي. بيا وګرځي دغه نباتات لږ زمانه وروسته چي د خزان وخت يې ورسيږي وچ او توک توک چي تيت وپرک يې کړي بادونه. يعني باد چي پر راوالوزي يوه خوا او بله خوا ته دا وچ لرګي بوسيده وپاشي.

**فائده:** مشبه به د حيوة يوازي اوبه نه دي بلکې هغه حالت منتزعه له مجموع څخه يعني کيفية النباتات چي شنه کيږي اولاً په اوبو سره او تر بنه دل آراشي وروسته عنقريب وچ سي او مات سي او باد يې يوه او بلې خواته وپاشي فيصير کان لم يکن شيئًا موجوداً على الارض. يعني ژوند د دنيا داغسي سريع الفنا دی.

وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ مُّقْتَدِرًا ﴿۴۵﴾

او دی خدای ﷻ پر هر شي من النباتات واليبس وازارة للرياح والافنا بالکلية.

اَلْمَالُ وَالْبَنُوْنَ زِيْنَةُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ

مال من النقود والمفروشات الفاخرة والبساطين المثمرة. او زامن چي په دې تولو خلګ فخر کوي او زړه بال بال په خوشاله کوي. دا شيان ټوله يو بنائست دی د ناقص ژوند چي عنقريب به فنا کيږي.

وَالْبٰقِيٰتُ الصّٰلِحٰتُ خَيْرٌ عِنْدَ رَبِّكَ ثَوَابًا وَّخَيْرٌ اَمَلًا ﴿۴۶﴾

او هغه اعمال الصالحة من الصلوة والصيام والصدقة وغير ذالک چي مهوه يې باقي ده تر ابده چي عبارت د رضا الرحمن ده او جنات باقيه څخه دی چي ابداً باقي ده. غوره او ښه ده په نيز د خدای ستا من الاموال والبنين. ولي چي هغه زاد الآخرة نه دي بلکې فقط زينة الدنيا دي او په عين حال کي سر درد دی. ښه ازروی ثواب او فائده او خير دی از روی اميد چي انسان اميد ورته وکړي. بغوي رحمه الله له علي بن ابي طالب رضي الله عنه څخه نقل کړی دی چي مال او اولاد حرث الدنيا دي. او اعمال صالحه حرث الآخرة دي. وقد يجمعها الله تعالى لاقوام کسليمان بن داوٗد عليهما السلام.

**درویش وایي**: چي د خدای ﷻ نظام دی بعض انسانانو ته خدای فقط حرث الآخرة ورکړي وي کفقرا المهاجرین بلال وصهیب وعمار بن یاسر واصحاب الصفة رضي الله عنهم او نور فقرا و اهل الله د امت مرحومه، او بعض انسانانو ته یې فقط حرث الدنیا ورکړه سوې وي لکه فرعون، نمرود، ابوجهل و اضرابهم لعن الله علیهم، او بعض بعض انسانانو ته یې حرث الدنیا و حرث الآخرة دواړه ورکړي وي لکه اغنیاء د انبیاء علیهم السلام او اغنیاء د اصحاب کرامو کعثمان وعبدالرحمن بن عوف و اضرابهما رضي الله عنهما او اغنیاء د اولیاء الله د امة مرحومه رحمهم الله، او بعض انسانانو ته یې نه حرث الدنیا او نه حرث الآخرة ورکړې وي کفقرا اهل الشرک اذا ماتو علی شرکهم لا یسئال عما یفعل وهم یسئلون. له ابی سعید الخدري رضي الله عنه څخه روایت دی "ان رسول الله ﷺ قال استکثروا من الباقیات الصالحات" چا ورته وویل وماهن باقیات الصالحات؟ یعني باقیات صالحات څه شی دی "قال رسول الله ﷺ التسبیح سبحان الله والتهلیل لا اله الا الله، والتحمید الحمد لله، والتکبیر الله اکبر، ولاحول ولاقوة الا بالله فانها تدفع (۹۹) بابًا من الضر ادناها الهم، رواه العقیلي".

**درویش وایي**: چي مثل ددې حدیث احمد، ابن حبان او حاکم رح روایت کړی دی او حدیث نعمان بن البشیر مرفوعًا هم راغلی دی. او نور ډېر حدیثونه په روایاتو مختلفه وو سره راغلي دي په مذکوره باقیاتو صالحاتو کي.

سعید بن جبیر، مسروق او ابراهیم رحمهم الله وایي چي باقیات الصالحات پینځه لمونځونه دي ویروی هذا عن ابن عباس رضي الله عنهما.

**درویش وایي**: چي عبارت د باقیات صالحات عام دی. لکن اسانه د باقیات چي د مؤمن تر قدرت لاندي دي دغه مذکورات دي. ځکه روح البیان یې داسي تفسیر کړی دی "من الصلوة والصوم واعمال الحج وجمیع الکلم الطیب یعني سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله والله اکبر ونحو ذالک" په صحیح حدیث کي راغلي دي چي علیه الصلوة والسلام و اصحاب کرامو رضي الله عنهم ته وویل درواخلئ سپرونه! خلګو ورته وویل "امن عدو حضر" یعني دښمن راغلی دی؟ قال لا بل من النار، قال علیه السلام سبحان الله الی اخیر الکلمات.

وَيَوْمَ نُسَيِّرُ الْجِبَالَ وَتَرَى الْأَرْضَ بَارِزَةً ۙ وَّحَشَرْنٰهُمْ

لفظ د یوم منصوب په اذکر مقدر دی یعني ذکر کړه خلگو ته هغه ورځ چي موږ غرونه د بېخه وکاږو او بیا یې لکه ګرځ او باد منتشر وګرځوو، او ته به وینې ځمکه ایها المخاطب الغیر المعین ښکاره یعني د ځمکي پټونکی شی به نه وي من الجبال والاشجار والقصور والبیوت وغیر ذالک مما یکون ساتراً للارض، کذا قال ابن ابي حاتم راویًا عن قتادة رح "وحشرناهم" او موږ به راوباسو ټوله انسانانو له قبرو او نورو ځایو څخه.

**سوال:** حشر د خلگو خو وروسته تر تیسیر د جبال او د ځمکي تر بروز دی، نو "حشرنا" په صیغه د ماضي څرنګه راغله؟

**ځواب:** لپاره د تیقن د حشر لکه ماضي شی چي متحقق دی.

فَلَمْ نُغَادِرْ مِنْهُمْ أَحَدًا ﴿٤٧﴾

نه پرېږدو موږ یعني دننه په ځمکه کي له خلګو څخه هیڅ څوک.

وَعُرِضُوا عَلَىٰ رَبِّكَ صَفًّا ط

او پېش به کړل سي پر رب ستا یامحمد په حال کي د صف.

**پوه سه:** چي "صفًا" مفرد دی په ځای کي د جمع راغلی دی کما في قوله تعالی "ثم یخرجوکم طفلاً ای اطفالاً" او حال دی له ضمیر څخه د "عرضوا" ای کون الناس المحشورین مصتفعین من المسلمین والکفرة.

**پوښتنه:** و خدای ﷻ ته د پېښېدلو څه معنا ده؟

**ځواب:** کلام په حذف د مضاف دی ای علی حکم ربک وحسابه.

**درویش وایي:** چي مظهري رح داسي ترجمه د "صفًا" کړې ده لایحجب احد احداً، نو ددې مقتضی خو داده چي یو صف به وي وهذا بعید جداً، والصواب ماقال صاحب روح البیان، والمعنی صفوفًا بعضهم ورا بعض غیر متفرقین الخ.

لَقَدْ جِئْتُمُونَا

په تحقیق تاسي راغلاست موږ ته.

**درویش وايي:** چې د اعراب له لاري دا عبارت حال دی له ضمیر څخه د "عرضوا" په تقدیر ددې عبارت مقولاً في حقهم لقد آه، او ورته اعراب په حال کې د رفع هم راغلی دی نحو "زَیدٌ اضرِبه" نحات وايي چې زید مبتدأ ده اضرب په صیغه د امر یې خبر دی، چونکه اضرب په صیغه د امر انشأ ده، نحات وايي چې انشأ نه خبر کېدای سي او نه صفت وغیرهما، علم نحو تقدیر د زید اضرب داسې بیان کړی دی زید مقول في حقه اضربه. او داسې احتمال هم سته چې فعل ورسره مقدر کړل سي ای فیقال لهم آه والمآل واحد.

كَمَا خَلَقْنٰكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍۭ

لکه ما چې پیدا کړي واست تاسې اول وار یعنې چې لغ واست او په پښو موهم شی نه ؤ او نانستته واست، په حدیث شریف کې چې روایت یې بخاري، مسلم او ترمذي کړی دی له ابن عباس رضي الله عنه څخه دی وايي چې قام رسول الله ﷺ وقال یا ایها الناس انکم تحشرون الی الله حفات "لڅي پښې" مشاة "پیاده" عرات "لغ لغړ (بربنډ) عزلاً "نانستته" بیا علیه الصلوة والسلام دا آیت وواېه "کما بدأنا اول خلق نعیده" یعنې دا آیت یې دلیل د خپلې وینا وواېه "واول من یکسی في الخلائق ابراهیم علیه السلام" او اول هغه څوک چې کالي په اغوستل کېږي ابراهیم علیه السلام دی په خلګو کې.

**درویش وايي:** چې دا ددې سببه چې نمرود دی اور ته لغ ور وغورځاوه په منجنیق کې؛ او بخاري و مسلم له عائشې رضي الله عنها څخه روایت کړی دی "قالت قال علیه الصلوة والسلام یحشرون یوم القیامة حفات عرات عزلاً" دې ورته وویل الرجال والنسأ وینظر بعضهم الی بعض، قال علیه السلام یا عائشة الامر یومئذ اشد من ذالک" یعنې یو د بل فرج ته نه ګوري ولې تو له خلګ په ځان پورې حیران وي.

**درویش وايي:** چې ورته روایتونه نور هم ډېر راغلي دي، دلیل د ټولو هغه آیت دی "لکل امرئي منهم شأن یغنیه. امام قرطبي په خپل تفسیر کې وايي چې دا حدیثونه چې د عرات لفظ پکښې راغلی دی د هغه حدیث سره منافات نه لري چې "ان الموتی یتزاورن في اکفانهم في قبورهم، لان ذالک یکون في البرزخ یعني حال کونهم في القبور" چې له قبرو څخه راوځي عرات به وي، لکن:

دغو احادیثو سره معارض دی چي ابوداؤد، حاکم او بیهقي رح یې روایت کړی دی چي د ابو سعید خدري رضي الله عنه چي وفات نژدې سو، نو یې کالي راوغوښتل او وایې اغوستل او بیا یې وویل چي ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اورېدلي دي چي ده یې ویل "ان المیت یبعث في ثیابه التي یموت فیها. امام قرطبي رح وایي چي بعض علماؤ په ظاهره د دغو حدیثو چي مړي په خپلو کالو کي حشر کېږي (وهذا بعید لانه ورد في الحدیث النبوي اول ما یبتلی من المیت اکفانه او کما قال، دویم دا چي مقبرې د مؤمنانو په سبب د مرور د سړک یا د ویالې د جاري کولو لپاره نبش سوي دي ولیس في القبور الا عضامهم فکیف یصح الحمل علی ظاهر هذه الاحادیث") قرطبي رح وایي چي اکثره علماء دا احادیث پر شهداؤ حمل کړي دي چي دوی شرعاً کما جاء في حدیث شهداء الاحد په خپلو جامو کي دوی په کښې قتل سوي وي چي په وینو هم ککړ وي دفن کېږي. نو ابو سعید الخدري رضي الله عنه دي دا حدیث د شهداء په باره کي اورېدلی وي فحمله علی العموم.

**درویش وایي:** چي ځواب هم بعید دی ولي چي څرنګه ګمان کېږي چي پر یو ستر صحابي ابو سعید الخدري رضي الله عنه چي ده دي دا حدیث نبوي د شهداء په باره کي اورېدلي وي او دی دي په خپل رایه سره پر عموم د امواتو حمل کوي بلکې هغه وجه د جمع د احادیثو متعارضه وو په حسب د ظاهر چي بیهقي رح کړې ده چي بعض اموات یبعث عاریاً وبعضهم في اکفانهم د بېره په زړه پوري او زیبا ده والله علی کل شئ قدیر والله اعلم.

بَلْ زَعَمْتُمْ اَلَّنْ نَّجْعَلَ لَكُمْ مَّوْعِدًا ﴿٤٨﴾

بلکې ستاسي زعم باطل ؤ ایها الکفرة چي هر ګز موږ نه وګرځوو تاسي لره یو وخت د پوره د وعدې د بعث او نشور او تاسي د انبیاء علیهم السلام په دې موضوع کي تکذیب کاوه.

**یوه سه:** چي کلمه د "بل" لپاره د انتقال ده من قصة الی قصة اخری. او بعض علما هغه احادیث چي میت یبعث في ثیابه حمل کړی دی پر عمل صالح د میت تشبیهاً له بالثوب لقوله تعالی "ولباس التقوی ذالک خیر"

**حکایت**: د عربو باچاهانو تاریخ وایي چي سلیمان بن عبد الملک چي اووم خلیفه د مسلمانانو ؤ د مروانیانو له قبیلې څخه یو وخت یې ابو حازم رح ته وویل چي دا څه سبب دی چي زمونږ قیامت نه خوښیږي. ابو حازم رح ورته وویل چي له دې سببه چي تاسي دنیاوي ژوند ډېر اباد کړی دی او اخروي ژوند مو خراب کړی دی، نو د چا زړه غواړي چي د قصر او کوټې څخه و خرابې ته نقل سي. سلیمان ورته وویل صدقت یا اباحازم، بیا سلیمان پوښتنه څني وکړه چي کاشکي زه خبر وای چي موږ لره به په ورځ د قیامت څه شی وي عندالله. ابو حازم رح ورته وویل که چېري ستا دا خوښه وي له قرآن کریم څخه دا حال معلوم کړه. سلیمان ورته وویل چي په قرآن کي یې چېري پیدا کړم؟ ابو حازم رح ورته وویل په دغه آیت کي "ان الابرار لفي نعیم وان الفجار لفي جحیم" بیا سلیمان وویل چي زمونږ پېشېدل به خدای پاک ته څرنګه وي. ابو حازم رح ورته وویل چي محسن بنده به داسي و خدای ﷻ ته پېښېږي لکه غائب سړی په سفر ممتد چي کور ته ورځي څومره خوشاله وي. او ګناه کار سړی به داسي خدای ﷻ ته ورځي لکه یو مریی چي له بادار څخه تښتېدلی وي او بیر ته مجبوره سي او بادار ته ور روان وي. نو څومره به غمجن او بېرېږي فبکی سلیمان بکاءً شدیداً انتهی الحکایة.

**درویش وایي**: وهذه الحکایة في الظاهر قصة وفي الحقیقة موعظة حسنة.

سعدي شیرازي رح وایي:

نریزد خدا آب روی کسی....... که ریزد گناه آب چشمش بسی
بترس از گناهان خود این نفس ....... که روز قیامت نترسی زکس
بر اندیش از بنده پر گناه ....... که از خواجه غائب شود چند گاه
اگر باز گردد بصدق ونیاز ....... بزنجیر وبندش نیارند باز

یعني ګناه کار بنده که په رښتیا توبه وکاږي او خدای ﷻ ته عجز وکړي. نو خدای ﷻ د قیامت په ورځ نه و پښتو ته ځنځیر د دوږخ وراچوي او نه یې په محبس کي د دوږخ بندي کوي.

## وَوُضِعَ الْكِتٰبُ فَتَرَى الْمُجْرِمِيْنَ مُشْفِقِيْنَ مِمَّا فِيْهِ

لام لپاره د جنس دی یعني عمل نامې د خلګو به په راسته لاس کې ورکړل سي یا په چپه لاس کې، کریمه "اقرأ کتابک کفی بنفسک الیوم علیک حسیباً" ته به ووینې هغه کسان چي مجرمان وي یعني چي عمل نامې یې په چپه لاس کي ورکړل سوي وي، بیربږي به له هغو ګنهو څخه چي په دې کتاب کي به وي یعني ګنهونه د دنیا یې ورپیاد سي، نو بیربږي چي هغه په دې کتاب کي دي او که څرنګه.

## وَيَقُوْلُوْنَ يٰوَيْلَتَنَا مَالِ هٰذَا الْكِتٰبِ لَا يُغَادِرُ صَغِيْرَةً وَّلَا كَبِيْرَةً اِلَّآ اَحْصٰىهَا

هغه وخت چي دوی خپل عمل نامه ووایي "ما" استفهام لپاره د تعجب دی څه شان دی ددې کتاب چي نه یې دی پرې ایښی "صغیرة ولاکبیرة" ابن عباس رضي الله عنه وایي چي صغیره تبسم دی بې ځایه او کبیره خندا قهقهه ده، او سعید بن جبیر رح وایي چي صغیره لکه د بېګانه ښځي لمس او مچه په شهوت سره، او کبیره زنی ده "الا احصاها" مګر هغه یې شمېرلې ده او تر احاطې لاندي یې راوستلې ده.

**درویش وایي:** چي دا صرف مثالونه د صغیره او کبیره ګناهو دي ورنه تعداد د صغائرو او کبائرو بېخي ډېر دی.

**پوه سه:** چي د کبائرو ګنهو بیان په سورة النسا کي تېر سوی دی في تفسیر قوله تعالی "ان تجتنبوا کبائر ما تنهون عنه نکفر عنکم سیأتکم، یعني الصغائر.

**پوه سه:** چي مستثنی په محل کي د نصب ده مفعول ثاني د لایغادر کذا قال المظهري رح، له سهیل بن سعد رضي الله عنه څخه روایت دی قال قال رسول الله ﷺ ایاکم ومحقرات الذنوب مثل قوم نزلوا ببطن واد (نو خلګ بټي راجمع کوي یو یولرګی بل بل لرګی راوړي وهکذا دومره لرګي سره جمع سي چي ډوډۍ په پخېږي) فانضجوا خبزتهم (نو ډوډۍ په پخه کړي، حاصل د حدیث دادی چي صغیره ګنهونه چي ډېر سي سبب د دوږخ د اور ګرځي والله اعلم بمراد رسوله ﷺ، حافظ شیرازي رح میګوید:

دهقان سال خورده چه خوش ګفت باپسر
ای نور چشم من بجز از کشت نه دروی

سعدي رحمه الله

کنون وقت تخمست اگر پروری ..... گر امید داری که خرمن خوری
مکن عمر ضائع بافسوس وحیف ..... که فرصت غنیمت والوقت سیف

وَوَجَدُوا مَا عَمِلُوا حَاضِرًا

او دوی به پیدا کړي هغه شیان چي دوی یې عمل کړی د حاضر یعني لیکلي به عمل نامو کي، او یا معنی داده چي جزا د ماعملوا حاضره وي.

**یوه سه:** چي کلمه د ما که موصوله وي، نو عائد یې محذوف دی ای عملوه او که مصدریه وي، نو معنی یې داده چي عمل خپل.

وَلَا يَظْلِمُ رَبُّكَ أَحَدًا ﴿٤٩﴾

او ظلم نه کوي رب ستا یا محمد (ﷺ) پر هیڅ چا که کافر وي او که مسلمان، که عاصي وي او که مطیع.

**یوه سه:** چي د ظلم منفي له خدای ﷻ څخه معنا داده چي پر بنده باندي گنهونه بالا تر ماعمل نوشته وي، او یا عذاب دومره ورکړي چي دده تر گناه بالا وي.

**فائده:** ابن ماجه د ابو موسی اشعري رضي الله عنه څخه روایت کړی دی یعرض الناس یوم القیامة ثلاث عرضات، فما عرضتان فجدال ومعاذیر، واما الثالثة فتطایر الصحف بالایدي فآخذ بیمینه وآخذ بشماله، واخرج الترمذي عن ابي هریره رضي الله عنه نحوه، حکیم ترمذي وایي چي جدال یعني ناحقه بحث د دښمنانو د خدای ﷻ له خوا کیږي، ولي چي دوی ته د خدای جلال نه دی معلوم، ددوی گمان داوي چي په ناحقه جدال به مونږ د خدای ﷻ له عذابه خلاص سو، مثلاً وایي ربنا ماکنا مشرکین ربنا هؤلاء شرکائنا اضلونا الی غیر ذالک، والمعاذیر لله تعالی یعتذروا الی آدم والی انبیائه ویقیم حجته عندهم علی الاعداء فیبعثهم الی النار، واما العرضة الثالثة فللمؤمنین وهو العرض للمغفرة لا ان یخلوهم فیعاتب مرید عتابه في تلک الخلوة حتی یذوق وبال الحیاء والخجل ثم یغفر لهم ویرضی عنهم یعني دغه حیا او خجالت یې قائمقام د عذاب وگرځي.

وَإِذْ قُلْنَا لِلْمَلَٰٓئِكَةِ ٱسْجُدُوا۟ لِءَادَمَ فَسَجَدُوٓا۟ إِلَّآ إِبْلِيسَ

په یاد کړه هغه وخت و خلګو ته چې موږ وویل ملکو ته یعني عمومًا چې سجده وکړئ آدم ته (یا سجده د سرکښته کولو چې تحیه د امم سابقه وه یا یې آدم قبله ورته وګرځول سجده د خدای ﷻ لپاره وه) نو ټولو ملکو په اتفاق او اجماع کما في سورة البقرة سجده وکړه، خو نه وکړه سجده ابلیس چې پخواني نوم یې عزازیل ؤ.

**پوښتنه**: دا قصه خدای ﷻ مکرره په ډېرو ځایو د قرآن کریم راوړې ده، د تکرار حکمت یې څه دی؟

**ځواب**: دا قصه خدای ﷻ مقدمه ګرځولې ده د هغو امورو لپاره چې مقصود بیان د حال د هغو امورو په هغو ځایو کې وي مثلاً په دې ځای چې خدای ﷻ شفاعت بیانوي د هغو کسانو چې دوی فخر کوي او دا کار ددوی یې بد و بللی ددې تاکید یې په دې وکړی چې دا له سنتو څخه د ابلیس دی، او یا دا چې خدای بیان کړی حال د هغو کسانو چې په دنیا سره مغرور وه او د هغو کسانو چې له دیا څخه معرض وه او سبب د اعتماد ددوی دنیا سره حب الشهوات او تسویل د شیطان ؤ او خدای ﷻ اول دوی ته چې د زخارف څخه د دنیا دست بردار اوسئ، ولې چې هغه په معرض کې د زوال دي او اعمال صالحه خیر و ابقی دي، اوس خدای ﷻ نفرت ورکوي دوی ته له شیطان څخه چې دی ستاسي قدیم دښمن دی، دا ده وجه د تکرار ددې قصې په قرآن کریم کې.

كَانَ مِنَ ٱلْجِنِّ فَفَسَقَ عَنْ أَمْرِ رَبِّهِۦٓ

دا جمله مستأنفه لپاره د بیان ده، نه سجده د ابلیس کانه قیل ماله لم یسجد جواب ورکړل سو چې دی د جن له قبیلې څخه ؤ، نو یې روی ګرداني وکړه له امتثال څخه د امر د رب ده، له دې څخه دا معلومه سوه چې ملکي لایعصون من امر الله ابدًا ابلیس چې عصیان وکړی دی ملکه نه ؤ بلکې جني ؤ په اصل ذات کې، نو پر دې تقدیر استثنا د ابلیس استثنا منقطع ده، مثل جاءني القوم الا حمارًا، ددې

تائید قول د حسن رحمه الله کوي كان ابليس من الجن ولم يكن من الملائكة.

**درویش وايي:** چي پوره تفصيل ددې په تفسیر کي د سورة البقرة تېر سوی دی، او بعض مفسرين وايي چي ابليس که څه هم د جن له قبيلې ؤ لکن چونکه د لکو ملکو سره په اسمانو کي د خدای عبادت يې کاوه، نو هغو ملکو ته يې تغليب ورکړی او دی يې هم په هغو کي داخل وګڼی، بيا يې څندي استثنا کړی، نو استثنا بيا متصل ګرځي کما في قولهم جا القوم الفلاني الا زيدا، زيد چونکه يو سړی وي چي په قوم فلاني کي يوازي اوسېږي، نو هغو ته تغليب ورکوي او استثنا يې متصل ګرځي فافهم.

أَفَتَتَّخِذُونَهُ وَذُرِّيَّتَهُ أَوْلِيَاءَ مِنْ دُونِي وَهُمْ لَكُمْ عَدُوٌّ

آيا تاسي ګرځوئ دی او دده اولاد خپل دوستان يعني د دوی په قول او وسوسو عمل کوئ ماسوی له خدای ﷻ څخه، يعني ستاسي اصلي دوست خو خدای ﷻ ؤ. او حال دادی چي دوی ستاسي دښمنان دي، عاقل سړی خو بايد دښمن دوست نه وګڼي.

**پوه سه:** چي استفهام لپاره د انکار دی پر اتخاذ ددوی اولياء، او جمله د وهم لكم آه" حال ده د انکار د تاکيد لپاره.

**سوال:** "عدو" چي د "هم" خبر دی مفرد يې راوړی داسي نه وويل سول "وهم لكم اعداً"؟

**ځواب:** په قاموس کي وايي چي په فعول او په فعيل کي مفرد او تثنيه او جمع برابر دي، او "عدو" پر وزن د فعول دی فافهم.

بِئْسَ لِلظَّالِمِينَ بَدَلًا

بد دی شيطان او ذريه دده بدل له خدای څخه په ولايت او دوستی کي، بغوي رحمه الله وايي چي مجاهد رحمه الله له شعبي رحمه الله څخه روايت کړی دی چي يوه ورځ ناست وم چي يو سړي پوښتنه راڅخه وکړه هل لابليس زوجة، ما ورته وويل چي دا ماته نه ده معلومه، وروسته مي دا آيت په ياد سو "افتتخذونه وذريته الآية" فعلمت ان الذرية لاتكون الا

زوجة، نو هغه سړي ته مې ویل هو لري یې، شعبي رحمه الله له دې آیته دا وفهمول چې اولاد بې زوجې نسي کېدای قال الله تعالی في رد قول النصاری "عیسی ابن الله" انی یکون له ولد ولم یکن له صاحبة، څرنګه به خدای لره ولد وي او نسته خدای لره ماینه فتدبر، قتاده رحمه الله وایي چې شیطانان تولد لري لکه بني آدم چې تولد لري.

**درویش وایي**: چې روح المعاني، روح البیان، مظهري او امام غزالي رحمه الله د ابلیس د زامنو څو نومان راوړي دي او پر کومه وظیفه چې دوی ټاکل سوي دي هغه یې هم راوړي دي لکن فقیر د هغو له نقل څخه ډډه وکړه، له دې سببه چې تفسیر د پینځلسم جزء اوږد سو، ولې چې طویلي قصې پکښې راغلې لکه قصه د معراج بالتفصیل التمام او قصه د اصحاب کهف بما لامزید علیه او نور اوږده بیانونه.

مَآ أَشْهَدتُّهُمْ خَلْقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَلَا خَلْقَ أَنفُسِهِمْ

او ما نه وه حاضر کړي یعني ابلیس وذریته و پیدا کېدلو ته د اسمانو او ځمکې او نه و پیدا ئښت ته ددوی د ځانو، یعني بعض ددوی و خلق ته د بل بعض یعني چې زه له دوی څخه کومک (مرسته) وغواړم او یا مشوره ورسره وکړم په تدبیر کې د اوامرو د اسمانو او ځمکې، ولې چې خلق د اسمانو او ځمکې خو د ابلیس وذریته تر خلق دمخه وو، نو خلګ څرنګه ابلیس وذریته دده اولیا ګرځوي من دون الله تعالی.

وَمَا كُنتُ مُتَّخِذَ ٱلْمُضِلِّينَ عَضُدًا ﴿٥١﴾

او نه یم زه اخستونکی د هغو کسانو چې وظیفه یې ګمراه کول د خلګو وي یعني ابلیس وذریته یعني معاونان په خلق کې د یو شي حتی چې خلګ تو هم د شرکت ددوی وکړي د خدای ﷻ سره په بعضې احکامو کې د ربوبیت او ددوی سره تولی او دوستي مختاره کړي.

**سوال**: المضلین یې اسم ظاهر راوړی او سره ددې شیطان وذریته دمخه تېر سوي، نو چې د "مضلین" په ځای کې یې ضمیر راوړی وای اختصار به نه وای؟ لکه په "مااشهدتهم" کې چې یې ضمیر ورته راجع کړی دی؟

**ځواب**: اسم ظاهر یې په دې راوړی چې پر دوی حکم د اضلال وکړل سي او وصف ذم ددوی ذکر سي فافهم.

وَيَوْمَ يَقُولُ نَادُوا شُرَكَاءِيَ الَّذِينَ زَعَمْتُمْ

يعني ذكر كړه هغه ورځ چي خداى ﷻ ووايي و كافرانو مشركانو ته. ناري كړئ زما شريكانو ته الذين هغه شركا چي تاسي گمان فاسد كاوه چي دا شركا د خداى دي په عبادت كي وهي الاصنام يعني ددې لپاره چي زما عذاب ستاسي څخه دفع كړي، يا مو شفاعت وكړي لكه تاسي چي به ويل "هؤلاء شفعائنا".

فَدَعَوْهُمْ فَلَمْ يَسْتَجِيبُوا لَهُمْ وَجَعَلْنَا بَيْنَهُم مَّوْبِقًا

دوى ور ناري كړي د فرياد رسى په لهجه (مثلاً يا لات، ياعزى، يامنات الى غير ذالك) نو فريادرسي ونه كړي ددوى لكونها جمادات. او وگرځوو موږ په منځ كي د شركانو او ددوى د بتانو چي دوى آلهه ويلل "موبقًا" صيغه د ظرف مكان ده يعني ځاى د هلاك، كذا قال عطا والضحاك، وقال رئيس المفسرين عبدالله بن عباس رضي الله عنه چي موبق يوه شيله ده په اور كي، يعني هغه تواصل چي د مشركانو او ددوى د الهه وو تر منځ ؤ قطع سي، او فرا نحوي وايي وجعلنا تواصلهم في الدنيا هلاكًا في الآخرة، نو پر دې تقدير لفظ د بين په معنى د تواصل دى، او "موبقًا" مصدر ميمي دى.

وَرَأَى الْمُجْرِمُونَ النَّارَ فَظَنُّوا أَنَّهُم مُّوَاقِعُوهَا وَلَمْ يَجِدُوا عَنْهَا مَصْرِفًا

او ويني مشركان اور يعني دوزخ، ددوى يقين سي چي موږ وه دغه اور ته ور اچوي (په صحيح حديث كي راغلي دي چي د مشركانو چي دا ظن كيږي هغه وخت چي ددوى او د اور تر منځ مسافت د څلوېښتو كالو وي) او دوى نسي پيدا كولاى له اور څخه خلاصون كه "مصرفًا" مصدر ميمي وي، او يا ځاى د خلاصون كه ظرف مكان وي.

وَلَقَدْ صَرَّفْنَا فِي هَٰذَا الْقُرْآنِ لِلنَّاسِ مِن كُلِّ مَثَلٍ

او والله په تحقيق موږ بيان كړي دي په دې قرآن كي و خلكو ته لپاره د موعظت او د پوهني لپاره هر يو داسي عبارت چي لكه ضرب مثل په غرابت.

**درویش وايي:** چي مراد آيات د قرآن مجيد دي چي په رقم رقم عباراتو خدای پاک ذکر کړي دي.

## وَكَانَ الْإِنسَانُ أَكْثَرَ شَيْءٍ جَدَلًا

او دی انسان ډېر د شیانو از روی جدال يعني ناحقه بحث کونکی، ابن عباس ﷺ وايي چي مراد له انسان څخه النضر بن الحارث دی چي د عليه الصلوة والسلام سره به يې ناحقه بحث په قرآن کي کاوه، او کلبي رح وايي چي مراد څني ابي بن خلف الجمي دی. او بعض وايي چي مراد څني مطلق کفار دي کريمه "ويجادل الذين کفروا بالباطل.

## وَمَا مَنَعَ النَّاسَ أَن يُؤْمِنُوا إِذْ جَاءَهُمُ الْهُدَىٰ وَيَسْتَغْفِرُوا رَبَّهُمْ

او نه دي منع کړي خلگ يعني کافران له ايمان څخه. نو کلمه د "ان" مصدريه ده) هغه وخت چي دوی ته راغلی قرآن او اسلام من الله ﷻ. او بعض مفسرين وايي چي له هدی څخه رسول الله ﷺ مراد دی. پر هر تقدير حمل د هدی چي مصدر دی مبالغةً دی فافهم "ويستغفروا ربهم" عطف دی پر "يؤمنوا" ای عن الاستغفار مما صدر عنهم من الکفر والمعاصي.

## إِلَّا أَن تَأْتِيَهُمْ سُنَّةُ الْأَوَّلِينَ

مظهري رح وايي چي په آيت کي مضاف محذوف دی او مضاف اليه يې په ځای کي راغلی دی. نو اصل عبارت داسي دی "الا تقديران يأتيهم سنة الاولين" يعني سنتنا في الاولين من العذاب بالاستيصال. يعني تقدير الهي دوی کړي داسي دی چي پر دوی به لکه اولين عذاب د استيصال راځي، نو ځکه ايمان نه راوړي. او بعض تقدير د آيت داسي "الا طلب ان تأ تيهم سنة الاولين من معاينة العذاب وانتظار ذالک" ولي نضر بن الحارث واضرابه به ويل اللهم ان کان هذا هو الحق من عندک فامطرعلينا حجارة من السمآ.

## أَوْ يَأْتِيَهُمُ الْعَذَابُ قُبُلًا

يا راسي و دوی ته عذاب مخامخ قاله ابن عباس ﷺ وقال قتاده رح فجائة

(نابیره) او بعض مفسرین وایي قبل بضمتین جمع د قبیل ده ای اصناف العذاب نوعًا نوعًا.

**پوه سه:** چي قبلاً منصوب دی علی الحال له ضمیر څخه او یا له عذاب څخه.

## وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِينَ إِلَّا مُبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَ

او موږ نه دي استولي رسولان مگر بشارت کونکي بالثواب والجنة یعني د مؤمنانو ته به زېری کوي، او بېرونکي د کافرانو په عذاب او دوږخ سره یعني دوی پر دې قادر نه دي چي عذاب به پر خلگو یعني کفارو نازلوي، او نه مسلط پر ایمان ددوی بلکې وظیفه ده د رسولانو زېری کول او بېرول، نور عذاب او داسي نور د خدای ﷻ په مشیت کي دي.

## وَيُجَادِلُ الَّذِينَ كَفَرُوا بِالْبَاطِلِ

او ناحقه بحث کوي هغه کسان چي کافران دي یعني د رسولانو سره، کله به یې داسي ویل ابعث الله بشراً رسولاً، او کله به یې ویل "ما انتم الا بشر مثلنا" او کله به یې ویل "لوشآ الله لانزل ملائکة، او کله به یې ویل "لو لا انزل هذا القرآن علی رجل من القریتین عظیم" وغیر ذالک من خرافاتهم.

## لِيُدْحِضُوا بِهِ الْحَقَّ وَاتَّخَذُوا آيَاتِي وَمَا أُنذِرُوا هُزُوًا

چي دوی زائل کي په دې جدال باطل سره حق چي دین د اسلام او قرآن دی، او دوی گرځول زما آیات په قرآن کریم کي او هغه عذاب چي دوی په بېرول کېدل د پسخند ځای "هزواً" مصدر دی په معنی د مهزو به دی، دوی به ویل لو نشآ لقلنا مثل هذا، او یا به یې ویل یعلمه بشر، او کله به یې ویل "ان هذا الا اساطیر الاولین، او کله به یې ویل "لولا یعذبنا الله بما نقول وامثال ذالک من الخرافات".

## وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن ذُكِّرَ بِآيَاتِ رَبِّهِ

څوک دی لوی ظالم (والاستفهام للانکار یعني نسته) چي ده ته وعظ وکړل سي په آیاتو سره د رب دده چي آیات د قرآن عزیز دي چي د حقیت دلیل یې ښکاره دی، چي هیڅ بشر اتیان د مثل دده نسي جوړولای.

فَأَعْرَضَ عَنْهَا وَنَسِيَ مَا قَدَّمَتْ يَدَاهُ

دی مخ واړوي له هغه څخه یعني فکر نه پکښې کوي چې سبب د ایمان یې گرځېدلی وای. او هېر یې سي هغه څه چې دده تر لاسو څه بد بد علمونه دمخه ده کړي دي من الکفر والاعمال الخبیثة چې له کفره څخه پیدا سوي وه یعني د هغو په عاقبت کې فکر هم نه وکړي.

إِنَّا جَعَلْنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ أَكِنَّةً أَن يَفْقَهُوهُ وَفِي آذَانِهِمْ وَقْرًا

موږ گرځولي دي پر زړو ددوی پردې چې ظلمات د کفر دي.

**پوه سه:** چې دا جمله علت ده د اعراض او نسیان ددوی "ان یفقهوه" ای لئلا یفقهوه واللام للعاقبة. "وفي آذانهم وقرا" عطف دی پر علی قلوبهم ای جعلنا في اذانهم په غوږو کې ددوی ثقل او کنوالي چې قرآن کریم په سماع د قبول نه اوري که یې څه هم ظاهراً اوري.

**سوال:** ضمیر ددې عبارت "اعني یفقهوه" خو راجع و آیاتو ته دی. نو ولي یې مفرد مذکر راوړی. او آیات هم مونث او هم جمع دی؟

**ځواب:** نظر و معنی ته د آیات یې کړی دی چې قرآن کریم دی.

وَإِن تَدْعُهُمْ إِلَى الْهُدَىٰ فَلَن يَهْتَدُوا إِذًا أَبَدًا ﴿٥٧﴾

که ته یا محمد (ﷺ) دوی ته دعوت د هدایت ورکړې یعني د صراط مستقیم، نو هرگز دوی لاري ته د هدایت او اسلام نه راځي دغه وخت چې ددوی پر زړو "اکنة" دروند والی دی او په غوږو کې یې وقر تر ابده پوري، ولې چې ددوی استعداد فطري هم له منځه ولاړی.

**پوه سه:** چې دا آیت په دې باره کې دی چې خدای ﷻ علم پر دوی لري چې دغه کسان ایمان نه راوړي.

وَرَبُّكَ الْغَفُورُ ذُو الرَّحْمَةِ ۖ لَوْ يُؤَاخِذُهُم بِمَا كَسَبُوا لَعَجَّلَ لَهُمُ الْعَذَابَ

او ستا خدای (عزوجل) یا محمد (ﷺ) ډېر بخښونکی دی (نو دا صیغه د مبالغې ده) خاوند د رحمت دی پر بندگانو، که دوی خدای ﷻ نیولي وای په

عملو ددوی من الکفر والمعاصي، نو ژر به یې ورکړی وای و دوی ته عذاب.

**پوه سه**: چې دا دلیل دی پر مغفرت او رحمت د خدای ﷻ، نو دا نتیجه د مغفرت او رحمت د خدای ﷻ ده چې قریشو ته یې مهلت ورکړی دی مع شدتهم وتجاوزهم عن الحد في عداوة النبي ﷺ.

## بَل لَّهُم مَّوۡعِدٞ لَّن يَجِدُواْ مِن دُونِهِۦ مَوۡئِلٗا ۝٥٨

بلکه دوی ته یو وخت معین د عذاب سته چې ورځ د قیامت ده یا ورځ د بدر ده چې دوی به هرگز نه کړي پیدا په هغه وخت کې چې موعد راسي ځای د پناه او د نجات من آل اذا نجا.

## وَتِلۡكَ ٱلۡقُرَىٰٓ أَهۡلَكۡنَٰهُمۡ لَمَّا ظَلَمُواْ

او دغه قری الهالکة یعني اوسېدونکي ددې قریو ککفار قوم نوح، عاد، ثمود وامثالهم، موږ دوی هلاک کړه، په سبب ددې چې دوی ظلم مختار کړی بانواع المعاصي لکه کفار د قریشو.

**پوه سه**: چې موصوف چې "تلک" دی سره د صفته مبتدأ ده او خبر یې "اهلکناهم" دی، په "تلک القری" کې مضاف محذوف دی ای اهل تلک القری تاچې د ضمائرو مرجع پیدا سي فافهم.

## وَجَعَلۡنَا لِمَهۡلِكِهِم مَّوۡعِدٗا ۝٥٩

او موږ گرځولی دی لپاره د هلاک ددوی "موعداً" ای وقتاً معلوماً چې نه مقدم تر هغه وخت هلاکېږي او نه موخر. یعني کفار د قریشو به هم تر خپل موعد لایسبقون ولا یستأخرون.

## وَإِذۡ قَالَ مُوسَىٰ لِفَتَىٰهُ

او په یاد کړه هغه وخت چې وویل موسی بن عمران النبي علیه السلام المنزل علیه التورة خپل خادم ته.

**درویش وایي**: چې په دې توضیح کې د موسی علیه السلام زما غرض دادی چې

يهودان وايي چي د خضر عليه السلام سره ملاقات كونكى موسى، موسى بن عمران نه دى بلكې بل سړى دى د بني اسرائيلو څخه د موسى په نامه. لكن په صحيح حديث كې د بخاري وغيره راغلي دي چې دا موسى بن عمران عليه السلام ؤ "لفتاه" مشهوره داده چې فتا د موسى عليه السلام يوشع بن نون بن افرايم بن يوسف عليه السلام ؤ، لكن روح المعاني او مظهري وايي چې نون پلار د يوشع د آل څخه د افرايم نه ؤ په خپله زوى د افرايم بن يوسف نه ؤ لبعد الزمان بين نون وافرايم والله اعلم.

لَآ أَبْرَحُ حَتَّىٰٓ أَبْلُغَ مَجْمَعَ ٱلْبَحْرَيْنِ أَوْ أَمْضِىَ حُقُبًا ﴿٦٠﴾

اى لا زال اسير فحذف الخبر وهو اسير لدلالة حال موسى وهو السفر عليه ودلالة الغاية عليه وهو قوله. تر هغو چې زه رسېږم مجمع البحرين ته، ولې چې دا غاية ممتد شى غواړي وهو السير الحذوف. او يا به زه تګ كوم تر څو چې ډېره زمانه تېره شي.

**پوه سه:** چې مجمع صيغه د ظرف مكان ده. او مراد له بحرينو څخه بحر فارس او روم دى مما يلي المشرق، روح البيان، روح المعاني، مظهري، اما روح المعاني ددې دوو بحرينو په باره كې دومره ډېر روايات نور هم راوړي دي، او اول قول د مجاهد، قتاده وغيرهما دى. روح المعاني وايي لعل المراد مكان يقرب فيه التقائهما والا فهما لايلتقيان الا في البحر المحيط.

**درويش وايي:** چې بعض علما وايي چې مراد له بحرينو څخه موسى او خضر عليهما السلام دي لانهما بحرا علم. والمراد بملتقا البحرين موضع اجتماع موسى و خضر عليهما السلام دى.

**پوه سه:** چې "حقب" بضمتين اسم مفرد دى جمع يې "احقاب" ده او صحاح وايي چې جمع يې حقاب ده، قاموس وايي چې حقبة بضمتين اتيا كاله ده او عبدالله بن عمر رضي الله عنهما هم وايي چې حقب اتيا كاله ده. او بعض وايي چې اوويا كاله ده، په هر صورت مقصود د موسى عليه السلام مبالغه ده په طلب كې د خضر عليه السلام. بخاري او مسلم د سعيد بن جبير رضي الله عنه څخه روايت كړى دى "قال قلت لابن عباس چې نوف بكالي وايي چې موسى صاحب الخضر ليس هو موسى بني اسرائيل كما ؟ فقال كذب

عدو الله حدثنا ابي بن کعب رضي الله عنه انه سمع رسول الله ﷺ یقول ان موسی قام خطیباً في بني اسرائیل (یعني موعظت یې کاوه او یو بلیغ نصیحت یې وکړی) نو یو چا پوښتنه ځني وکړه ای الناس اعلم، ده ورته وویل انا فعتب الله علیه اذ لم یرد العلم الیه تعالی یعني داسي به یې ویلي وای چي خدای خبر دی چي څوک اعلم الناس دی. نو خدای ﷻ وحي ورکړې وده ته چي زما یو بنده دی په مجمع البحرین کي هغه اعلم دی تر تا "یعني في بعض العلوم" قال موسی یا رب فکیف لي به "زه به څرنګه د هغه سره ملاقات او طلب د علم به ځندي وکړم".

**تبصره:** موسی علیه السلام سره ددې چي نبي مرسل ؤ او تورات هم پر نازل سوی ؤ لکن په طلب پسي د مزید علم چي خدای ﷻ شخصیت د خضر علیه السلام وروښو روان سو، زموږ د زمانې ملایان چي په اصطلاح دستاربندي یې وکړه خصوصاً که د یو مسجد امام سو که څه هم جاهل مطلق وي، نو په علم احکام او فقه وغیره که یو څوک یو علمي پوښتنه ځندي وکړي دی شرمېږي که څه هم نه وي په خبر چي د یو عالم څخه چي تر ده ډېر ستر عالم وي پوښتنه ځندي وکړي او یا وسائل ته روایي چي زه نه یم په خبر فلاني عالم ته ورسه خامخا د خپلې خېټې یو حکم ورکوي، پای ته ورسېد له د فقیر تبصره، اوس بیرته د موسی د سفر د قصې پر لور.

خدای ﷻ ورته وویل چي یو ماهي پوخ کړل سوی درسره واخله په سفر کي د غذا پر ډول او په یوه تبوکری کي یې واچوه. نو هر ځای چي دا ماهي ورک سو یعني ژوندی سو دریاب ته شوه سو، نو هلته زما بنده یعني خضر علیه السلام موجود دی. نو موسی علیه السلام هغسي وکړه او یوشع بن نون یې د ځان ملګری کړی حتی چي یو مقام ته د دریاب پر غاړه ورسېدل یوه لویه ډبره وه او هوري یوه ښه چینه د اوبو وه او هورې دواړه بیده سوه، نو یوشع بن نون دمخه تر موسی علیه السلام راویښ سو د چینې په اوبو یې مخ او لاسونه پرېولل تبوکری ته راغلی د لاسو اوبه یې پر ماهي توی سوې، ماهي سره وښورېدی له تبوکری څخه دریاب ته غورځېدی "فاتخذ سبیله في البحر سربا" یعني داسي وګرځېدی لکه یو طاق

اصل نسیان خو د یوشع ده، لکن نسبت یې و دواړو ته وکړی له دې سببه چې ماهی خو مشترک زاد السفر ؤ بینهما یعني مجازاً الی موسی علیه السلام.

**پوښتنه**: موسی او یوشع بن نون خو اول و صخرة ته ورغله حتی چې ماهی هم په اول وار کې دریاب ته وغورځیدی، نو خضر علیه السلام په دغه وخت کې چیرې ؤ چې دوهمه پلا چې هغې صخرې ته راغله خضر علیه السلام یې پیدا کړی؟

**ځواب**: د خضر علیه السلام اصلي قیام گاه که څه هم دغه صخره ده لکن دی هر ځای ته د بعضې کارو لپاره په حکم د خدای جل جلاله ځي.

## فَٱتَّخَذَ سَبِيلَهُۥ فِى ٱلْبَحْرِ سَرَبًا ﴿٦١﴾

ای جعل الحوت بجعل الله لار خپله په دریاب کې خپل د تلو ځای، او بعض مفسرین وایي چې "سرب" شق طویل ته وایي، او دمخه په صحیح حدیث کې تیره سوه چې امسک الله عن الحوت جریة الماء، نو تر یو ځایه پوري دا اوبه لکه سوف داسي معلومیدلې چې په حدیث کې یې تعبیر په طاق سره ځندي کړی ؤ.

**پوښتنه**: چې سبیله مفعول اول دی د "اتخذ" او "سربًا" یې مفعول ثاني دی او في البحر یا حال دی له مفعول اول څخه یا د مفعول ثاني څخه.

## فَلَمَّا جَاوَزَا قَالَ لِفَتَىٰهُ ءَاتِنَا غَدَآءَنَا لَقَدْ لَقِينَا مِن سَفَرِنَا هَٰذَا نَصَبًا ﴿٦٢﴾

چې تیر سوه موسی او یوشع تر مجمع البحرین. وویل موسی و خپل ملګري ته راوړه هغه طعام یعني د ماهي غوښې، په تحقیق مونږ ته ورسیدله زمونږ له دغه سفره څخه ستړیا او تکلیف. راوي وایي چې موسی چې تر تاکلي ځای چې مجمع البحرین ؤ تیر سو، پر موسی خدای جل جلاله لوږه مسلطه کړه تاچې د ماهي معلومات ورته حاصل سي د یوشع له خوا بیرته به پر شا راسي. او په حدیث شریف کې راغلي دي چې موسی علیه السلام د ستړیا احساس نه کاوه تر څو چې تر موعد تیر سو یعني مجمع البحرین، نو یې لوږه محسوسه کړه.

**فائده**: غداً هغه طعام بولي چې د څاښت په وخت کې یې سړی خوري او عشا هغه طعام بولي چې ماښام یې خلګ خوري.

# قَالَ أَرَءَيْتَ إِذْ أَوَيْنَآ إِلَى ٱلصَّخْرَةِ فَإِنِّى نَسِيتُ ٱلْحُوتَ

یوشع بن نون ورته وویل ماته خبر راکړه ما انساني الحوت. دلته د یوشع وریاد سو، هغه وخت چي موږ پناه وروړه د صخرة ته یعني وروړسپدلو او هلته یده سوو، په تحقیق زما هېر سو ماهي یعني بیان د حال د ماهي و تاته. ومارئیت منه من العجب.

# وَمَآ أَنسَىٰنِيهُ إِلَّا ٱلشَّيْطَـٰنُ

او نه دی هېر کړی د ماهي حال بیانول مګر شیطان راڅخه هېر کړی، یعني شیطان په زړه کي نور فکرونه راواچول حتی چي د ماهي د حال بیان مي هېر سو، بیضاوي وایي چي شاید سبب د هېروالي بې دا ؤ چي یوشع بن نون د ماهي په دې حال غریب او عجیب غرق سو وانما نسب الی الشیطان هضماً لنفسه.

# أَنْ أَذْكُرَهُۥ ۚ وَٱتَّخَذَ سَبِيلَهُۥ فِى ٱلْبَحْرِ عَجَبًا

چي زه ذکر کړم امر د ماهي وتاته. او واخستل ماهي خپله لار په دریاب کي "ای سبیلاً عجباً".

**پوهسه:** چي "اتخذ" مفعول اول د "سبیله" دی، او "عجباً" صفت د مفعول ثاني ای "سبیلاً" په ځای کي د مفعول ثاني درېدلی دی. او "في البحر" ظرف لغو، متعلق په "اتخذ" پوري دی. او یا معنا دا ده اتخاذاً عجباً. نو بیا دې تقدیر عجباً صفت د مفعول مطلق محذوف دی. نو "في البحر" مفعول ثاني د "اتخذ" دی. او بعض مفسرین وایي چي "عجباً" مفعول مطلق د فعل محذوف دی ګویا قال د موسی په اخیر کي وویل عجبت عجباً.

# قَالَ ذَٰلِكَ مَا كُنَّا نَبْغِ ۚ فَٱرْتَدَّا عَلَىٰٓ ءَاثَارِهِمَا قَصَصًا

موسی (علیه السلام) وویل چي دا فقد د حوت چي زموږ لپاره نښاني ده د ملاقات د خضر علیه السلام سره، نو دوی بېرته راوګرځېدل پر هغه لار چي دوی تللي و، "قصصاً" مفعول مطلق دی د فعل محذوف یعني یقصان قصصاً یعني دوی تلاش کاوه د خپلو ګامو.

# فَوَجَدَا عَبْدًا مِّنْ عِبَادِنَآ

دوی پیدا کړی یو بنده زموږ له بندګانو څخه.

**پوه سه:** چي "عبداً" یې نکره راوړی لپاره د تعظیم کما تقرر في علم المعاني يعني چي تنکیر ګاهي د تعظیم لپاره وي او هغه خدای ﷻ و ځان ته مضاف کړی هم لپاره د تعظیم دی لکه بیت الله للکعبة المبارکة.

**فائده:** جمهور مفسرین او محدثین پر دې دي چي دا عبد الخضر ؤ بفتح الخا وکسر الضاد، او نوم یې بلیا بالبا الموحدة ثم لام ساکنة ثم یا مثناة من تحت، ابن ملکان ابن فالغ بن عابر بن شالخ بن ارفخشد بن سام بن نوح علیه السلام، وکنیته ابو العباس والخضر لقبه، په دې سبب چي دی یوه ورځ پر یوه خالي سپېره ځمکه باندي کښېنستی چي ولاړ سو ځمکه تکه شنه وه په نباتاتو سره کذا جا في الحديث الذي رواه البغوي بسنده من امام بن منبه رح.

**درویش وايي:** چي د خضر علیه السلام په باره کي د تعجب وړ روایات راغلي دي، بعض وايي چي د آدم د ملا زوی ؤ دا روایت که څه هم ابن عباس رضی الله عنهما ته منسوب سوی دی لکن تر ده پوري یې سند ضعیف دی، په فتح القریب کي ومن اغرب ماقیل انه ابن آدم بطن حوا. وقيل انه من الملائكة وهذا باطل ومن اعجب ماقيل انه ابن فرعون كما في التواريخ مصر، وهذا ايضاً باطل. وقيل ابن خالة ذي القرنين، وقيل انه من بني اسرائيل وهذا ايضاً باطل لان موسى كان مبعوثاً الى بني اسرائيل كلهم. فلو كان الخضر من بني اسرائيل لكان من اتباع موسى علیه السلام. او وراندي په صحیح حدیث کي تېره سوه چي موسی په طلب کي د زده کړي په خضر علیه السلام پسي سرګردان ؤ او آیات قرآنیه هم پر دې دلالت کوي، والاقرب ان الخضر كان من ابنا الملوك الاقدمين تزهد في الدنيا.

**اختلاف العلماء:** جمهور علما وايي چي خضر علیه السلام نبي غیر مرسل ؤ یعني یو قوم ته نه ؤ را استول سوی، او محققین د صوفیه وايي چي خضر ولي ؤ نبي نه ؤ، او بغوي او نور علما وايي چي خضر تر یوم نفخ الصور پوري به ژوندی وي او اکثره محدثین وايي چي وفات سوی دی، وغاية التفصيل والجوابات في

روح المعاني وروح البيان، او مظهري په کړکيچ اختلاف کې څه نه دي ويلي.

آتَيْنٰهُ رَحْمَةً مِّنْ عِنْدِنَا وَعَلَّمْنٰهُ مِنْ لَّدُنَّا عِلْمًا ﴿۶۵﴾

موږ ورکړی ؤ ده ته رحمت له خپل جانبه څخه. مظهري وايي چې الوحي والنبوة. او هغه علماً چې ولي یې بولي نبي يې نه بولي هغه وايي چې مراد له رحمت څخه الهام او کشف دی، او موږ ښوولي وه ده ته له خپل جانبه يعني هغه علم چې تحصيل یې په زموږ د ښوونې نه سي کېدای.

**درويش وايي**: چې بغوي محي السنة رح وايي چې خضر عليه السلام نبي نه ؤ په نيز د اکثر العلم. لکن مظهري رح چې په اکثره تفسير کې خپل مقتدی بغوي رح دی په دې ځای کې يې دده له مذهبه څخه انکار کړی دی او وايي چې نبي ؤ او څه دلائل يې هم ذکر کړي دي فراجع والله اعلم بالصواب في هذا الباب.

په صحيح حديث کې د بخاري او داسې نورو راغلي دي چې موسی او دده فتا عليه السلام چې واپس مجمع البحرين ته راغله، خضر عليه السلام پټو پر سر اچولی ؤ او ناست ؤ، موسی عليه السلام السلام عليکم ورته وويل، خضر جواب د سلام خو ورکړی او داسې یې ورته وويل "اني بارضک السلام" چېري ؤ په دې مځکه کې ستا سلام يعني دې ځای ته خو تر اوسه څوک نه وه راغلي، يعني ته څوک يې. موسی عليه السلام ورته وويل انا موسی! هغه ورته وويل موسی بني اسرائيل؟، موسی ورته وويل نعم! او موسی عليه السلام خپل د راتلو غرض ورته بيان کړی "اتيتک لتعلمني مما علمت رشداً".

قَالَ لَهٗ مُوْسٰى هَلْ اَتَّبِعُكَ عَلٰٓى اَنْ تُعَلِّمَنِ مِمَّا عُلِّمْتَ رُشْدًا ﴿۶۶﴾

وويل و خضر (عليه السلام) ته موسی (عليه السلام) چې آيا زه ستا متابعت او ملګرتيا وکړم (دا اجازه غوښتل وه له خضر عليه السلام څخه) په دې شرط چې ته به ماته رابنيه بعض هغه علوم چې تاته ښوول کړل سوي يعني له جانبه څخه د خدای پاک ای بالوحي عند المظهري او بالالهام والکشف عند البغوي لپاره د زده کړې او هدايت.

**مسئله**: له دې آيت څخه دا معلومه سوه چې مفضول چې خضر ؤ چې نبي نه ؤ

عند الأكثر گاهې په علم كې د بعضې شيانو بلا وي تر فاضل چې موسى عليه السلام د
چې نبي صاحب التوراة ؤ. او فاضل ته دا په كار ده چې دا حصه د علم له مفضول
څخه زده كړي او لويي دې نه كوي چې زه به له مفضول څخه څرنګه طلب د علم
کوم كمامر من ديدن العلماء من زماننا چې هغه د فاضل له زده كړې څخه
استنكاف او كبر كوي فضلاً عن المفضول في بعض المسائل. ولې چې په
صحيح حديث كې راغلي دي چې "الكلمة الحكمة ضالة المؤمن فحيث وجدها
فهو احق بها" په بعضې اخبارو كې چې بغوي يې روايت كړى دى چې موسى
عليه السلام چې دا خبره وكړه چې په آيت كې ذكر سوه. نو خضر عليه السلام ورته وويل "كفى
بالتورات علماً وبني اسرائيل شغلاً؟ قال موسى ان الله امرني بهذا".

**فائده:** موسى عليه السلام په دې گفت وشنيد كې د خضر عليه السلام سره ډېره د تواضع
لار خپله كړې وه او د ډېر ادب لار چې ځان يې بېعلمه ورته ښكاره كړى او اجازه
يې غوښتې وغوښتل چې زه به ستا تابع سم. او خواست يې وكړى چې ته
بعض ما علمك الله ما ته راوښيه.

قَالَ إِنَّكَ لَن تَسْتَطِيعَ مَعِيَ صَبْرًا ﴿٦٧﴾

خضر (عليه السلام) ورته وويل په تحقيق ته زما د شاگردۍ او تعليم طاقت نه لرې
او صبر نسې كولاى. يعني متعلم ته دا په كار ده چې په پوښتونو كې به ډېر
تلوار نه كوي او تر يو وخته به صبر كوي چې گوندي معلم به پخپله زما د زړه
شک را دفع کړي. خضر عليه السلام دليل د عدم صبر ورته ووايه.

وَكَيْفَ تَصْبِرُ عَلَىٰ مَا لَمْ تُحِطْ بِهِ خُبْرًا ﴿٦٨﴾

او ته به څرنګه صبر وكړې پر هغه كار "يعني چې زه يې وكړم" چې ته احاطه
نه وي كړې پر هغه كار ازروى علم، نو "خبراً" تميز دى له نسبت څخه د "مالم
تحط به" د صبر د نفي وجه چې خضر وكړه داده چې دى په دې پوهېدى چې زما
څخه امور منكره له ظاهر شريعت څخه د موسى عليه السلام صادر ېږي. نو انبياؤ ته
طاقت د صبر نسته پر منكراتو د شريعت ددوى تر هغو چې وجه د جواز يې نه وي

ورمعلومه كما سيأتي، نو ګویا خضر و موسی علیه السلام ته وویل ضمناً چي زما مصاحبت تاته ګټه نه کوي.

قَالَ سَتَجِدُنِيٓ إِن شَآءَ ٱللَّهُ صَابِرًا وَلَآ أَعۡصِي لَكَ أَمۡرًا ﴿٦٩﴾

موسی (علیه السلام) ورته وویل چي ژر دی چي ته ما ووینې ان شا الله صبر کوونکی ستا پر کارو او زه نافرماني نه کوم ستا له امر څخه.

**پوهنه:** چي جمله د "ولا اعصی" عطف ده پر "ستجدوني" نو محل د اعراب نه لري، او که یې عطف کړي پر "صابرا" بانديې، نو د جملې تأویل په مفرد سره کوي یعني "صابرا" غیر عاص آه" نو پر دې تقدیر دا جمله منصوب محلاً ده کما هو الظاهر.

**درویش وایي:** چي موسی علیه السلام چي دومره ګلکه مصابره د خضر سره وکړه ددې لپاره چي دا مصابره شرط د افادې د صحبت ده، او خدای جل جلاله دی امر کړی په مصاحبت د خضر سره، لکن چونکه د امور مستقبله علم خو د خدای جل جلاله سره دی، نو ځکه یې ان شا الله وویل.

قَالَ فَإِنِ ٱتَّبَعۡتَنِي فَلَا تَسۡـَٔلۡنِي عَن شَيۡءٍ حَتَّىٰٓ أُحۡدِثَ لَكَ مِنۡهُ ذِكۡرًا ﴿٧٠﴾

خضر (علیه السلام) ورته وویل چي ته زما متابعت یعني ملګرتیا کوې، نو زما څخه به سوال نه کوې د کارو چي زه یې وکړم چي ته یې منکر بولې چي دا کار دې ولې وکړی، ولې چي سوال خو بیه د اعتراض لري او اعتراض مانع د استفا دی تر هغو چي زه خپل د کار سر و تاته بیانوم په خپله.

فَٱنطَلَقَا حَتَّىٰٓ إِذَا رَكِبَا فِي ٱلسَّفِينَةِ خَرَقَهَا

نو سره روان سوه د دریاب پر غاړه په کښتی پسي ګرځېدله تر دې چي کښېنستل په کښتی کي، ضمیر یې د تثنیه راوړی او یوشع یې تبع وګرځاوه، خضر یوه تخته د ابو له خوا څخه له کښتیه وکښل کما في حدیث البخاري ومسلم.

**سوال:** ضمیر د تثنیه یې راوړی، نو یوشع بن نون څه سو؟

**ځواب:** موسی علیه السلام واپس بني اسرائیلو ته واستاوه، او حسین کاشفي رح وای "ویوشع بر عقب ایشان میرفت" دا وجه روح البیان خوښه کړې ده، له دې سببه



Scanned by CamScanner

چي دمخه د موسى او يوشع قصه وه. او اوس قصه د موسى او د خضر ده، نو يوشع ددې دوو تبع وګرځېدى فلا حاجة الى ذكره، نو اخيراً يوه كښتى. يې پيدا كړه، نو خبري يې ورسره وكړې د كرايې په باره كې. په بخاري او مسلم كې دبي بن كعب څخه روايت دى عن النبي ﷺ انه مرت بهم سفينة فكلموهم ان يحملوهم (درويش وايي: چي په دې حديث كې يې ضمير د جمع ورته راجع كړى، نو دا معلومه سوه چي يوشع ورسره ؤ) فعرفوا الخضر فحملوهم بغير نون" نو د كښتى مالكانو خضر وپېژندى په دې معنا چي رجل صالح دى چي په مجمع البحرين كي اوسېږي.

قَالَ أَخَرَقْتَهَا لِتُغْرِقَ أَهْلَهَا لَقَدْ جِئْتَ شَيْئًا إِمْرًا ۝٧١

موسى (عليه السلام) انكاراً ورته وويل چي تا كښتى څيري كړه يعني تخته دي څنډي وكښل آيا ددې لپاره چي خلګ د كښتى په درياب كي غرق سي. په تحقيق دا تا داسي كار وكړى چي عظيم دى، او بغوي رح وايي چي امر په كلام كي د عربو بلا ته وايي، او قتيبي رح وايي "عجباً".

**يوه سه:** چي جلال الدين المحلي رح وايي چي اوبه په كښتى كي نه داخلېدې معجزةً للخضر عليه السلام.

**درويش وايي:** چي له دې عبارت څخه دا معلومېږي چي جلال الدين محلي رح هم معتقد د نبوت د خضر عليه السلام دى لان المعجزة لا تستعمل الا في خارق العادة على يد النبي كما لا يخفى. او هغه كسان چي نبي يې نه بولي هغه وايي كرامةً للخضر.

قَالَ أَلَمْ أَقُلْ إِنَّكَ لَن تَسْتَطِيعَ مَعِيَ صَبْرًا ۝٧٢

خضر (عليه السلام) ورته وويل ما تاته نه وويل چي ته زما سره صبر هرګز نسي كولاى يعني ولي دي اعتراض راپاندي وكړى.

قَالَ لَا تُؤَاخِذْنِي بِمَا نَسِيتُ

موسى عليه السلام ورته وويل ته ما مه نسه په هغه شي چي هغه شى ما هېر كړى ؤ.

نو پر دې ترجمه ما موصوله دی او عائد محذوف دی "ای شئ نسیته" مراد له نې څخه هغه معاهده ده چې موسی د خضر سره کړې وه چې زه به تا اعتراض نه کوم، او یا کلمه د ما مصدریه ده ای بلسیاني ایاها ، په حدیث صحیح کې راغلي دي د ابي بن کعب رضي الله عنه عن النبي ﷺ کان الاول نسیانا من موسی، والوسطی شرطا و الثالث عمداً.

**درویش وایي**: چې سره ددې حدیث صحیح چې بعض علماً وایي چې مراد د نسیان څخه ترک مناسب نه ده او دغه رنګه هغه ترجمه چې بغوي رح له ابن عباس رضي الله عنه څخه نقل کړې ده حیث قال لم ینس ولکنه من معاریض الکلام کانه نسي شیئاً آخر دون المعاهدة لاینبغي نقل البغوي فالاعتراض في سند البغوي رح لا علی ابن عباس رضي الله عنه کلا وحاشا.

وَلَا تُرْهِقْنِي مِنْ أَمْرِي عُسْرًا

في القاموس ای ولا تغشني ولا تکلفني ولا تحملني آه. فالمعنی ته ما مه مکلف کوه زما په کار کې چې زه ستا څخه زده کړه غواړم په سختی سره یعني چې نسیان هم نه رانبختي. نو مراد له عسر څخه مضایقة دی د چا سره پر کوم شي.

فَانْطَلَقَا حَتَّىٰ إِذَا لَقِيَا غُلَامًا فَقَتَلَهُ

نو موسی او خضر (علیهما السلام) سره رهي سول یعني له کښتی څخه راکښته سول، حتی چې دوی ملاقي سوه د هلک سره چې د نورو هلکانو سره په بازی اخته وُ (سدي رح وايي چې ښائسته مخ یې وُ بر ښېږدی. روح البیان وایي چې نوم یې جیسور بالجیم یا حیسور بالحاء وُ والله اعلم) خضر علیه السلام هغه ښائسته هلک قتل کړی، په صحیح حدیث کې چې روایت یې ابي بن کعب رضي الله عنه کړی دی راغلي دي چې خضر علیه السلام یې سر په درو ګوتو ونیوی او له بدن څخه یې جلا کړی، یعني یوه بیه ګوته او بله ورپسې ګوته چې سبابه یې بولي، او بله د منځ ګوته وه. رئیس المفسرین عبد الله بن عباس رضي الله عنه وايي چې دا هلک بلوغ ته نه وُ رسېدلی وهو قول اکثر المفسرین، او له قرآن کریم څخه هم دغه فهمېږي. ولې چې په عربي ژبه کې غلام بالغ ته نه وای، او له قول څخه د نبي الله موسی علیه السلام هم دغه کوچنیوالی

فهمېږي حیث قال "قتلت نفساً زکیةً" او د ګناه پاک خو نه دی مګر کوچنی.

**اقوال ضعیفه:** بعض وايي هلک یې پرې ایستی ذبح یې کړی، بعض وايي په غټه ډبره یې پر سر ووهه مړ یې کړی. بعض وايي سر یې د دېوال سره ور وجنګاوه مړ یې کړی، او بعض کسان وايي چي نابالغه نه ؤ لوی سړی ؤ. بعض وايي ځوان قطاع الطریق ؤ، بعض وايي ځوان ؤ مور او پلار ځندي ازار وه.

## قَالَ أَقَتَلْتَ نَفْسًا زَكِيَّةً بِغَيْرِ نَفْسٍ

موسی (علیه السلام) ورته وویل چي مړ دي کړی یو انسان چي له ګناه څخه پاک ؤ کمامر بېله قصاصه چي ده بل څوک وژلی وای؟.

**پوه سه:** چي بعض قاریان دا لفظ "زکیة" په تشدید د یا بېله الفه وايي وهو قرائة قرأ کوفة و ابو عامر، او نور قاریان یې "زاکیة" په الف او تخفیف د یا وايي معنی د دواړو قرائتو یوه ده.

## لَقَدْ جِئْتَ شَيْئًا نُكْرًا ﴿٧٤﴾

تا راتګ یا خضر په داسي عمل سره وکړی چي په شرع کي منکر دي په ټولو ادیان سماویه او کتب منزله وو کي.

**درویش وايي:** چي ددې پینځسلم جزء د تفسیر ختم په شپه د جمعې د ماښام تر لمانځه وروسته (۲۷) شهر المحرم سنه (۱۴۳۰) خدای جل جلاله په خیر او عافیت و پای ته ورساوه. ولله الحمد والمنة والصلوة والسلام علی رسوله خیر البریة وعلی آله وصحبه البررة الکملة.





# الجزء السادس عشر

## قَالَ أَلَمْ ١٦

# تفسیر الایوبی


حضرت مولانا محمد عبد الله الایوبی

الکندهاري الحنفي النقشبندي



مکتبة القراءة و التجوید

کاسي روڈ کوئٹه بلوچستان

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله ذي المنة والاحسان الغفور الرحمن والصلوة والسلام على خير البرية والأنام، وعلى آله وصحبه البررة الكرام.

**امابعد**: شرع الفقير في تفسير الجزء (١٦) من القرآن الكريم في ساعة مباركة ساعة اربعة ونصف من ليلة ميمونة ليلة الجمعة (٢٨) من شهر المحرم سنه (١٤٣٠) هـ ق.

## قَالَ اَلَمْ اَقُلْ لَّكَ اِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيْعَ مَعِيَ صَبْرًا ۝

خضر (عليه السلام) وویل موسی (عليه السلام) ته ما نه وه ویلي تاته (الهمزة للانكار ونفي النفي اثبات) یعني درته ویلي مي وه چي په تحقیق ته هرګز طاقت نه لرې چي زما سره دي صبر وکړې یعني اعتراض دي زما پر کړه وړه ونه کړې.

**فائده**: خضر عليه السلام په دې وار کي "لَكَ" ورسره زیات کړی لمزید العتاب على ما صدر من موسى عليه السلام پر ترک د قا بالعهد دوه واره. ولي چي په دې ځای کي هیڅ عذر نه ؤ بلکي عمداً یې انکار وکړی.

## قَالَ اِنْ سَاَلْتُكَ عَنْ شَيْءٍ بَعْدَهَا فَلَا تُصٰحِبْنِيْ ۚ

موسی (عليه السلام) ورته وویل که ما ستا څخه پوښتنه وکړه د یو شي (یعني اعتراضاً وانکاراً) وروسته تر دې وار، بیا نو زما سره صحبت مه کوه یعني ما جلا کړه.

## قَدْ بَلَغْتَ مِنْ لَّدُنِّيْ عُذْرًا ۝

علت د جلا والي دی، په تحقیق ته ورسېدې زما له جانب څخه عذر ته. یعني بیا نو ته معذور یې زما په جلا کېدو کي، چي دا وار به نو درېیم وار وي د مخالفت زما. مسلم له ابي بن کعب رضي الله عنه څخه روایت کړی دی قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم رحمة الله علينا وعلى موسى (دا قاعده ده چي یو څوک بل نبي په رحمت سره ذکر کوي اول دې پر خپل ځان رحمت د خدای جل جلاله طلب کوي) که چېري موسی تلوار نه وای کړی. ده به له خضر عليه السلام څخه نور عجائب لیدلي

والی، لکن موسی په دریم وار کي شرط ولګاوه یعني ان سئالتک عن شیئ الآیة.

فَانْطَلَقَا ۠ حَتّٰىٓ اِذَآ اَتَيَآ اَهْلَ قَرْيَةِ

بیا موسی او خضر سره راهي سوه ځو چي ورغله و اهل ته د یوې قریې.

**درویش وایي:** چي قریه په اصطلاح د قرآن عموماً ښار ته وایي. ابن عباس ﷺ وایي چي دا قریه انطاکیه وه. وهو المشهور عند المفسرین. او ابن سیرین وایي ایکه وه چي دا ډیره لیري مځکه ده له اسمان څخه یعني په ډېر کښته ځای کي واقعه ده. بعض وایي نوم یې برقه ؤ. بغوي په روایت د ابي هریره ﷺ وایي چي دا ښار دی په اندلس کي. او په مجمع البحار کي وایي بلد قریب البصرة والله اعلم.

**درویش وایي:** که دا بلد د انطاکیه وي لکه ابن عباس ﷺ چي ووېیل او مشهوره هم داغه ده. نو ددې بلد په شان کي صاحب قاموس وایي چي دا یو ښار دی چي جاري اوبه پکښي سته او لوی دېوال د ډېرو پر راګرځېدلی دی او په داخل کي د ښار پینځه غرونه سته. او آبادي د ښار یې دوولس میله ده. حسیني کاشفي په خپل تفسیر کي وایي: واهل بلد چون شبه شدی دروازه شهر را دربستندی وبرای هیچ کس نه کشادندی. نماز شام موسی وخضر بدان شهر رسیدند وخواستند که بشهر درآیند کسی دروازه نه کشود موسی وخضر دربان را گفتند که اینجا ما مسافر رسیده یم گرسنه نیز هستم چون مارا در قریه جاندادی باری طعام جهت ما بفرستید دربان آنرا هم قبول نکرد. وهذا معنی قوله تعالی.

اِسْتَطْعَمَآ اَهْلَهَا فَاَبَوْا اَنْ يُّضَيِّفُوْهُمَا

طلب د طعام یې وکړی له اهل څخه د قریې. هغو منع وکړه چي مهماني ورکړي دوی ته. نو موسی او خضر علیهما السلام شپه دباندي په لوږه تېره کړه. بغوي په روایت د ابي بن کعب ﷺ عن النبي ﷺ حتی اتیا اهل قریة لئام فطافا في المجالس فاستطعماهم فلم یعطوهما واستضافهم ولم یضفوهما.

**درویش وایي:** چي د کاشفي قصه ددې حدیث خلاف ده. قتاده رح وایي چي شر القری التي لا تضیف الضیف.

فَوَجَدَا فِيهَا جِدَارًا يُرِيدُ أَنْ يَنْقَضَّ فَأَقَامَهُ

نو پيدا کړی موسی او خضر (عليهما السلام) په دې قريه کې يو دېوال چې اراده يې ددې وه چې ونړېږي، خضر هغه دېوال سم کړی يعني له نړېدلو څخه يې وساتي.

**يوه سه**: چې کلام محمول پر مجاز دی، لان الجدار لا ارادة له وانما معناه قرب ودنا من السقوط وامثال هذا المجاز جار في كلام العرب، يقول واحد منهم داري ينظر الى دار فلان چې سره مقابل وي ورنه دار خو رؤيت نه لري.

قَالَ لَوْ شِئْتَ لَتَّخَذْتَ عَلَيْهِ أَجْرًا

موسی عليه السلام ورته وويل که ستا خوښه وای يعني اقامة الجدار، نو تا به مزدوري پر اخستې وای يعني له صاحب الجدار څخه.

**درويش وايي**: چې په دې اقامت کې د دېوال اختلاف دی، بغوي رح وايي چې موږ ته روايت د ابي بن کعب رضي الله عنه رسېدلی دی عن النبي صلى الله عليه وسلم چې صرف خضر لاس پر تېر کړی دېوال سم سو، او له سعيد بن جبير رضي الله عنه څخه هم ورته روايت راغلی دی، ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې يو وار يې دېوال ونړاوه بيرته يې بنا کړی.

**يوه سه**: چې کلمه "لتخذت" له باب څخه د تخذ يتخذ ده، نو اصل يې تتخذت وْ بيا يې تا د کلمه په تا کې د افتعال مدغمه کړه د لام په دخول سره ابتداً بالساکن پورته سول، او بصريين وايي چې له اخذ څخه نه دی مشتق كذا قال البيضاوي. ولې چې په اخذ کې خو فا کلمه همزه دی والهمزة لاتدغم في التا.

**يوه سه**! چې په دې کلام کې د موسی عليه السلام باعث کول دي د خضر عليه السلام پر اخذ د مزدوري.

**تنبيه**: له دې آيت څخه دا فهمېږي چې د دېوال سمولی په مشقت سره ؤ كما في رواية ابن عباس رضي الله عنهما. ولې چې مزدوري پر هغه فعل غوښتل کېږي چې مشقت پکښې موجود وي. او که اقامة الجدار په معجزه يا په کرامت د خضر وای کما في رواية البغوي بيا خو د مزدوري اخذ ناجائز و فافهم.

**نکته**: بعض علماً وايي چې موسی عليه السلام چې خضر عليه السلام ته دا وويل چې "لتغرق اهلها" خضر عليه السلام ورته وويل چې ته خو خپل مور په تابوت کې روډ نيل

واچولي. نو ولي غرق نه سوي ببله کښتیه. او چي موسی علیه السلام و خضر علیه السلام ته
وویل "اقتلت نفسا زکیة بغیر نفس" خضر علیه السلام ورته وویل تا خو هم قبطي بې
گناه قتل کړی. او چي موسی علیه السلام ورته وویل "لتخذت علیه اجرا" خضر علیه السلام
ورته وویل تا خو هم د شعیب علیه السلام د لورو پسونه ورته اوبه کړه بغیر اجر.

## قَالَ هٰذَا فِرَاقُ بَيۡنِي وَبَيۡنِكَ

خضر (علیه السلام) وویل یعني موسی (علیه السلام) ته چي دا دریم سوال چي تا وکړی
جلا والی دی زما او ستا تر منځ یعني سبب د فراق دی. ولي تا خو داغسي شرط
بې لګولی و "ان سئلتک عن شیئ فلا تصاحبني".

**درویش وایي:** چي مظهري رح یوه لویه سهوه کړې ده وهذا عبارته فان هذا
الاعتراض لهوی النفس آه.

**درویش وایي:** چي دا ترجمه د بعض غلات د صوفیه وو دی. او مظهري چي
ځان صوفي بولي دا ترجمه یې وکړه ولم یعلموا اهؤلاء الصوفیة ان هذا جرئة عظیمة
علی افضل انبیاء بني اسرائیل وکلیم الله تعالی صاحب التورات. او بعضې
مفسرینو تر ده د مخه هم دا ترجمه کړې ده. ورد في الکشف بان هذا التفسیر
لایلیق بجلالة شان موسی وصاحبه الخضر هکذا في هامش التفسیر المظهري.

**یوه سه:** چي اضافت د فراق و بین ته اضافت د مصدر ده و ظرف ته مجازا او
په بل عبارت اضافت د مظروف دی و ظرف ته.

## سَأُنَبِّئُكَ بِتَأۡوِيلِ مَا لَمۡ تَسۡتَطِع عَّلَيۡهِ صَبۡرًا ۝

او ژر دی چي زه به تاخبر کړم په حال د صواب زما د کارو چي تا طاقت نه درلود دی
په هغو د صبر لکونها منکرا بحسب الظاهر لکن کان مآلها علی الخیر والصواب.

## أَمَّا السَّفِينَةُ فَكَانَتۡ لِمَسَٰكِينَ

هر چي کښتی ده چي ما یې تخته وکښل هغه د مسکینانو وه، کعب بن
مالک رض وایي چي دا مساکین لس وروڼه وه چي پینځه یې شلان او ګوډیان وه او
پینځو یې کښتی په اجرت چلول په دریاب کي.

**مسئله**: له دې آيت څخه دا معلومه سوه چي د مسكين اطلاق پر داسي چا روا دی چي مال لري او نصاب ته نه وي رسېدلی او لا يكون فاضلاً عن حاجته.

## يَعۡمَلُونَ فِي ٱلۡبَحۡرِ فَأَرَدتُّ أَنۡ أَعِيبَهَا

يعني خلګ يې په اجرت پكښې وړل د عيال د كفالت لپاره، نو ما اراده وكړه چي عيبجنه يې كړم يعني هغه تخته مې څنډې وكښل.

## وَكَانَ وَرَآءَهُم مَّلِكٞ يَأۡخُذُ كُلَّ سَفِينَةٍ غَصۡبٗا ۝٧٩

او په مخ كي ددوی يعني دوی چي روان وه په درياب كي يو باچا وُ چي اخستلې يې له خلګو څخه كښتۍ په غصب سره يعني سفينة سليمة من العيب ليفيد عيب الخضر لها يعني دا عيب د خضر يې مانع د غصب وګرځي.

**پوهه**: چي ددې غاصب ملك نوم جلندي بن كركر وُ على الاشهر، او محمد بن اسحاق رح وايي چي نوم يې سولة بن جليد وُ، او شعيب الجبائي رح وايي چي نوم يې هدد بن بدد وُ.

**سوال**: خضر عليه السلام چي د كښتۍ تخته كښل، نو مالكان د كښتۍ يې مانع نه سول؟

**ځواب**: بغوي رح وايي چي خضر عليه السلام دوی ته عذر وكړی او په حال د ملك غاصب يې خبر كړه او د كښتۍ مالكان په دې حال نه وه خبر، او خضر عليه السلام دوی ته وويل "وقال لهم اردت اذا هي مرت عليه ان يدعها لعيبها" نو تر ملك چي كښتۍ تېره سي بيرته به يې اصلاح كړو.

**درويش وايي**: چي مظهري رح پر دې قول د بغوي رح داسي سوال كړی دی چي دا اعتذار له نظم څخه د قرآن خلاف دی، ولي نظم القرآن خو پر دې دلالت كوي چي خضر عليه السلام دا حكمت وروسته تر مجاوزت د كښتۍ په وخت كي د فراق بيان كړی او كه خضر عليه السلام په اول الامر كي دا اعتذار د كښتۍ و مالكانو ته كړی وای، نو موسى عليه السلام خو هم ورسره وُ هغه به هم اورېدلی وای، نو ولي يې انكار پر كاوه. فقير وايي چي دا سوال بېځايه دی ولي موسى عليه السلام خو دست ګريبان د خضر عليه السلام نه وُ، نو دا احتمال سته چي خضر عليه السلام دې دا اعتذار په پټه د موسى مالكانو ته د كښتۍ كړی دی. ګفته اند "داشته بكار آيد" او تاريخ قديم وايي

چې دا غسې هم پیښه سوه چې په مخ کې کښتئ ولاړ وه د ملک غاصب او دا کښتئ چې موسی او خضر علیهما السلام هم پکښې وه او دا کښتئ والا وو نه یې ویل چې مور ملک امر کړی یو چې هر کښتئ چې صحیح سالمه هغه سرکاري کړئ، هغو چې کښتئ وکتل چې یو د تخته یې نه نو یې پرېښوول. کښتئ چې تر هغه ځای تېره سوه خضر علیه السلام بیرته هغه تخته په هغه ځای کې نصب کړه او څاکونه یې په قارو بند کړه.

## وَأَمَّا الْغُلَامُ فَكَانَ أَبَوَاهُ مُؤْمِنَيْنِ

او هر چې هغه غلام چې ما قتل کړی د هغه مور او پلار مؤمنان وه.

**پوه سه:** چې د ابوان په لفظ کې تغلیب دی د اب پر ام.

## فَخَشِينَا أَنْ يُرْهِقَهُمَا طُغْيَانًا وَكُفْرًا

نو مونږ وبېرېدلو (د "خشينا" فاعل خضر دی باعلام من الله بالوحي ان كان نبيًا او بالهام صحيح ان كان وليًا وقد مر الاختلاف فيه) چې ملحق دې کړي په مور او پلار سره، د "طغيان" ترجمه روح البيان په ضلالت سره کړې ده. نو "کفراً" یې عطف تفسیر دی، او دی وایي چې دغه دوه والدان به وروسته تر ایمان د زوی د محبت به کافران سي ویضلان بعد الهداية.

**درویش وایي:** چې سعید بن جبیر رضي الله عنه یې هم دغه ترجمه کړې ده حیث يقول خشينا ان يحملهما حبه على ان يتبعاه دينه فيرتدا، او مظهري وایي چې مقارن به سي د ایمان سره ددوی طغیان او کفر د غلام. نو په کور کې دوه مؤمنان یو کافر متعاند وي وهذا الاجتماع عسير جداً. فاذا قتل الخضر الغلام الكافر، تو سهل الامر على الابوين.

## فَأَرَدْنَا أَنْ يُبْدِلَهُمَا رَبُّهُمَا

نو مونږ اراده وکړه، چې عوض او بدل دې کړي پلار او مور د هغه ولد مقتول چې ظاهراً خو خضر علیه السلام قتل کړی وه رب د پلار او مور د هغه هالک.

**پوښتنه:** دا تبدیل آتي خو فعل د خدای تعالی دی او دا خو امکان نه لري چې اراده

د بنده دي چي دلته خضر علیه السلام دی په فعل پوري د خدای جل جلاله تعلق ونسي؟

**ځواب:** معنی د "اردنا" دلته داده چي زموږ دا تبدیل خوښ سو او خدای جل جلاله ته مو درخواست وکړی او خدای جل جلاله زموږ دا خواست قبول کړی کما سیاتي هم ودې معنا ته عبارت د قرآن مبارک اشاره کړې چي "اردنا" يې په صيغه د متكلم مع الغير راوړه، نو خضر علیه السلام نسبت وځان او خدای عزوجل دواړو ته وکړی چي د خضر د خوا اشتها او دعا وه او د خدای د قبول و. فتأمل فهذا سانح عزيز.

**پوه سه:** چي ایجاد صرف او صرف په صنع سره خدای جل جلاله دی نو ځکه اسناد وخدای ته وکړی و اما القتل ففيه يصنع الخضر مدخل. نو ځکه يې اردنا جمع راوړی کمامر في "اردنا".

## خَيْرًا مِّنْهُ زَكٰوةً وَّ اَقْرَبَ رُحْمًا ﴿٨١﴾

بهتر تر هغه مقتول زوی په پاکۍ. کي د کفر او له اخلاق سیئه وو څخه. نژدې تر هغه مقتول از روی رحمت پر والدینو.

**پوه سه:** چي زكوةً ورحمًا منصوب على التمييز من النسبة، او عامل يې دواړه ځایه اسم تفضیل دی. فافهم. قتاده رحمه الله وايي اوصل للرحم وابر بوالديه. بغوي رحمه الله وايي په روایت د کلبي رحمه الله چي دوی ته خدای جل جلاله لور ورکړه چي يو نبي د انبیاوو په نکاح کړه فولدت نبيًا هغه لنګه سوه زوی يې راوړی چي هغه نبي وګرځېدی او د هغې د زوی نبي پر لاس د ډېر خلګ مسلمانان سوه او جعفر بن محمد رضي الله عنه وايي "ابدلهما جارية ولدت سبعين نبيًا" يعني پښت پر پښت يعني په مرور د زمانو دا نه دی مراد چي يوازي هغه جاريه اوویا نبیان وزېږول لانه في غايته البعد عن العقل، او ابن جريج وايي ابدلهما غلام مسلم.

**درويش وايي:** چي ددې قول هیڅ چا تائید نه دی کړی والله اعلم، مطرف وايي چي هغه غلام کافر چي وزېږېدی مور او پلار ډېر په خوشاله سوه كما هو المعتاد في الاولاد الذكور، او چي ووژل سو ډېر په غمجن سوه او که ژوندی پاته سوی وای ددوی د هلاک سبب به ګرځېدلی وای یعني د کفر، نو هر سړی په قضا د خدای جل جلاله راضي اوسي لان الله تعالى حكم ومصالح في كل قضائه

لايعرف العباد تلك المصالح والحكم الا من اعلم الله كالخضر فيما نحن فيه.

**درویش وايي:** چي هيڅ انسان په آينده كارو، خپل په خير او شر نه پوهيږي په دنيايي امورو كي، كريمه "لوكنت اعلم الغيب لاستكثرت من الخير وما مسني السوء". كريمه "عسى ان تكرهوا شيئًا وهو خير لكم وعسى ان تحبوا شيئًا وهو شر لكم" نو كلمه د تفويض الامر الى الله عالم الغيب والشهادة ډېره زيبا ده يعني افوض امري الى الله الخ. تاريخ وايي چي يو عارف واعظ عالم ؤ هر وخت چي واعظ به يې پاى ته ورساوه په اخير كي بې غلو ته دعا كوله يو چا پوښتنه ځني وكړه چي ته ولي غلو ته دعاګانې كوې سره ددې چي قطاع الطريق او راه زنان دي؟ دې واعظ ورته وويل چي دوى زما د هدايت او د علم او عرفان سبب ګرځېدلي دي، سائل ورته وويل چي څرنګه؟ ده په ځواب كي ورته وويل چي زه يو وخت ډېر غښتلى تجارووم يو ځوا ته په تجارت تلم نقود هم راسره وه، نو غله او قطاع الطريق راباندي پېښ سوه ډېر يې ووهلم او مال يې ټول راڅخه واخستى. وروسته چي كور ته راغلم چي ما به د تجارت نيت وكړى هغه غله به راپياد سوه او خپل ځان ته به مي وويل چي ته به بيا په ډېر عمر كي نقود سره جمع كړې غله به يې په يوه ورځ درڅخه لوټ كړي كما في النوبة الاولى راسه داسي سرمايه ځان ته حاصله كړه چي د غلو د لوټ لار ورته نه وي، نو مي علم او سلوك مختاره كړى انتهى.

وَأَمَّا الْجِدَارُ فَكَانَ لِغُلَامَيْنِ يَتِيمَيْنِ فِي الْمَدِينَةِ

او هر چي هغه دېوال چي ماپې بنا وكړه هغه د دوو نابالغه يتيمانو ؤ په دغه ښار كي. بغوي رح وايي چي د يوه نوم اصرم ؤ او د بل نوم صويم ؤ يا صريم آه چي زامن د كاشع وه چي سياح او تقوى داره سړى ؤ روح البيان.

وَكَانَ تَحْتَهُ كَنزٌ لَّهُمَا

او لاندي تر دېواله مال مدفون ؤ يعني چي پلار يې ښخ كړى ؤ من ذهب وفضة كذا روى مرفوعًا وهو الظاهر. واخرج البخاري في تاريخه والترمذي والحاكم من حديث ابى الدردا ﷺ عن النبي ﷺ انه قال ذهبا وفضة.

**درویش وايي:** چي ما ترجمه په مال مدفون سره وکړه، نو هغه سوال نه وارد یږي چي کنز خو حرام دی لقوله جل شانه "والذین یکنزون الذهب والفضة ولاینفقونهما في سبیل الله (یعني زکوة یې نه ورکوي) فبشره بعذاب الیم؟

له عبدالله بن عباس او عبدالله بن عمر ﷺ څخه روایت دی "کل مال یؤدی زکوته فلیس بکنز وان کان مدفونًا وکل مال لایؤدی زکواته فهو کنز وان لم یکن مدفونًا" بغوي رح وایي چي سعید بن جبیر ﷺ وایي کان الکنز صحفًا (ای کتبًا) فیها علم" ورته حدیث له ابن عباس ﷺ څخه هم مروي دی.

**درویش وايي:** چي د ابی الدرداء ﷺ حدیث چي نږدې ذکر سو اولی واحری بالاعتبار، واما الروایات الاخر ففي اسانیدها ضعف والله اعلم.

## وَكَانَ أَبُوهُمَا صَالِحًا

او پلار ددوی صالح او تقوی دار د خپلي زمانې و، جعفر بن محمد ﷺ وایي چي د یتیمانو او د اب صالح تر منځ اووه پلاره وه او دفن کونکی جد سابع و، روح البیان او روح المعاني وایي چي ظاهر له لفظ څخه د اب هغه اب قریب دی چي دوی څخه زیږېدلي وه، په هر صورت بغوي رح وایي چي ابن عباس ﷺ ویلي دي چي له سببه د صلاح د اب الله ﷻ امر کړی خضر علیه السلام باصلاح الجدار لاجل حفظ مال الیتیمین بصلاح ابیهما، وقال محمد بن المنکدر ﷺ ان الله یحفظ صلاح العبد ولده وولد ولده وعترته (او ټبر دده) وعشیرته (قبیله دده) واهل دویرات حوله، مادام فیهم (چي دا صالح ژوندی وي).

**فائده:** پر عوام الناس باندي لازمه ده چي د صالحانو د اولاد دي ډېر مراعات کوي مالم یصدر عنهم طغیان ولاکفر.

**درویش وايي:** چي په اوسني زمانه کي د صالحانو ذریه د عوامو تر ذریه په معاصیو ککړ دي یعني علی الاغلب الا من عصمه الله.

## فَأَرَادَ رَبُّكَ أَنْ يَبْلُغَا أَشُدَّهُمَا

نو اراده وکړه رب ستا چي دا دوه یتیمان ورسیږي و بلوغ ته، یعني ابتدا د رشد ده، او کمال د رشد اتلس کاله دی، او ظاهر مذهب د امام اعظم رح (۲۵) کاله دی.

**مسئله:** د يو چا سره كه د يتيم مال وي او دا يتيم چي بلوغ ته ورسيږي سفيه يعني كم عقل او باوله وي، تر پينځه ويشت كاله دې مال په لاس نه ورکوي، چې پنځه ويشت كال يې پوره سوه مال دې په لاس ور کړي، مظهري چي ځان حنفي المذهب بولي وايي عندي (۴۰) سنة يعني څلوېښت كاله.

## وَيَسْتَخْرِجَا كَنزَهُمَا رَحْمَةً مِّن رَّبِّكَ

او دوی به كاږي خزانه خپله.

**پوه سه:** چې "رحمةً من ربک" منصوب دی على الحالية من فاعل "يبلغا" ای يبلغا مرحومين من ربک، يا مفعول له د يستخرجا، او بعض علما وايي چي رحمة متعلق دی په فعل محذوف پوري يعني خضر عليه السلام وايي فعلت مافعلت رحمةً من ربک، قاضي بيضاوي رح وايي چي شايد چي اسناد د ارادة الخضر و خپل ځان ته وکړه في قوله اردت ان اعيبها، ولي چي کونکی د تعييب د کښتی خو دی وو ان كان بامر الله، او دويم وار يې اسناد و خدای جل جلاله او ځان دواړو ته وکړی يعني في قوله "اردنا ان يبدلهما ربهما خيراً منه زكوةً الآية لان التبديل باهلاک الغلام كان من الخضر وايجاد بدله من الله، وثالثاً الى الله وحده كما في هذه الآية ان يبلغا اشدهما الآية، لانه لامدخل للخضر في بلوغ الغلامين الى زمان الاشد، او يا اول چي خرق د سفينه خو شر وو، نو خضر يې نسبت وځان ته وكړی، والثالث خير محض والثاني ممتزج فتدبر غاية التدبير ويرحم الله تعالى البيضاوي في التوجيه المذكور.

## وَمَا فَعَلْتُهُ عَنْ أَمْرِي

په تأويل د مارثيت مني من خرق السفينة وقتل الغلام واقامة الجدار، يعني دخپلي رايي څخه بلكې د خدای عزوجل په امر سره.

## ذَٰلِكَ تَأْوِيلُ مَا لَمْ تَسْطِع عَّلَيْهِ صَبْرًا ﴿٨٢﴾

دغه وو حال د هغو کارو زما چي تا يا موسی طاقت د صبر نه پر درلودی، او پر مادي انكار كاوه.

**پوښتنه**: دغه دوه يتيمان يا ددوی وصي يا قيم که په دغه خزانه خبر وه، نو ځرنګه يې خضر علیه السلام پرېښو د هغه دېوال و بنا ته. او که نه يتيمان او نه قيم په خزانه خبر وه، نو بيا يې استخراج ځرنګه وکړی؟

**ځواب**: امام رازي رح په تفسير کبير کې وايي چې يتيمان خو په خزانه خبر وه او قيم ددوی غائب و. او روح البيان په خپل وار ښه ښکلا جواب ورکړی دی چې په خزانه دي هيڅ څوک نه وي خبر لکن استخراج عند البلوغ اليتيمين زمان الاشد اسان دی، و خدای ﷻ ته يا په رؤيت في المنام ان تحت جدار کما کنز. يا په الهام سره. او يا به يې صالح پلار په خوب ليدلی وای چې تر دېوال لاندې خزانه ده وه يې کاږئ الی غير ذالک.

**درويش وايي**: چې اوس ددې قصې فوائد شتې واورئ (۱) بغوي رح وايي چې موسی او خضر علیهما السلام چې په حال کې د فراق وه، نو موسی علیه السلام و خضر علیه السلام ته وويل چې ما ته وصيت وکړه هغه ورته وويل لاتطلب العلم لتحدث به" ته علم زده کوه ددې لپاره چې خلګو ته يې بيان کړې "واطلب العمل به" (۲) بيضاوي وايي "لاتعجب المرء بعلمه" لکه موسی علیه السلام چې په ځواب کې د هغه چا چې له ده ځخه يې پوښتنه وکړه "من اعلم الناس" ده ورته وويل "انا" (۳) تلوار دې سړی و انکار ته د عمل د هغه چا نه کوي چې دده دا عمل د هغه نه وي خوښ، ولې شايد په هغه عمل کې به يو راز وي دی به نه پوهېږي خصوصاً چې هغه سړی چې دده يې عمل خوښ نه سو خاوند د علم او ديانت او د تقوی وي لکه خضر علیه السلام چې موسی درې واره انکار پر وکړی (۴) ان يداوم علی التعلم ويتذلل للمعلم ويراعي الادب في المقال يعني لايقول کما قال موسی للخضر علیهما السلام في خرق السفينة لقد شيئاً امراً" او په قتل کې د غلام لقد جئت شيئاً نکراً. يا د دېوال په بنا کې "لو شئت لتخذت عليه اجراً" (۵) وان ينبه المجرم علی جرمه ويعفو عنه حتی يتحقق اسراره ثم يهاجر عنه. يعني لکه خضر چې موسی علیهما السلام ته خپل جرم وروښو او اسرار يې ورته بيان کړه بيا يې رخصت کړی (۶) خضر و موسی علیهما السلام ته ويل که دې صبر کړی وای زړه ځائبې به

دې نوري ليدلي واى چې هره يوه په اعجب تر هغې مخکنۍ. وي موسى عليه السلام وژړل على فراق الخضر عليه السلام (۷) خضر و موسى عليهما السلام ته وويل چې ته هم وصيت راته وکړه، فقال موسى اياک والغضب الا في الله ولاتحب الدنيا" خضر عليه السلام ورته وويل "قد ابلغت في الوصية فاعانک الله على طاعته واراک السرور في امرک وحبب الله لک الى خلقه و اوسع عليک من فضله. موسى عليه السلام وويل آمين، نو يو د بله سره جلا سوه (۸) خداى جل جلاله پر يتيم باندې دومره رحم کوي چې ددې دوو يتيمانو د خزانې په ساتلو کې دوه نبيان د دېوال پر بناً وګمارل يعني موسى وخضر عليهما السلام.

(۹) انبياء عليهم السلام کولاى سي چې دنياوي کارونه وکړي خصوصاً چې نفع يې وغير ته راجع وي صرف لله لکه موسى او خضر عليهما السلام چې دېوال د خزانې يې لله د يتيمانو لپاره بناً کړی (۱۰) چې موسى او خضر عليهما السلام د بېګانه يتيمانو مراعات وکړی، نو د خلګو څه خيال دی چې د قرابت د سيد المرسلين د اقرباً چې سادات کرام دي مراعات وکړي صرف او صرف لپاره د سيد المرسلين صلى الله عليه وسلم د نسب پاک لپاره له هغه څخه به څومره خداى جل جلاله او د هغه لوى رسول راضي نه سي.

**يوه سه:** چې کوترو ته په حرم مکي کې چې خداى جل جلاله فوق العادة عزت ورکړی دی په سبب ددې چې دا کوترې د حرم مکي د دوو کوترو عيال دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم او ابوبکر صديق رضي الله عنه د جبل ثور په غار کې له کفارو څخه د مکې پټ وه د هجرت په وخت کې هغو دوو کوترو د غاري په خوله کې ځاله جوړه کړه او هګۍ يې پکښې واچولې يعني په هغه درخته کې چې د عليه الصلوة والسلام په بلند د غار په خوله کې ولاړه وه، د کوترې مقصد دا وُ چې له دې غار څخه د خلګو يعني کفار قريش نظر واړوی چې هغه د عليه الصلوة والسلام په نيولو پسې سره د پښ زنه را روان وه کذا في الصواعق (۱۱) تاريخ وايي چې بعض سادات کرام هارون الرشيد راغوښتی وُ چې قتل يې کړي. د هارون و حضور ته چې يې راوستله نو ده يې ډېر اکرام وکړی او خوشي يې کړه، نو هغه سيد ته چا وويل چې تا څه دعا وکړه چې د هارون له قتله خلاص سوې؟ هغه ورته وويل چې

ما داسي خواست وکړی "یامن حفظ الکنز علی الیتیمین لصلاح ابیهما احفظني من شر هارون لصلاح آبائي الکرام" کذا في العرائس (۱۲) خدای ﷻ ساتي مال صالح للعبد الصالح اذا کان فیه صلاح کما في قصة موسی و الخضر علیهما السلام.

**درویش وايي:** چي نقل د تولو فوائدو د قصې به ډېر طول ته مفضي سي، نو دا بنه ده ...... بيت:

تاطبع نازکت نه پزیرد ملالتی ....... آن به که نامه رابدعا مختصر کنم
اللهم ارزقنا حبک وحب حبیبک وحب من یحبک آمین.

## وَيَسْـَٔلُونَكَ عَن ذِى ٱلْقَرْنَيْنِ ۖ

او ستا څخه سوال کوي مشرکان د مکې په تعلیم د یهودانو د مدینې، چي کفارو د مکې دوی ته النضر بن الحارث او دده ملګري و یهودانو ته د مدینې استولي وه چي موږ په څه شي امتحان د صدق او کذب د محمد (ﷺ) د نبوت د دعوې وکړو، هغو ورته وویل چي د درو شیانو پوښتنه ځني وکړئ اول د روح په باره کي او بل د اصحاب کهف او بل دا پوښتنه ځني وکړئ چي هغه څوک و چي د شرق او غرب، د جنوب او د شمال سفر یې کړی و.

**درویش وايي:** چي د روح د پوښتنې او د اصحاب کهف د قصې ځواب په سورة الاسرا کي په تفصیل تېر سو، او د درېم سوال ځواب شروع سو. یعني السوال عن ذی القرنین.

**درویش وايي:** چي په آیت کي مذکور ذوالقرنین په نامه کي اختلاف دی، دویم دا چي له جنسه د بشر و او که د ملکو. درېم چي سبب د تسمیه بذی القرنین څه و، نو په دې کي اختلاف دی، روح المعاني تو له اختلافات راوړي دي په نقض او ابرام سره، چونکه د فقیر د تفسیر مبني پر اختصار دی حتی الامکان، نو ځکه نقض او ابرام د روح المعاني مې له دائرې څخه د نقل و ایستی، بغوي رح وايي چي بعض اهل تاریخ وايي چي نوم یې مرزبان بن مرزبة الیوناني دی چي له اولاد څخه د یافث بن نوح علیه السلام دی، او معتمد اهل تاریخ وايي چي مراد په آیت کي ذوالقرنین الاکبر دی چي نوم یې اسکندر بن فیلقوس

اليوناني ؤچي د تېولې دنيا سلطنت يې کړی دی کما قال مجاهد ملک الارض کلها اربعة مؤمنان و کافران ، مؤمنان لکه سليمان بن داود عليه السلام و ذوالقرنين. او کافران لکه نمرود او بخت نصر وقيل شداد ، وکان ذوالقرنين بعد نمرود في عهد ابراهيم عليه السلام لکن ډېر عمر خدای جل جلاله ورکړی ؤ (۱۶۰۰) کاله. روح البيان وايي چي خضر عليه السلام يې وزير مستشار ؤ. صحيح داده چي ذوالقرنين نه ملکه ؤ کما قيل او نه نبي ؤ بلکې ملک صالح ؤ عادل. ملک الاقاليم (۷) او مغلوبه يې کړه ټوله باچهان د نړۍ او ټوله بلاد دده منقاد وګرځېدل ومات بشهر زور ودفن فيها کذا قال ابن کثير في تفسيره، او صاحب تبيان وايي چي مدت د ګرځېدلو دده په دنيا کې پينځه سوه کاله ؤ، او تبيان وايي چي په بيت المقدس کي وفات سواو هورې دفن سو ، او بعض علماً وايي چي مراد اسکند رومي دی چي د روميانو تاريخ له هغه ځخه شروع کېږي هغه غلطه خبره ده، ولي چي اسکندر الرومي تر ذوالقرنين اسکندر الاعظم تر دوه زره کاله بالا وروسته دی. اودا اسکندر ثاني کان قبل المسيح عليه السلام درې سوه کاله ؤ کان وزيره ارسطاليس المشهور بارسطو الفيلسوف. روح البيان وايي قد غلط کثير من العلماً في الفرق بينهما فظنوا ان المذکور في الآية هو الرومي او سره ددې چي د اسکندر رومي مده د عمر روح المعاني دودېرش کاله ذکر کړې ده، او د سلطنت دوره يې دوولس کاله وه. والعجب من المظهري چي ذوالقرنين ابن قبيس بن فيلقوس الرومي دی وهو الاصح. بيا يې د ډېرو راويانو روايت د تاريخ رانقل کړی دی چي ذوالقرنين يو سړی ؤ د روم د يو سپين سري ښځي زوی ؤ چي بل زوی يې نه درلودی وکان اسمه اسکندر انتهی. ځای د تعجب دادی چي حالات ټوله د اسکندر يوناني بيانېږي لکن نسبت يې وروم ته کړی دی.

**درويش وايي:** چي دا ټوله قصه اولاً بغوي رح مظهري رح په غلط کي اچولی دی چي هغه وايي چي بعض اهل تاريخ وايي چي د ذوالقرنين نوم مرزبان بن مرزبة اليوناني الی اخير مانقلنا من قول البغوي قريباً.

**درويش وايي:** چي د ذوالقرنين د نامه په وجه تسميه کي هم اختلاف دی.

زهري رح وايي چي وجه يې داده چي دی دوو ښکرو ته د لمر رسېدلی ؤ يعني المشرق والمغرب، بعض وايي چي ده نور او تاريکه دواړه ليدلي وه، او بعض علماً وايي چي ده خوب ليدلی ؤ چي لمر يې تر يوه او بله څنډه نيولی ؤ. بعض وايي چي دده د سر وېښتان دوې کوڅې کړي وې چي د ښر ښه خوند يې ورسره کاوه، او بعض وايي چي ده په سر کي د يوه غوږ او د بل غوږ پر خوا دوه ښکرونه درلودل چي په لنګوټه به يې پټول له خلګو څخه.

**درويش وايي**: چي د اعتماد وړ خبره داده چي په صحيح سند د امير المؤمنين علي ﷛ څخه ثابته ده چي ذوالقرنين خپل قوم په ابتدأ الامر کي امر کړی په تقوی د خدای ﷻ، نو هغو پر راسته ټيک په يو شي ووا‌هه سر يې مات سو او دی وفات سو، بيرته خدای ﷻ ژوندی کړی بيا يې قوم ته وعظ شروع کړی بيا قوم پر چپه ټيک ووا‌هه او سر يې مات سو او دی مړ سو، بيا خدای ﷻ ژوندی کړی. نو دغه دوه ټپه يې که څه هم جوړ سوي وه لکن علامه يې پاته وه، دا ؤ روايت د بغوي رح، او په بل روايت کي له ابو الورقا څخه راغلي دي، دی وايي چي حضرت علي ﷛ ته مي وويل چي ذو القرنين ماکان قرناه؟ ده راته وويل چي ستا څه خيال دی چي قرنان د ذوالقرنين د سرو يا د سپينو زرو وه، بلکي دی رجل ناصح ؤ د وعظ په دوران کي يو وار خلګو پر راسته ټيک ووا‌هه مړ سو الی اخير ماذکر في الحديث السابق.

**درويش وايي**: چي قاموس چي يو معتبر کتاب د لغت عربي دی همدغه وجه يې له حضرت علي ﷛ څخه مروي کړې ده، او دغه وجه د تسميه په ذوالقرنين سره روح المعاني تر ټولو اول ذکر کړې ده، او بله وجه روح المعاني دا ذکر کړې ده چي دده په دور حکومت کي دوه قرنه د خلګو تېر سوه او نوري وجوه يې هم راوړي دي فارجع الی تفسيره.

قُلْ سَاَتْلُوْا عَلَيْكُمْ مِّنْهُ ذِكْرًا ؕ

دا خطاب دی و سائلينو ته د حال د ذوالقرنين "منه" ای من حال ذوالقرنين "ذکراً" ای خبراً په تنکير کي اشاره د تعظيم ته نه وه.

# إِنَّا مَكَّنَّا لَهُ فِي الْأَرْضِ وَآتَيْنَاهُ مِن كُلِّ شَيْءٍ سَبَبًا

په تحقیق مونږ قدرت ورکړی ؤ ده ته تصرف په مځکه کي کیف شا قال البغوي رح قال علي رضی الله عنه سخرله السحاب (وریځ وه ده ته مسخره وه. وریځي به وړی هر ځای چي به دده اراده وه. او اسباب د جنګ او د سفر او ده ته یي د دنیا دائره فراخه کړې وه شپه او ورځ وه ده ته برابره وه دا معنی د تمکین ده دده په مځکه کي یعني اسانه کړی ؤ خدای تعالیٰ سفر په مځکه کي او اسباب د سفر یي وده ته مهیا کړي وه) او مونږ ده ته ورکړی ؤ هر شی چي خلګ ضرورت ورته لري او هر هغه شی چي باچهان ضرورت ورته لري په فتح کي د ښارو او په جنګ کي د دښمنانو. یعني "شئ" پر عموم نه دی محمول فافهم "سببًا" یو سبب او لار چي دی به یي مقصود ته رساوه کما هو معنی السبب یعني چي سړی مقصود ته رسوي. دلته سبب د ذوالقرنین علم، قدرت او آلات د حرب د کفارو مراد دي.

**تنبیه**: د ذوالقرنین ددې تمکین او قدرت سبب دا ؤ لـه ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت دی چي ذوالقرنین په قصد د زیارت د کعبې مبارکې ورروان ؤ چا ورته وویل چي په مکه کي ابراهیم خلیل الرحمن علیه السلام موجود دی. نو دی چي د ابطح شیلې ته راغلی پیاده سو او وه یي ویل چي مالره نه ښایي چي زه ورځم هغه سپوږ هغه بلد ته چي په هغه کي خلیل الرحمن موجود وي، ابراهیم علیه السلام ته چي ورورسېدی ابراهیم علیه السلام سلام ورواچاوه کما هو القانون الشرعي یعني یسلم الفاضل علی المفضول، بیا یي د غېږي روغبړ سره وکړی د اولـه معانقه وه په وخت کي د سلام چي ابراهیم علیه السلام او ذوالقرنین سره وکړه کذا في بستان العیون. نو ذوالقرنین چي دا تواضع وکړه خدای جل جلاله ده ته وریځ مسخره کړه کما ورد في الحدیث "من تواضع لله رفعه الله" کذا في روح البیان وغیره... بیت:

تواضع کند نیک مرد اختیار ...... نهد شاخ پرمیوه سر برزمین

# فَأَتْبَعَ سَبَبًا

"فاتبع" بقطع الهمزة والفا فصحیة ای فاراد بلوغ المغرب فاتبع "سببًا" نو تلاش د سبب د وصول د مغرب یي وکړی.

**پوښتنه**: اول يې ولې سبب د مغرب د رسېدلو مختاره کړې؟

**ځواب**: بعض مفسرين وايي چې دا جهت ده ته نژدې و، او بعض وايي چې مراعات د حرکت شمسي يې وکړه اى حركته الخاصة لانها من المغرب الى المشرق كما ثبت وبين في كتب الرياضي. بعض د مغرب علما وايي چې مغرب تر مشرق افضل دی، ولهذا اختار جهة المغرب. او دا صحيح نه ده ولې چې جلال الدين السيوطي رح وايي لاقطع بتفضيل احدى الجهتين على الاخرى لتعارض الادلة انتهى.

## حَتَّىٰٓ إِذَا بَلَغَ مَغۡرِبَ ٱلشَّمۡسِ وَجَدَهَا تَغۡرُبُ فِي عَيۡنٍ حَمِئَةٍ

حتى چې ورسېدی و ځای ته د لوېدلو د لمر يعني پای ته د مسکوني ځمکې په طرف کې د مغرب بحيث لايمكن مجاوزته (ووقف على حافة البحر الغربي المحيط بالارض چې آقيانوس درياب يې بولي) ده وليدی لمر چې غروب يې وکړی په اوبو کې چې توري لوشي وې.

**درويش وايي**: چې ټوله مفسرين پر دې متفق دي چې "حمائة هي الطين الاسود" او دا لوېدل او غروب د لمر په عين حمئه کې په رؤيت کې د ذوالقرنين وه لافي الواقع لان الشمس في الفلك الرابع او د لمر جرم لکه ځمکه درې سوه (۳۰۰) واره دی على رایٔ فكيف يمكن غروبها في عين حمئة، ددې ليدلو مثال دادی چې په درياب کې سړی په کښتۍ کې سپور وي او لمر غروب وکړي ده ته خيال او رؤيت داسې وي چې لمر په درياب کې ډوب سو، ولهذا قال البيضاوي رح لعله بلغ ساحل البحر المحيط فرئها كذالك اذ لم يكن مطمح نظره غير الطين الاسود والماء. ولذالك قال الله سبحانه وجدها تغرب ولم يقل كانت تغرب انتهى فافهم يعني د ذوالقرنين په نظر کې دا ورغله چې لمر په عين حمئه کې ولوېدی که واقعاً داغسې وای بايد لفظ قرآن داسې وای "كانت تغرب".

**فائده**: فاضل سمرقندي رح په خپل تفسير کې چې بحر العلوم يې نوم دی وايي فانقيل چې د لمر جرم او لوی والی لکه ځمکه درې سوه (۳۰۰) ياماشا الله فكيف يمكن دخولها في عين حمئة من عيون الارض، قلنا قدرة الله باهرة (اى ظاهرة) وحكمته بالغة (يعني ډېره دی) فالله تعالى قادر چې اووه اسمانونه او

مخکه یې په کوچني او حقیر شي کي داخل کړي دي، نو ستا څه گمان دی چي لمر چي په یوه اسمان کي دی په عین حمئه کي یې نسي ځایولای انتهی.

**درویش وایي:** چي سلمنا چي خدای ﷻ پر هر شي قادر دی، لکن دلته نه دا سوال واردېږي نه دومره بعید له عقله جواب ته ضرورت نسته، ولي چي موږ عنقریب دا وویل چي غروب د شمس په عین حمئه کي د ذوالقرنین په لیدلو کي دی لافي الواقع او د هغه ژوندی مثال مو هم ووایه. زما مقصد دادی چي روح البیان، روح المعاني، بیضاوي، مظهري او قرطبي په اتفاق سره دا خبره کړې ده چي غروب د شمس په عین حمئه کي په اعتبار د رؤیت د رائي دی لافي الواقع والله اعلم بالصواب.

وَّوَجَدَ عِنْدَهَا قَوْمًا ۬ۥ

او پیدا کړه ذو القرنین په نیز د عین حمئه یعني پر مخکه چي عین حمئه ته نژدې وه، یو قوم بیضاوي وایي چي بعض اهل تاریخ وایي چي دې خلکو کالي د حیوان وحش اغوستي وه. او د هغو خواړه هغه حیوانات د دریاب ماهیان وغیرها وه چي دریاب به په څپه راغورځولي وه. او دا خلگ کافران وه. امام سهیلي وایي چي دا قوم اهل د جابلس وه بفتح اللام او دا یو ښار وچي په سریاني ژبه یې جرجیا بولي چي دې ښار لس زره دروازې درلودې په منځ کي د هرو دوو دروازو یو فرسخ مځکه وه چي بقایا د قوم د ثمود یانو پکښې اوسېدل. او دی وایي چي اهل جابلس ایمان پر علیه الصلوة والسلام راوړی دی په شپه کي د معراج چي علیه الصلوة والسلام پر دوی تېرېدی. والله اعلم.

قُلْنَا يٰذَا الْقَرْنَيْنِ اِمَّآ اَنْ تُعَذِّبَ

موږ ورته وویل اې ذوالقرنین یعني په طریقه د الهام، او بعض خلگ دا دلیل ددهٔ د نبوت بولي، یا به ته په عذابوې دا قوم بالقتل که دوی پر کفر اصرار وکړی دروسته تر دعوت ستا دوی ته د اسلام.

**درویش وایي:** وقد مر ان ذوالقرنین لم یکن ملکًا ولا نبیًا علی الصحیح.

**سوال:** وژل او قتل د چا په صرف الهام څرنگه روا کېږي؟

**ځواب**: ذوالقرنين خو په خپله ملک صالح عالم وُ. نو په دې خو دی هم پوهېدی چې د مشرک قتل روا دی، خدای ﷻ دغه دده پوهېدل په الهام سره تائید کوي. نو په دې کې دده د نبوت څه دلیل سته. روح المعاني په دې ځای کې ډېرې خبرې کړې دي کما هو عادته، اخیر یې دا خبره کړې ده چې دا قول په واسطه د نبي وُ چې دده سره به ورسره وُ.

**سوال**: دلته خو نسبت خدای ﷻ وځان ته کړی دی یعني "قلنا"؟

**ځواب**: قول د نبي خو د خدای ﷻ قول دی کریمه "وما ینطق عن الهوی ان هو الا وحي یوحی" او بل ځواب یې دا راوړی دی چې دا خبره قلنا یا ذوالقرنین اما ان تعذب الآیة قول د علماؤ مشاورینو دی چې دده سره وه چې هغو اجتهاد او دا خبره وده ته وکړه او نسبت یې و خدای ﷻ ته مجازاً وکړل سو، کما ینسب الاحکام الاجتهادیة في دیننا یعني الاحکام باجتهاد المجتهدین في دین الاسلام الی الله تعالی مجازاً.

**درویش وایي**: چې دا وُ تحقیق ددې مقام صعب ومن الله التوفیق والعلم عند الله.

## وَإِمَّآ أَن تَتَّخِذَ فِيهِمْ حُسْنًا ﴿٨٦﴾

او یا به ته اخلې ددوی په باره کې ښه لار یعني اکرام به یې کوې او د شرائع اسلام تعلیم به ورته کوې یعني ان تابوا و اسلموا.

**فائده**: کلمه د "اما" دلته لپاره د ذوالقرنین د تخییر ده چې ستا اختیار دی که یې وژنې په سبب د کفر حاضر او که دعوت د اسلام ورته کوې رجاً لان یؤمنوا وهو المراد بقوله ان تتخذ فیهم حسناً. او بعض مفسرین وایي چې کلمه د "اما" لپاره د تقسیم ده یعني مصرین پر کفر یې قتل کړه او مؤمنان په دوی کې چې دي د هغو سره خپل عمل پر لار واچوه.

## قَالَ أَمَّا مَن ظَلَمَ فَسَوْفَ نُعَذِّبُهُۥ

ذوالقرنین وویل امتثالاً لامره تعالی هغه څوک چې ظالم وي او ګناهګار پر کفر وکړي وروسته تر دعوت زما ودوی ته د اسلام او شرک ته دوام ورکړي، نو

ژر دی چي موږ یعني زه او زما ملګري مشاورین به دوی ته عذاب ورکړو په دنیا کې یعني بالقتل.

ثُمَّ يُرَدُّ إِلَىٰ رَبِّهِ فَيُعَذِّبُهُ عَذَابًا نُّكْرًا ﴿٨٧﴾

بیا بې رد کړل دوی د خدای ﷻ ته یعني په قیامت کې خدای ﷻ به په هغه ورځ دوی ته عذاب ورکړي نابلده منکر عذاب نادره چي جهنم دی.

وَأَمَّا مَنْ آمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَهُ جَزَاءً الْحُسْنَىٰ

او هغه څوک چي ایمان یې راوړی وي او عمل صالح یې هم کړی وي کما یقتضیه الایمان.

**پوه سه:** چي بعض د قرأ سبعه وو لفظ د "جزاً الحسنی" په اضافت سره یعني برفع جزاً بلا تنوین وايي. نو پر دې تقدیر یې معنی داده چي ده لره جزاً او ثواب د اعمال صالحه وو دده چي جنت دی. نو جزاً الحسنی مبتدأ ده او "فله" یې خبر مقدم دی. او حمزه، کسائي، حفص او یعقوب رحمهم الله یې په تنوین سره "جزاء" وايي. نو پر دې تقدیر "الحسنی" مبتدأ ده او "فله" یې خبر مقدم دی او "جزاً" منصوب دی علی الحالیة. نو معنی یې داده چي ده لره ده حسنی یعني الجنة حال کون الحسنی جزاً یجزی بها او یا فله المثوبة الحسنی حال کونه جزاً في الدارین.

وَسَنَقُولُ لَهُ مِنْ أَمْرِنَا يُسْرًا ﴿٨٨﴾

او ژر دی چي موږ به وو وایو هغه ته یعني چي ایمان یې راوړی وي او عمل صالح یې هم کړی وي زموږ له امر څخه چي پر ده یې کوو اسانه غیر شاق علیه. چونکه "یسر" مصدر دی فلابد من حذف مضاف ای ذا یسر. مظهري وايي چي په دغه خطاب سره د خدای ﷻ و ذوالقرنین ته هغه بعض علماً چي وايي چي ذوالقرنین نبي و د دلیل وايي. لکن بغوي رح وايي چي اصح داده چي نبي نه و والمراد به الالهام، درویش وايي چي ددې خبري تحقیق نژدې تېر سو فلیرجع.

ثُمَّ أَتْبَعَ سَبَبًا ﴿٨٩﴾

بیا ذوالقرنین بله لاره پسي واخستل یعني د مشرق پر خوا.

حَتَّىٰٓ إِذَا بَلَغَ مَطْلِعَ الشَّمْسِ وَجَدَهَا تَطْلُعُ عَلَىٰ قَوْمٍ لَّمْ نَجْعَل لَّهُم مِّن دُونِهَا سِتْرًا ﴿٩٠﴾

حتی چي ورسېدی هغه ځای ته چي لمر پر هغو اولاً راخېژي من معمورة الارض، وه یې لیدی چي لمر راختی پر داسي خلکو چي موږ نه وو ګرځولی دوی لره په مخ کي د لمر پرده من اللباس اوالبنا یا مځکه ددوی د بنا قابلي نه وې او یا دوی د بنا پر مخ د مځکي په ځای کي دومره په مځکه کي د ګرمی له کبله زېر زمیني جوړي کړي وې چي لمر به راوختی دوی به په زېر زمینیو ننوتل د ګرمی له کبله او چي لمر به ښه راپورته سو دوی به له زېر زمینو څخه راووتل، حدادي ؒ وایي چي نه یې پر سرو او نه یې پر بدن وېښتان وه او وېږي یې هم نه درلودې، مخان یې داسي وه لکه پسه چي په اور والویه وذالک من شدة حرارة بلادهم، اخرج ابن المنذر وابن ابي حاتم وابو الشیخ في العظمة عن ابن جریج، قال حدث عن الحسن عن سمرة بن جندب ﷺ قال قال رسول الله ﷺ في آیة لم نجعل لهم من دونها سترا (یعني في تفسیر الآیة المذکورة) بنا لم یبن فیها بنا قط (یعني في زمن ذی القرنین) کانوا اذا طلعت الشمس دخلوا اسرابهم (یعني زېرخانو ته داخل سي) حتی تزول الشمس فاذا غابت خرجوا یتراعون کما تراعون البهائم (وابنه او د ونو پاڼې یعني د درختو بلګونه خورل) له مجاهد ؒ څخه روایت دی لا یلبس الثیاب من السودان (یعني توري پوستي دي) عند مطلع الشمس اکثر من اهل السودان.

**درویش وایي:** چي دا ځایونه پر خط استوا ومایقرب منه جنوبًا وشمالاً واقع وي چي لمر ددوی له سرو څخه تو له کال ډېر نه لېري کېږي. نو له دې کبله ګرمي ده غو ځایو تر نورو شمالي افاقو ډېره زیاته ده وتفصیله في کتب الریاضي والهیئة.

**درویش وایي:** چي روح البیان په مجهوله صیغه یعني روی یو حکایت راوړی دی او رد یې نه دی پر کړی. او روح المعاني بعینه هغه روایت راوړی دی چي د روح المعاني عبارت دادی ,وعن بعضهم "ای الرواة" خرجت حتی الصین "ای چین" فسئالت عن هؤلا" یعني دغه کسان چي په دغه آیت کي ذکر سوه

چېرې دي؟ دوی راته وويل چې په منځ کې ستا او ددوی د يوې ورځې او شپې مسافت دی. نو حاکي وايي چې ما هغه ځای ته ځان ورساوه هغه داسې انسانان وو چې يو غوږ به يې پر مځکه اوار کړی او بل غوږ به يې لکه شړۍ پر ځان راچاوه، حکايت کوونکی وايي چې زما سره يو سړی ملګری و چې ددوی په ژبه پوهېدی "فقالوا له جئتنا تنظر كيف تطلع الشمس" تاسې راغلي ياست د لمر راختل وځان ته معلوموئ؟ موږ ورته وويل هو! حکايت کوونکی وايي چې موږ دا غه خبري سره کولې چې يو وار دربې سو لکه يو غټ ځنځير چې پر ډېره څوک ټکوي، زه خو بې هوشه سوم يو ګړی وروسته چې په هوش کې راغلم ددې ځای خلګ په ما پورې تېل موږي. لمر چې راوختی پر اوبو د درياب داسې ښکارېدی لکه پر درياب چې د زيتون غوړي وېابنې، دوی زه سم دلاسه زېرزمينۍ ته واچولم، لمر چې ښه راپورته سو دوی راووتل ماهيان به يې ښکار کړه لمر ته به يې واچول پاخه او بريان به سول انتهى حكايت روح البيان الذي نقله روح المعاني، وروسته روح المعاني ويلي دي چې وداسې روايت ته بايد سړی التفات ونه کړي (يعني الا للتنبيه على بطلانها) دی وايي چې داسې قصې د سپين سرو ښځو قصې دي چې کوچنيانو ته يې کوي.

**پوښتنه:** په آيت کې خو نکره يعني "سترا" په سياق کې د نفي راغلې ده يعني لم نجعل آه. نو بايد دوی لره هيڅ ساتر له لمر څخه نه وای او سره ددې چې ددوی سرب يعني زېر خانې ددوی ساتر من الشمس وې؟

**ځواب:** الفاظ العموم لايتناول الصور النادرة كالسرب ههنا. فالمراد الساتر المتعارف في البلاد الآخر والسرب ونحوه ليس من المتعارف كما لايخفى فافهم.

**فائده:** له اسکندر څخه چا پوښتنه وکړه چې تا څرنګه مشرق او مغرب بلکې ټوله روی زمين فتح کړی، او سره ددې چې مخکني شاهانو ته دومره فتح نه ده ميسر سوې که يې څه هم ډېرې خزانې او عساکر درلودل؟ اسکندر ورته وويل چې اولاً په مرسته د خدای ﷻ دا فتوحات ما وکړې او دويم سبب دا و چې ما چې به يو ځای فتح کړی رعايت خلګ به مې نه غمول او نه مې ازارول که څه هم تر

فتح دمخه به زما سره په مقابل کي ولاړ وه، دربهم دا چي ما د خلکو د مخني بادشاهانو نوم په بد ته یاداوه بلکې په ښه نامه مي بلل.... بیت:

بزرگی نخوانند اهل خرد ........ که نام بزرگان بزشتی برد

فلم ار مثل العدل للمرء رافعاً ........ ولم ار مثل الجور للمرء واضعاً

كَذٰلِكَ ۖ وَقَدْ اَحَطْنَا بِمَا لَدَيْهِ خُبْرًا ﴿۹۱﴾

داغه رنګه او مونږ احاطه کړې ده په هغه شیانو چي ده درلودل لښکر او آلات الحرب او عددها الى غير ذالک "خبراً" ای علماً.

**پوه سه:** "كذالک" یا خبر د مبتدأ محذوفي دی ای حال ذی القرنین کما بینا من رفعة المرتبة او فراخي د مملکت تر غرب او شرق پوري بلکې د تولي نړی. یا معنی داده چي دده امر په اهل مشرق کي داسي ؤ لکه امر دده په اهل مغرب کي چي ده ته خدای ﷻ اختیار ورکړی ؤ. او یا صفت د مصدر محذوف وجدها دی چي "وجداً" دی ای وجدها تطلع على اهل المشرق کما وجدها تغرب في المغرب.

**پوه سه:** چي "خبراً" منصوب دی تمییز دی له نسبت څخه د احاطه و ضمیر ته چي خدای ﷻ ته راجع دی یعني ان احاطة العلمية دون الجسمية لتنزه تعالى عن الجسمية کما تقرر في کتب العقائد وماقال المظهري انه منصوب على المصدرية لان في احطنا معنی خبرنا تکلف کما لایخفی.

**درویش وایي:** چي په دې آیت کي اشاره و ډېر والي ته د ماذکرنا من امور ذی القرنین بانه لایحیط بها الا علم علام الغیوب. په دې کي دده تعظیم دی.

ثُمَّ اَتْبَعَ سَبَبًا ﴿۹۲﴾

بیا یې ولټول ذوالقرنین دربهمه لاره په منځ کي د مشرق او مغرب یعني له جنوبه یې شروع کړه تر شمال پوري.

حَتّٰۤى اِذَا بَلَغَ بَيْنَ السَّدَّيْنِ

حتی چي ورسېدی ذوالقرنین و منځ ته د دوو غرو چي ذوالقرنین یې په منځ کي سد او دېوال جوړ کړی دی، دا دوه بلند غرونه دي په منتهی کي د ارض

الترک مما يلي المشرق ابله خواته يې جوج ماجوج دي.

**يوه سه:** چي "سد" بفتح السين وضمها كما وقع في القرآتين واحد په معنی د جبل او د عاجز بين الشيئين.

**فائده:** لفظ د "بين" په آيت کي مفعول به د بلغ دی لفظ د بين ظرف متصرف فيه يعني اسم هم راغلی دی چي گاهي منصوب وي على المفعولية كما في هذه الآية او گاهي مرفوع وي على الفاعلية كما في قوله تعالى "لقد تقطع بينكم بالرفع" او گاهي مجرور وي كما في قوله تعالى "هذا فراق بيني وبينک" مظهري وايي هما جبلان بين ارمينية وآذربايجان، او حواله يې و حديث ته د ابن المنذر عن ابن عباس رضي الله عنهما کړي ده، لکن روح المعاني وايي چي حواله ددې خبري و حبر الامة ابن عباس رضي الله عنهما ته صحيح نه ده او في نفسه سد اسکندري دانه دی بلکې دا سد د تاريخ دانانو په نيزد د نوشېروان دی، او څوک وايي د اسفنديار دی او دغه سد تر اوسه باقي هم نه دی بل خرب قبل هذا بكثير من الازمان انتهی قول روح المعاني.

**درويش وايي:** چي اراد د سد بين ارمينية و آذربايجان خلاف القرآن دی، ولي چي سد اسکندري په قرب کي د قيامت منهدم کېږي كما نطق به القرآن على ماسيئاتي، فايراد هذا القول لاينبغي للمظهري فضلاً من نسبته الى حبر الامة ابن عباس رضي الله عنهما، فحق القول لكل صارم نبوة ولكل عالم هفوة.

وَجَدَ مِنْ دُونِهِمَا قَوْمًا

پيدا کړه ذوالقرنين قريب و جبلينو ته وهو معنی امامها، کاشفي رح وايي دربيش آن دو كوه. وفي تفسير الجلالين عندهما "قوماً" اى امة من نوع الانسان.

**درويش وايي:** چي مآل ددغو دوو تفسيرو يو دی.

لَّا يَكَادُونَ يَفْقَهُونَ قَوْلًا ﴿۹۳﴾

**يوه سه:** چي كسائي رح من القراء "يفقهون" په ضمه د يا او په كسره د قاف وايي چي معلومه صيغه د باب افعال سي يعني لايفقهون غيرهم. نو دوی بل سړی نسوای پوه کولای په خبرو، او نور قاريان يې بفتح اليا والقاف من باب المجرد يعني لا يفقهون كلام غيرهم د بل په خبرو نه پوهېدل. نو ابن

عباس رضي الله عنه جامع تفسير كړى دى "لايفهمون كلام احد ولايفهم الناس كلامهم. علامه زمخشري وايي "لايكادون يفقهون الابجهد ومشقة لكه ګونګى چې سړى پوه كوي وهم من الترک" قال اهل التاريخ ان اولاد النوح كانوا ثلثة سام، حام و يافث. فسام ابو العرب والعجم يعني فارسي زبان پښتو زبان وغير ذالک والروم. وحام ابو الحبش والزنج والنوبة. ويافث ابو الترک والخزر والصقالبة وياجوج وماجوج.

## قَالُوا يٰذَا الْقَرْنَيْنِ إِنَّ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ

"قالوا" دې وړاندې السدين خلګو وويل (بعض وايي چې په ژبه د ترجمان يې وويل يعني د شكايت په توګه. لكن ظاهره داده چې ذوالقرنين ته خداى ﷻ قدرت د ټولو ژبو او افهام نعمت وركړى وو. كذا في روح البيان وروح المعاني) اى ذوالقرنين په تحقيق ياجوج او ماجوج.

**پوه سه:** چې دا دوه لفظه عجمي دي. بدليل منع الصرف يعني ياجوج و ماجوج بدون التنوين. نو دوه سببه د منع عجميت او علميت دى. او بعض وايي چې عربي دي عدم صرف يې سبب د علميت او د تانيث په تأويل د قبيلي لانهما علمان لقبيلتين من اولاد يافث كمامر. او په روح المعاني كي وايي چې آدم عليه السلام يوه ورځ په خوب كي شيطان خطايستى او نطفه يې په خاورو ګډه سوه له هغه څخه ياجوج او ماجوج پيدا سول. په انوار المشارق كي وايي چې دا خبره منكره ده جداً عقلاً ونقلاً. اما نقلاً فلقوله عليه الصلوة والسلام ما احتلم نبي قط واما عقلاً آدم عليه السلام كه فرضاً شيطان خطايستلى واى. نو نطفه خو به يې په كالو كي واى. نو په خاورو څرنګه ګډه سوه. او بل داچي ياجوج او ماجوج چې اولاد د آدم واى. نو په طوفان نوح كي چېري وه او ولي نسوه غرق او سره ددې چې احاديث بلكې آيات قرآنيه ظاهراً پر دې چې د طوفان نوح څخه نجات نه دى پيدا كړى بېله اصحاب سفينة نوح عليه السلام.

**درويش وايي:** چې روح البيان كه څه هم د آدم عليه السلام د احتلام تائيد كړى دى لكن موږ متابعت د حديث مذكور كوو: ع: وللناس فيما يعشقون مذهب.

تفسیر بحر العلوم هم دا خبره کړې ده چې یاجوج ماجوج قبیلتان من اولاد یافث بن نوح علیه السلام، او حافظ ابن حجر المحدث الکبیر رح قال لم یرد هذا من احد من السلف الا عن کعب الاحبار ویرده الحدیث المرفوع ان یاجوج وماجوج من ذریة نوح ونوح من ذریة حوا قطعاً.

## مُفۡسِدُوۡنَ فِی الۡاَرۡضِ

فساد کوي په مځکه کې زموږ بالقتل والتخریب واتلاف الزروع، کلبي رح وایي چې دوی به د پسرلي په وخت کې راووتل پر مځکو، نو خلکو ذوالقرنین ته شکایت وکړی چې شنه شیان وي هغه خوري او وچ لرګي وغیره د ځان سره وړي خپلو مځکو ته او ګاهې به یې سړي مړ کړی د هغه غوښې به یې وخوړلې.

**درویش وایي:** چې روح البیان او مظهري د یاجوج او ماجوج په باره کې حیرت انګیز بیانونه کړي دي تاسې یې په خپله وګورئ چې د منلو وړ دي او که څرنګه.

**مهمه فائده:** خلګ خصوصاً کافران له علماؤ څخه پوښتنې کوي چې دا سد سکندري چېرې دی؟ ابن سعید رح وایي چې موضع د سد چې طول البد (۱۶۳) درجې وي او عرض البلد (۴۰) درجې وي انتهی، روح المعاني دا خبره رد کړې ده چې پر دغه طول او عرض د چین ښارونه دي ولیس هناک یاجوج وماجوج، هو البته یو لوی دېوال سته چې (۲۵۰) ساعته مزل د طول یې دی لکن هغه دېوال په منځ کې د دوو غرونه دی او نه یې ذوالقرنین باني دی او هغه بیان د سد سکندري چې عنقریب به په قرآن کریم کې راسي پر هغه دېوال نه صادقېږي، په اخیر کې روح المعاني یوه په زړه پورې خبره کړې ده هغه داده "وقیل هما ای السد ویأجوج ومأجوج" بموضع من الارض لانعلمه وکم فیها من ارض مجهولة ولعل قد حال بیننا وبین ذالک الموضع میاه عظیمة في البحر، ودعوی استقرأ سائر البراري والبحار غیر مسلمة ویجوز العقل ان یکون في البحر ارض لم یظفربها الی الآن (لکه امریکا چې په زرګونو کلونه وروسته انګریزانو کشف کړې او ودان یې کړی چې په دنیا کې په حال حاضر کې یو ستر طاقت ګڼل کېږي، نو عین ممکنه ده چې قیامت ته نژدې نور ځایونه کشف سي چې په هغو کې یاجوج او ماجوج او سد

سکندري دي هم وي وعدم الوجدان لایستلزم عدم الوجود، وحاصل الکلام ان بعد اخبار الصادق (ای القرآن) بوجود هذین السدین (یعني الجبلین) وما یتبعهما (یعني یاجوج ماجوج و سد الاسکندر بین الجبلین) یلزمنا الایمان بذالک کسائر ما اخبر به الصادق من الممکنات کالحشر بعد الموت والجنة والنار وغیر ذالک. والالتفات الی کلام المنکرین ناشئ من ضعف الایمان انتهی قول روح البیان.

**درویش وایي:** چي که مسلمان د کافرانو او مشرکانو خبرو ته اعتبار ورکوي یعني په باره کي د سد سکندري. نو باید په انکار کي د جنت او دوزخ او بعث بعد الموت هم اعتبار ورکړي او ایمان بالغیب دی له لاسه ورکړي! والله الهادي الی صراط مستقیم.

## فَهَلْ نَجْعَلُ لَكَ خَرْجًا

**پوه سه:** چي کلمه د فا لپاره د اظهار د غرض ده ددوی له بیان حال څخه د یاجوج ماجوج یعني چي دوی مفسدین دي، والترجمة للآیة: آیا نه وګرځوو موږ تالره مزدوري چي موږ به چنده وکړو او تاته به یې درکړو، بعض قاریان یې بې الفه په سکون د را وایي، او بعض یې "خراجًا" په الف او فتح الرا وایي وهما بمعنی واحد اجرا په نیز د اکثر اهل اللغة.

## عَلَىٰٓ أَن تَجْعَلَ بَيْنَنَا وَبَيْنَهُمْ سَدًّا ﴿٩٤﴾

یعني په دې شرط دا مال درکوو چي ته به ګرځوې یعني بنا کوې به زموږ او ددوی تر منځ یو مانع چي دوی بیا پر موږ تجاوز نسي کولای.

**پوه سه:** چي "سدًا" بفتح السین وضمها په یوه معنی دي وقد مر بکل واحد منهما.

## قَالَ مَا مَكَّنِّي فِيهِ رَبِّي خَيْرٌ

ذوالقرنین وویل دوی ته چي هغه شی چي ماته ممکنه او قدرت راکړي په هغه کي یعني به المال والملک رب زما بهتر دی تر جُعل او مال ستاسي چي ماته یې راکوئ یعني مفت (وړیا) یې درجوړوم.

**پوه سه:** چي بعض قاریان یې په فک د ادغام وایي یعني "مکنني" علی الاصل،

او بعض قاریان یې په ادغام سره د نونین وایي، دواړه متواتره قرائتونه دي.

## فَأَعِينُونِي بِقُوَّةٍ

زما سره مرسته وکړئ په خپل قوت سره یعني داسي خلگ راکړئ چي د بنایي صنعت یې زده وي، او آلات راوړئ چي د بنا د سد ضرورت ورته وي لکه بېلچه گلنګان وغیره من آلات حفر الارض او داغه رنګه زبر الحدید.

## أَجْعَلْ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ رَدْمًا

زه به وګرځوم په منځ کي ستاسي او ددوی یعني یاجوج ماجوج، دا ځواب د امر دی.

**پوه سه**: چي ردم حاجز او مانع محکم ته وایي چي دا به تر سد چي دوی غوښتی ډېر محکم وي ددوی غوښتنه یې ومنل بلکې بالا ددوی تر غوښتنې یقال في العربي ثوب مردم اذا کان رقاع فوق رقاع وسحاب مردم ای متکاثف بعضه فوق بعض.

**سوال**: ذوالقرنین خو دوی ته ویلي وه چي زه ستاسي خرڅه نه غوارم، نو دلته یې ولي اعینوني بقوة ویلي دي؟

**ځواب**: اول خو ذوالقرنین ودوی ته ثمن د دغه قوت د آلاتو ورکاوه، او بل ځواب دادی چي اېتا د آلاتو صرف کومک دی پر عمل د سد خو مزدوري نه ده، هغه عمل صرف تبرع وه.

- **پوښتنه**: هر ځای ذوالقرنین لفظ د متکلم واحد وایي یعني اجعل؟

**ځواب**: سبب آمر خو ذوالقرنین ؤ او داغه رنګه معمار باشي هم دی ؤ که څه هم کار مزدورانو کاوه.

## آتُونِي زُبَرَ الْحَدِيدِ

راوړئ ټوټې ماته د اوسپنو.

**پوه سه**: چي "زبر" جمع د زبرة ده لکه غرف جمع د غرفة، تفاسیر وایي چي دوی ورته وویل چي موږ زبر الحدید له کومه کړو، نو ده معدن د اوسپني او د میسو په نژدې غرو کي ورو ښو.

**سوال:** دوی ته یې نه وویل چي لوی لوی ډبري راوړئ او سره ددې چي تادای د ردم خو یې په ډبرو راپور ته کړی؟

**ځواب:** ډبرې او شیګي دومره مهمي نه وې لکه د اوسپني خښتي، حسین کاشفي رح وايي چي منقول است که ذوالقرنین خشتها از آهن بساختند بفارغ دلی جا بجا نهاده بودند همګان روز وشب خشت آهن زدند . وحکم کرد تامیان آن دو کوه که چهار هزار قدم بود در طول ودر عرض شست وپنج ګز بود بکنند تابه آب رسید. آه، او بعض وايي چي منځ د دوو غرو درې میله وُ. او بعض وايي سل فرسخه وُ. ولامنافات بین هذه الاقوال ولي چي لاندي حصه ډېره وه کرار کرار لږېدل تر مځکي پوري، یعني بېخونه د غرو سره لېري وه او کرار کرار غرونه سره نژدې کېدل، په هر صورت تادای ته یې لوی لوی ډبري وروا چولې او د ختو پر ځای کماهو المعتاد ویلې کړي مس یې پر اوارول حتی چي دمځکي تر مخ رارسېدل له مځکي څخه یې زبر الحدید اېښول بیا یې پر هغو لرګي او سکاره اېښول وهذا.

## حَتّٰۤى اِذَا سَاوٰى بَیْنَ الصَّدَفَیْنِ

تر هغو چي د غرو سرو ته رسېدل.

**پوه سه:** چي ضمیر د "ساوی" راجع دی د ذوالقرنین ته او لفظ د "بین" مفعول دی کمامر ان بین ظرف متصرف فیه کمامر امثلة رفعه ونصبه وجره وههنا ایضًا من مواضع النصب، ولفظ "حتی" غایة لمحذوف والتقدیر آتوه ایاها یعني ذوالقرنین ته یې زبر الحدید راوړل فجعل یبنی شیئًا شیئًا حتی جعل مابین ناحیتي الجبلین مساویًا للجبلین یعني في الارتفاع، راویان وايي چي ارتفاع یې دوه سوه ګزه وه او عرض یې پینځوس ګزه وُ، وروسته یې منافخ راوړل یعني د اور د پوه کلو آلات او د تازه کولو تو تکې چي په هغه زمانه کي وې لکه په اوسنی زمانه کي د آهنګرانو سره سته چي بنی، یې بولي.

## قَالَ انْفُخُوْا ؕ حَتّٰۤى اِذَا جَعَلَهٗ نَارًا ۙ

ذوالقرنین وعمله او کارکونکو ته وویل چي چې پوه کی، پاست یې (یعني علی زبر الحدید ومابینها من الخشب) حتی چي وګرځاوه ذوالقرنین هغه منفوخ

فيه اور يعني لكه اور في الحرارة.

**درويش وايي:** چي اسناد د جعل وه ذوالقرنين ته مع انه فعل العملة كمامر فتذكر.

قَالَ اٰتُوْنِيْٓ اُفْرِغْ عَلَيْهِ قِطْرًا ﴿۹۶﴾

ذوالقرنين وويل (و هغو خلكو ته چي د ميسو د ويلولو كار يې پر ذمه اخستى ؤ) راوړئ نحاس مذاب يا قطر چي زه وپاشم پر دغه كالنار اى الحديد قطر يعني ميس ويلي، نو دغه قطر مذاب به په هغو تودو اوسپونو پوري كلك ومښتل لكه دېوال چي د پراره په ختو ګل ماله كړي.

**پوښتنه:** دغه زبر د اوسپني چي حرارت د اور تاثير پكښي وكړي، نو يو حيوان پر شاوخوا نسي ورته تېرېدلاى فضلاً عن النفخ فيها حتى تكون ناراً او عن افراغ القطر عليها؟

**ځواب:** امام رازي رح په تفسير كبير كي په نقل د صاحب الارشاد وايي چي دا يوه لويه معجزه (يعني الكرامة) ؤ د ذوالقرنين چي خداى عزوجل تاثير ددغه حرارت بالغه الى اقصى الغاية له ابدانو څخه د مباشرينو د نفخ او د افراغ القطر صرف كړى والله على كل شئ قدير انتهى.

**درويش وايي:** كالسمندل وهو يعيش في النار مع انه حيوان فالنار له كالماً للحيطان فافهم، او روح البيان په خپل وار وايي چي دا نه ده بعيد چي دا نفخ او صب د قطر دي له لېري ځايه څخه وه په يو حيله د حيلو لكه اور د نمرود چي د ابراهيم عليه السلام لپاره يې بل كړى ؤ اخير هيڅ څوك نسواى ورنژدې كېداى چي ابراهيم عليه السلام وروغورځوي اخير يې د منجنيق په ذريعه وروغورځاوه.

**درويش وايي:** چي د ډېر لېري ځايه اور بلول يا پر اور اوبه وغيره پاشل په اوسني زمانه كي د مشين په ذريعه ډېر آسان كار دى كما لا يخفى، نو چي حكمت ودې اندازې ته ورسېدى، نو ستا څه خيال دى چي ذوالقرنين ته به خداى جل جلاله ورته حيله د لېري څخه نه وي وربښوولې فتدبر.

فَمَا اسْطَاعُوْٓا

دوى طاقت نه لري.

**پوه سه:** چي اصل كلمه "استطاعوا" وه جمهور د قراؤ تا ځنـدي حذف كړي تاچي دوه حرفه متقارب په مخرج كي نسي سره يو ځاى كېداى يعني التا والطا او حمزه رح كلمه د تا په طا كي مدغمه وي فيكون التقا الساكنين على غير حده.

أَنْ يَظْهَرُوهُ وَمَا اسْتَطَاعُوا لَهُ نَقْبًا ﴿٩٧﴾

چي جوج ماجوج دي د لوړي خوا پر راؤوړي لغاية ارتفاعه او بل دا چي دا سد ډېر ښوى دى پښـه نـه پر تكيـه كېږي، او نـه طاقت لري جوج ماجوج چي دلاندي د خوا دي سورى كړى، ولي چي ډير سخت دى كما سمعت او بل دا چي عرض يې هم ډېر دى.

قَالَ هَذَا رَحْمَةٌ مِنْ رَبِّي

ذوالقرنين وويل چي دا سد او ماته قدرت راكول پر جوړېدلو دده، رحمت دى پر بندګانو د خداى ﷻ له خوا څخه يعني هغه بندګان چي د ياجوج او ماجوج له فساد څخه يې و ذوالقرنين ته شكايت كړى ؤ كما مر في القرآن العزيز.

فَإِذَا جَاءَ وَعْدُ رَبِّي جَعَلَهُ دَكَّاءَ

چي ورسېږي وعده د خداى ﷻ په راتلو د ياجوج او ماجوج (يعني چي ورځ د قيامت رانژدې سي يعني چي علامات د نفخ الصور پيـدا سي لكـه خروج ياجوج و ماجوج وخروج الدجال ونزول عيسى عليه السلام) وبه ګرځوي دغه سد سره د ټينګ والي او لوړ والي مستوي د ځمكي سره.

**پوه سه:** چي كوفي قرأ دا كلمه په مد او همزه سره وايي بې تنوينه كما في المصاحف المطبوعة او نور قرأ يې په تنوين بېه مده او همزه وايي يعني "دكًا" نو پر دې تقدير "دكًا" مصدر دى په معنى د مفعول اى مدكوكًا مسويًا بالارض فالمآل واحد، درويش وايي پاى ته ورسېدل قصه د ذوالقرنين.

وَكَانَ وَعْدُ رَبِّي حَقًّا ﴿٩٨﴾

او ده وعده حق يعني راتلونكې بېله شكه.

**پوه سه:** چي خروج د ياجوج او ماجوج وروسته تر نزول د عيسى عليه السلام دی او قتل د دجال من يد عيسى عليه السلام.

## وَتَرَكْنَا بَعْضَهُمْ يَوْمَئِذٍ يَمُوجُ فِي بَعْضٍ

بعض مفسرين وايي په وخت كي د فتح د سد دی فالمعنى جعلنا (په قاموس كي وايي چي تركنا په معنى د جعلنا دی) بعض ياجوج و ماجوج يدخل بعضهم في بعض لغاية كثرتهم وتسابقهم في السير كموج البحر. او بعض مفسرين وايي هذا عند قيام الساعة يدخل بعضهم في بعض او انس او جن سره گډوډ سي چي تولـه د حيرت په درياب كي ډوب وي. دا تفسير د وروسته آيت سره سمون لري.

## وَنُفِخَ فِي الصُّورِ

او پوه كړل سي (يعني اسرافيل عليه السلام په خپل قرن كي نفخة البعث بعد الموت) تفسير حسيني وايي روز قيامت انس و جن از روى تحير و اضطراب درهم آميزند انتهى.

**سوال:** نفخه اولى يې نه كړه ذكر حكمت يې څه دی؟

**ځواب:** حكمت يې دادی چي فصل راتسي په منځ كي د احوال د نشأة الاولى چي په قصه كي د ذوالقرنين ذكر سوه او په منځ كي د احوال او اهوال د نشأة الثانية. په صحيح حديث كي راغلي دي سئل رسول الله صلى الله عليه وسلم عن الصور فقال عليه السلام هو قرن من نور القمه اسرافيل.

## فَجَمَعْنَٰهُمْ جَمْعًا ﴿٩٩﴾

يعني جمع به كړو خلائق انس او جن په يوه ځكه كي للحساب والجزا.

## وَعَرَضْنَا جَهَنَّمَ يَوْمَئِذٍ لِّلْكَٰفِرِينَ عَرْضًا ﴿١٠٠﴾

او ښكاره به كړو موږ دوږخ و كافرانو ته "عرضاً" مفعول مطلق دی.

## الَّذِينَ كَانَتْ أَعْيُنُهُمْ فِي غِطَآءٍ

هغه كسان چي وي ستر ګې ددوی په پرده كي. والغطا ما يستر الشئ.

**پوه سه:** چي د "غطآ" تنوین لپاره د تعظیم دی ای في غطآ عظیم یعني في الدنیا، شرح المشارق یو حدیث رانقل کړی دی چي جهنم چي هر ځای خدای ﷻ پیدا کړی دی د قیامت په ورځ اوویا زره تناونه چي پر هر تناو یې اوویا زره ملکي وي محشرگاه ته به راوړل سي او کافران به یې ووینې او جنت ته بله لار نسته بېله پل صراط چي پر متن د جهنم پروت دی.

**سوال:** تخصیص د کافرانو یې ولې وکړی. سره ددې چي جهنم خو په محشرگاه کي ټوله مؤمنان هم وینې؟

**ځواب:** د دوږخ ایجاد لپاره د کافرانو دی في اصل الوضع وبعض المؤمنین کالطفیلي.

## عَنْ ذِكْرِي

له لیدلو ځخه د آیاتو او دلائلو د قدرت او د وحدانیت زما چي په ټولو ذراتو کي د عالم ځلاندي دي، شیخ سعدي رح وايي:

برگ درختان سبز درنظر هوشیار .... هر ورقی دفتریست معرفت کردگار

## وَكَانُوا لَا يَسْتَطِيعُونَ سَمْعًا ﴿١٠١﴾

او دوی وه چي طاقت یې نه درلودی د اورېدلو د ذکر او کلام زما یعني په سماع قبول سره یعني ددوی حالت بد دی تر کاڼه ولي که هغه ته په زوره ځوک خبري وکړي اوري یې، او کافرانو ته که هر څو کوشش په رسولو کي د قرآن او ذکر الهي انبیآ کرام علیهم السلام وکړي دوی یې نه اوري یعني ځانونه یې کاڼه اچولي وي کان لم یسمعها.

**درویش وايي:** چي اخري خبري د یاجوج و ماجوج په شان کي علی مافي کتب التفاسیر المعتبرة دادي چي په صحیح مسلم کي حدیث د نواس بن سمعان رضی الله عنه داسي راغلی دی چي عیسی علیه السلام چي له اسمانه پر بیت المقدس راکښته سي او تر ده د مخه دجال په مځکه کي لوی ظلم پر مؤمنانو کاوه، عیسی علیه السلام دجال قتل کړي په دوازه لد کي. او هغه بعض مسلمانان چي له دجال ځخه په غرو او غارو کي پټ وه عیسی علیه السلام ورسي پر مخانو یې لاس ورتېر کړي او بیان د لویو درجو د

جنت چي خدای ﷻ به یې دوی ته ور کړي دوی ته وکړي پر داغه حال وي چي عیسی علیه السلام ته خدای ﷻ وحي وکړي "اني قد اخرجت عباداً لي ای مخلوقاً لي چي یاجوج او ماجوج دي" چي طاقت نه لري هیڅ څوک د جنګ ددوی. نو زما بندګان یعني مؤمنان په کوه طور کي خوندي کړه. عیسی علیه السلام همدغسي وکړي یأجوج او مأجوج پر خلګو راووځي، کریمه "وهم من کل حدب ینسلون" د ویالو او د رودو او د رودو د کاسو او به تولي وچي کړي. خلګ له بېرې په محفوظه کلاوو ننوځي او خپل مواشي هم په کلاوو ورسره ننباسي حتی چي اوله ډله ددوی پر یوه ویاله یا کاسه راسي تولـه او به یې وڅیښي او هغه وچه مځکه پاته سي. وروستنۍ ډله ددوی چي پر راسي وایي چي دلته لکه چي پخوا او به وې او عیسی علیه السلام او هغه مؤمنان چي دده سره وي په کوه طور کي محصور پاته وي، حتی چي د یوه غوایي سر دوی لره خیر وي تر سل دیناره. نو یأجوج او مأجوج یو د بل سره ووایي چي د مځکي خلګ خو مړه سوه رائحي چي د من في السمآ سره هم جنګ وکړو. نو غشي د اسمان و خوا ته غورځوي د اسمان له خوا څخه په وینو ککړ په قدرت د خدای ﷻ سره راشوه کېږي، ددوی د ابتلاً او فتنې یعني امتحان لپاره عیسی علیه السلام ومن معه من المؤمنین خدای پاک ته زاری او عجز نیاز کوي. خدای ﷻ ددوی په غاړو کي نغف چي د یو چینجي نوم دی پر تولو مسلط کړي تولـه په یوه وار مردار سي لکه یو سړی چي مړي اخیر د یأجوج او مأجوج حرکت او درغ کرار سي. مسلمانان سره ووایي چي داسي سړی نسته چي زموږ لپاره ځان قربان کړي او ددې دښمنانو حال موږ ته راوړي، نو یو مسلمان ځان تیار کړي او دا یې یقین وي چي زه وژل کېږم چي له هغه مخفي ځایه څخه راووځي تولـه مړه پراته وي یو پر بل سربېره. نو هغه سړی ناري کړي یامعشر المسلمین الا ابشروا ان الله ﷻ قد کفاکم عدوکم فیخرج عیسی علیه السلام ومن معه. او نور خلګ له کلاوو څخه راووځي مواشي چي راوباسي هیڅ مرعي نه وي تولـه مځکه ددوی مړو نیولې وي او بد بوی تر اندازه د پر وي، بیا عیسی علیه السلام ومن معه په دفع کي ددې مړو او بدبوی خدای ﷻ ته عجز او زاری وکړي. نو خدای ﷻ به داسي مرغان پیدا کړي په داسي شان لکه د مایه اوښ غاړه دغه مړي تولوي، په یوه روایت کي حیث

شا الله ته یې غورځوي او په یوه روایت کې دریاب ته یې غورځوي، وروسته خدای ﷻ داسې باران شروع کړي چې مځکه ټوله پاکه پرېمنځي، بدبوی ټوله ولاړه سي، از سر نو پر مسلمانانو د خوشالۍ او د ډېرو مېوو وخت راسي. وروسته خدای پاک امر وکړي و مځکې ته انبتي ثمرتک وردي برکتک فيومئذ تاکل العصابة (ای الجماعة) من الرمان ويستظلون بقحفها (او په سایه کې کېښېني پوستکي یې) ويبارک في الرسل (اوبرکت پیدا اسي) په شیر دهنده حیوانانو کې) حتى ان اللقحة من الابل لتكفى الفاءم من الناس (حتی کافي وي شیدې د یوې اوښې د جماعاتو د خلګو)

**درويش وايي**: وهذا مافي روح المعاني وقريب منه في المظهري ومثله في روح البيان ولايعلم عدد ياجوج وماجوج الا الله. وفي البحر انه قد اختلف في عددهم واحوالهم ولم يصح في ذالک شئ انتهى.

**درويش وايي**: چې تفويض د عدد د دوی او نور احوال ددوی وعلم ته خدای ﷻ اسلم لار ده کریمه "ولايعلم جنود ربک الا هو ومزيد التفصيل في روح المعاني والمظهري.

## اَفَحَسِبَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اَنْ يَّتَّخِذُوْا عِبَادِيْ مِنْ دُوْنِيْٓ اَوْلِيَآءَ

آیا ګمان دی د هغو کسانو چې کافران دي چې ګرځولی دی دوی بندګان زما چې ملکي دي یا عیسی یا عزیر علیهم السلام بلکې بعض مشرکان د مکې چې د ملکو عبادت یې کاوه یا نصاری چې عیسی علیه السلام یې ابن الله باله، یا یهودان چې عزیر علیه السلام یې ابن الله ګاڼه سوی له خدای ﷻ څخه اولیا . یعني دوستان یا خدایان یا شفاعت کوونکي یې ګڼل.

او ابن عباس رضي الله عنهما وایي چې مراد څنې شیطانان دي چې دوی د هغو په اضلال د بتانو عبادت کاوه. او مقاتل رح وايي چې مراد څنې بتان دي.

**سوال**: ددې اضافت په عبدیت خدای ﷻ ځان ه څرنګه وکړی؟

**ځواب**: په اعتبار د مخلوقیت ټوله بندګان دي قال الله تعالى ان الذين تدعون من دون الله عباد امثالكم.

**فائده:** لفظ د "عبادي" او "اولیا" دوه مفعول د "یتخذوا" دي او "ان" سره د صله قائم مقام د مفعول د "حسب" دی. او استفهام لپاره د انکار دی پر دوی یعني لیس الامر کذالک بلکې دا کسان یا شیان ددوی دښمنان دي په ورځ د قیامت او ددوی څخه بېزاره وي فان عباد الله الصالحین کعیسی وعزیر والملائکة علیهم السلام اعداً للکافرین في الدنیا والآخرة والشیاطین والاصنام في یوم القیامة یتبرؤن ممن عبدواهم ویلعن بعضهم بعضاً.

إِنَّآ أَعْتَدْنَا جَهَنَّمَ لِلْكَٰفِرِينَ نُزُلًا ﴿١٠٢﴾

موږ اراسته کړی جهنم لپاره د کافرانو ځای د نزول او قیام گاه ددوی او یا مېلمستون ددوی لپاره ففیه تهکم بهم یعني استهزاً بهم.

قُلْ هَلْ نُنَبِّئُكُم بِٱلْأَخْسَرِينَ أَعْمَٰلًا ﴿١٠٣﴾

ته ورته ووایه چي آیا موږ خبر نه کړو تاسي په هغو کسانو چي ډېر تاوانیان من حیث العمل، نو اعمالاً منصوب علی التمییز دی.

**سوال:** تمییز دلته ولي جمع راوړی؟

**ځواب:** لپاره د تنبیه پر تنوع د اعمالو ددوی. په تفسیر ارشاد کي وایي چي دا حال د کفارو بیانوي چي دوی به اعمال حسنه في الواقع کوله لکه صلة الرحم اوعتاق الرقاب او اطعام الفقرا وغیرها، او ددوی په گمان دا ؤ چي دا موږ ښه کارونه کوو او خدای جل جلاله به یې موږ ته ثواب راکړي.

ٱلَّذِينَ ضَلَّ سَعْيُهُمْ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا وَهُمْ يَحْسَبُونَ أَنَّهُمْ يُحْسِنُونَ صُنْعًا ﴿١٠٤﴾

هغه کسان دي چي ضائع سوه یعني تاواني سو کوشش دوی په ژوند کي د دنیا یعني بې فائدې سو او دوی دا گمان کوي چي دا موږ ښه کارونه کوو "صنعاً" تمییز دی.

**یوه سه:** چي "الذین ضل آه" مرفوع محلاً دی خبر د محذوفي مبتدأ ده ای هم الذین آه، نو دا ځواب د هغه استفهام دی، یعني "قل هل آه" او یا مجرور محلاً دی

بدل دی من الاخسرين آه يا منصوب محلاً دی على الذم ای اعني او اذم الذين ضل آه . كما قالوا ای النحاة في اعوذ من الشيطان الرجيم برفع الرجيم مع انه صفت للمجرور، نو دوی وايي چي مرفوع على الذم ای هو الرجيم. او يا په نصب د الرجيم چي دوی وايي منصوب على الذم دی اعني الرجيم. وكذا قالوا في بسم الله الرحمن الرحيم برفع الرحمن الرحيم دوی وايي چي دا مرفوع على المدح دی بحذف المبتدا ای هو الرحمن الرحيم، يا په نصب د الرحمن الرحيم. دوی وايي چي منصوب على المدح دی په حذف د اعني يا امدح. وكذا مررت بعبدك المسكين چي په نصب المسكين يې ووايي مع انه صفة للمجرور بحذف اعني، او اترحم المسكين كذا في شرح العلامة عبد الرحمن الجامي رح على الكافية.

**يوه سه:** چي ابن عباس او سعيد بن ابي وقاص رضي الله عنه وايي چي دا يهود او نصارى دي. ددوی گمان دادی چي موږ پر حق يو او سره ددې چي دوی پر دين منسوخ وه. او علي بن ابي طالب رضي الله عنه وايي چي مراد ددې يعني الذين ضل سعيهم څخه اهل د قريه د حروراء دي چي خوارج يې بولي فانهم اول فرقة بغوا على اهل السنة والجماعة من اصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم ومن معهم وزعموا انهم على الحق.

**درويش وايي:** چي دا آيت اخبار بالغيب دی لان الخوارج ظهروا بعد وفات النبي صلى الله عليه وسلم چي قرآن پاک ټوله کامل سوی ؤ فافهم. او په عموم کي د آيت ټوله اهل الاهواء والبدعة المخالفين لاهل السنة هم داخلېږي لکه روافض، معتزله وغيرهم. فقير وايي تر ټولو ظاهره معنى د آيت داده چي مراد له "الذين ضل آه" هغه کافران دي چي دوی بعث بعد الموت نه مني. نو دوی هغه کارونه کوي چي په دنيا کي دوی ته گټور وي ولا يرون وراء الدنيا شيئاً كذا قال المظهري رح. او يا هغه احتمال چي مراد له الذين ضل سعيهم آه هغه صوفيان د نصارى وو دي چي رهبان يې بولي چي دوی به په خلوت خانو کي ناست وه او ټوله لذات د دنيا به يې پر ځان حرام کړي وه طمعاً في نعيم الآخرة وقد ضل سعيهم لكونهم على الكفر بعد بعثت النبي صلى الله عليه وسلم ونسخ دينهم.

**درويش وايي:** چي روح البيان دا ټوله فرق مذکوره راوړي دي. او يو احتمال

زائد یې راوړی دی چې اهل الريا او سمعة یې هم پکښې داخل کړي دي لأن الريا شرک خفي والشرک ظاهر كان او خفياً محبط الاعمال ولو كانت حسنة ظاهراً.

**فائده:** د دې ضلال د سعي مثال دادی چې لکه یو مسلمان چې په ښه ترتیب او قرائت او رکوع او سجده سره لمونځ وکړي لکن او دس یې نه وي قصداً.

## أُولَٰئِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ وَلِقَائِهِ

دا هغه کسان دي چې کفر او انکار یې کړی دی له آیات څخه د رب ددوی دی او په ملاقات د ده یعني البعث بعد الموت.

**پوهه:** چې په دې آیت کې اشاره و بد والي او سوء الحال ته د هغو کسانو ده چې مسلمانان خو وي بیا هم اعمال د دنیا یعني تحصیل د مال او جاه وجلال یې مقدم کړی وي پر اعمال د اخرت او ځانونه یې په دنیاوي کارو کې په ډېر تکلیف کې او په سرگرداني کې اچولي وي او امور د آخرت او مغفرت یې و فضل ته د خدای ﷻ سپارلي وي یعني په هغو ځان نه ستړی کوي، په حدیث کې د ترمذي، ابن ماجه، احمد او د حاکم له انس ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وویل "الكيس من دان نفسه وعمل لما بعد الموت" هوښیار سړی هغه دی چې خپل نفس وپېژني او د مرگ د مخه ښه عمل وکړي، یعني د آخرت لپاره "والعاجز من اتبع نفسه هواها وتمنى على الله" چې نفس یې تابع د خواهشات نفسیه گرځولی وي او پر خدای ﷻ تمنی د جنت او د مغفرت کوي.

**پوهه:** چې له آیتو څخه په قرآن کې دلائل د خدای ﷻ مراد دي چې داعي و توحید ته د خدای ﷻ وي الشاملة للسمعية والعقلية.

## فَحَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ

نو لغوه شوه عملونه ددوی چې امید د ثواب یې ورته کاوه، او ثواب نه ورکول کېږي پر دغو عملو ددوی په سبب د کفر ددوی ولې چې په اجماع الامة سره ایمان شرط دی د قبول د ټولو حسناتو او دا آیت یې شاهد دی او احادیث نبویه هم پر دې متواتر راغلي دي.

**پوښتنه**: تا دمخه د حضرت علي ﷺ حدیث چي دا کسان خوارج دي راوړی او بیا دي هم وویل چي په عموم د آیت تولـه اهل الســوء والبدعة چي مخالف د اهل السـنة والجماعـة وي داخلېږي، او بيـا دي دا هـم وويـل چـي روح البيـان دا تولې فرق مذکوره راوړي دي الخ. پوښتنه داده چي مذکوره فرق خو د بعث بعد الموت چي معنی لقائه ده منکر نه دي او له آیتو څخه د خدای ﷻ هم منکر نه دي بلکې دوی هم په قال الله وقال الرسول چي ادلة سمعیه دي دلائل وايي کما هو الظاهر من مطالعة کتبهم. مثلاً معتزله وايي چي د گناه کبیره کونکی چي بې توبې مړ سي ځای يې ابدي دوزخ دی لکه د کافر، او دلیل دا وايي ومن قتل مؤمنًا متعمداً فجزائه جهنم خالداً فیها" نور اهل کبائر پر قیاسوي. وهکذا نور اهل هوا هم ورته دلائل وايي من الکتاب والسنة؟

**ځواب**: ددغو ډلو چونکه مذاهب باطل دي او پر ضلال دي، نو هغه آیاتونه یا حدیثونه چي ددوی لـه مذهبه مخالف وي پر معنی مراد يې نه مني بلکې باطل تأویل يې کوي چي ددوی د مذهبو سره موافق سي. او لقا الله چي مراد ځني بعث بعد الموت دی کما هو حقه نه مني لکه چي معتزله د اهل کبیره اذا مات بلا توبة ځای يې ابدي دوزخ دی او سره ددې چي بعث بعد الموت خو داغسي نه دی وعلی هذا فقس المذاهب الاخر من اهل البدعة والهوا.

که څوک تفصیل ددوی د مذهبو او دلائل باطله وو ددوی غواړي نو کتاب الملل والنحل لمحمد بن عبدالکریم الشهرستاني دي مطالعه کړي.

**درویش وایي**: چي ما ددغه جنجال د خلاصون لپاره دا وويل پـه وړاندي کي تر تولو ظاهره معنی د آیت داده الی اخیره، او روح المعاني د مذکوره پوښتني په ځواب کي داسي ویلي دي چي ادخال ددې فرقو په دې آیت کي تغلیظ دی پر دې فرقو تفسیر د آیت نه دی، نو دې ته په عربي ژبه تعریض وايي لکه يو سړی چي پـه يـو مجلس کي ووايي ما انا ببخیل تعریضاً علی البخیل في المجلس والله اعلم بمراده في کتابه.

فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَزْنًا ۝

نو موږ نه ورکوو دوی ته په ورځ د قیامت قدر او اعتبار یعني پـه نېز د خدای

ﷺ هیڅ قدر نه لري، او یا معنی د آیت داده چي مور ددوی عملو ته ترازو نه ایږدو چي ددوی علمونه په تول کړو، ولي چي هغه عملونه ددوی په سبب د کفر لغوه دي بلکې بلا وزن یې دوزخ ته اچوو، او یا معنی داده چي هغه عملونه چي دوی به حسنات ګڼله وزن نه لري في المیزان العدل یوم القیامة، وعن ابي هریرة ﷺ عن رسول اللهﷺ قال لیاتي الرجل العظیم (ای في مرتبة الدنیا) السمین (چي چاغ وي په بدن کي) لا یزن عند الله جناح بعوضة (یعني قدر نه لري په نېز د خدای ﷻ د غوماشي د وزرو) وقال علیه السلام ولانقیم لهم القیامة وزنًا. بخاري مسلم" بغوي رح وایي چي د ابو سعید الخدري ﷺ څخه روایت دی چي بعض خلګ به په ورځ د قیامت دومره لوی لوی عملونه راوړي یعني د حسناتو له قسمه څخه لکه غرونه د تهامه. نو چي وه یې تلي د هیڅ شي تول نه لري فذالک قوله تعالی "فلانقیم لهم یوم القیامة وزنًا" ای قدرًا لاعمالهم یا د کفر له سببه لکه کفارو د مکې چي به صله رحمي او فقراؤ ته ډوډۍ او د حاجیانو خدمت به یې کاوه الی غیر ذالک، او یا د نفاق په سبب کما یفعل بعض منافقی المدینة.

جلال الدین السیوطي رح وایي چي د علماؤ اختلاف دی. بعض وایي چي میزان یوازې د مؤمنانو لپاره دی لقوله تعالی فلانقیم لهم (ای للکافرین وزنًا) او بعض علما وایي چي د کافرانو عملونه هم تلل کېږي. او د آیت ځواب یې داسي ورکړی دی چي په آیت کي خو وزن په معنی د قدر دی کمامر یعني نه د تللو په معنی، او دویمه ټوله دلیل په دې آیت سره وایي "فمن خفت موازینه فاؤلئک الذین خسروا انفسهم في جهنم خالدون الآیة. وجه الاستدلال ان الخلود في جهنم للکفار فعلم ان اعمالهم یوزن. امام قرطبي په خپل تفسیر کي وایي المیزان لایکون في حق کل واحد من المؤمنین والکافرین لان الذین یدخلون الجنة بلا حساب "کما جا في الحدیث الصحیح" لاینصب لهم المیزان، وکذالک من یعجل به العقوبة بالنار بغیر حساب (لا یوزن اعمالهم) وهم المذکورون في قوله یعرف المجرمون بسیماهم الآیة. مظهري وایي چي په دې قول د قرطبي جمع د قولینو او د آیتینو هم راغله بان النفي والاثبات محمول علی بعض فتدبر.

ذٰلِكَ جَزَآؤُهُمْ جَهَنَّمُ بِمَا كَفَرُوْا وَاتَّخَذُوْٓا اٰيٰتِيْ وَرُسُلِيْ هُزُوًا ﴿۱۰۶﴾

"ذالک" ای الامر ذالک یعني خبره خو داغه ده "ذالک" خبر د مبتدأ محذوفي دی "جزآئهم جهنم" دا جمله بیان د الامر ذالک ده "بما" کلمه د بأ سببیه ده او کلمه د ما مصدریه ده ای بسبب کفرهم "واتخذوا" عطف دی پر "کفروا" والمعنی باتخاذهم، دوی گرځولي وه آیات د کتابو زما او رسولانو زما ځای د پسخند او مسخرو، نو "هزوا" مصدر دی په معنی د مهزوبهم، او یا یې حمل مبالغةً نحو زید عدل مجازاً في النسبة.

**مسئله**: چونکه علمأ عاملین ورثه د انبیأ علیهم السلام دي کما جأ في الحدیث الصحیح ولي چي د علمأ علوم له مشکوة څخه د انبیأ علیهم السلام اخسته سوي دي نو څوک چي پسخند په علمأ ووهي هغه له ورثه وو څخه د ابوجهل او عقبه بن ابي محیط وغیرهما دي. راویان وایي چي یوه ورځ علیه الصلوة والسلام روان ؤ ابوجهل وروسته په پسي ؤ د پزي سونګي او د خولې چړپې یې د پسخنده پسي کاوه، اخیر علیه الصلوة والسلام په یوه سو نو یې ابوجهل ته وویل "کن کذالک" داغسي اوسه تر مرګه، نو د ابوجهل داغه عادت وګرځېدی لکن بیا یې هم تر پایه ایمان نه راوړی الی ان قتل ببدر شر قتله واشتهر اسمه بفرعون هذه الامة لکن تر فرعون بد تر ؤ. ولي چي فرعون چي اوبو غرق کړی د اوبو په څپه کي چي راپورته سو داسي یې وویل لا اله الا الذي آمن به بنو اسرائیل، جبرئیل علیه السلام په خوله کي ختي ورواچولې، ابو جهل چي په بدر کي د ابنی عفرأ له خوا څخه سخت زخمي سوی ؤ رمق یې باقي ؤ چي عبدالله بن مسعود رضي الله عنه پر راغلی او ورته وه یې ویل انت ابوجهل؟ ده په داغسي زخمي حالت کي ورته وویل چي کښته ګرو یعني مدیني والو قتل کړم چي ابنی عفرأ وه، په عربي یې داسي ورته وویل لو غیر اکار قتلني، په صحیح روایت کي راغلي دي چي یوه ورځ عقبه بن ابي معیط د خولې ناړې پر مخ مبارک د علیه الصلوة والسلام توه کړې هغه ناړې د عقبه پر مخ ومښتلې چي د عقبه د مخ هغه ځای تر مرګه پوري پیس چي په عربي یې برص بولي وګرځېدی چي دده په باره کي دا آیت هم نازل سو "ویوم یعض الظالم علی یدیه.

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ كَانَتْ لَهُمْ جَنَّاتُ الْفِرْدَوْسِ نُزُلًا ﴿۱۰۷﴾

په تحقیق هغه کسان چې ایمان یې راوړی یعنې پر تول مؤمن به او اعمال صالحه یې کړي من الاعمال البدنية كالصلوة والمالية كالزكوة والمركب منهما كالحج والاعمال القلبية كالزهد والتقوى الى غير ذالك دوی لره وه یعنې په علم کې د خدای ﷻ او په حکم کې د خدای ﷻ او په وعده کې د خدای ﷻ جنتونه د فردوس یعنې باغونه د فردوس.

**پوه سه:** چې ابوهریره ﷛ د علیه الصلوة والسلام څخه روایت کړی دی "قال اذا سئلتم الله فاسئلوا الفردوس فانه اوسط الجنة.

**پوه سه:** چې امام سیوطي ﷫ وايي المراد بوسط الجنة خيارها واعلى الجنة وفوقه عرش الرحمن ومنه تفجر انهار الجنة (بخاري) وروى الترمذي والحاكم عن عبادة ابن صامت ﷛ ان النبي ﷺ ان الجنة مائة درجة بين كل درجتين كما بين السماء والارض والفردوس اعلاها درجةً ومن فوقها العرش. ومنه تفجر انهار الجنة الاربعة فاذا سألتموا الله فاسئلوا الفردوس.

خَالِدِينَ فِيهَا لَا يَبْغُونَ عَنْهَا حِوَلًا ﴿۱۰۸﴾

دوی به همېشه وي په دې جنت کې یعنې اذا دخلوها فهو حال مقدرة نه به غواړي دوی له دې جنت څخه تحول یعنې وتل وي. ولي تر دې فردوس ښه ځای نسته چې د هغه تحول وغواړي.

**فائده:** جنات یې جمع راوړی او "فردوس" یې مضاف کړی له دې کبله چې فردوس خو د یو جنت نوم دی چې په هغه کې درجات سته بعضها فوق بعض الى ماشاء الله حتى چې د سید المرسلین ﷺ درجه فوق الکل ده په درجاتو کې د جنت فردوس.

**پوه سه:** چې حاکم له ابن عباس ﷛ څخه روایت کړی دی چې قریشو و یهودانو ته وویل چې تاسې موږ ته یو شی راوښایاست چې موږ د محمد (ﷺ) د نبوت امتحان په وکړو، یهودو یو شی دا ورو ښوو چې د روح پوښتنه

ځندي وکړئ، دوی چي پوښتنه وکړه دا آیت نازل سو "ویسئلونک عن الروح، قل الروح من امر ربي وما اوتیتم من العلم الا قلیلاً". نو یهودانو وویل چي موږته خدای علم کثیر راکړی دی اوتینا التورات فنزلت هذه الآیة في ردّا لهم.

## قُل لَّوْ كَانَ الْبَحْرُ مِدَادًا لِّكَلِمَاتِ رَبِّي

یا محمد (ﷺ) ته ورته ووایه که چېري دریاب (حسین کاشفي رح یې ترجمه داسي کړې ده بگو اگر باشد دریای محیط که شامل ارض است آه، او روح المعاني، روح البیان، مظهري او قرطبي وایي مراد جنس بحر دی، لکن چونکه بحر د فراخه ځای نوم دی چي اوبه پکښي بهېږي، نو ټولو نامورو مفسرانو یې په حذف د مضاف ترجمه کړې ده ای ما جنس البحر مثل جری النهر وسال المیزاب)

**پوه سه:** چي "مداد" او نقس او حبر هغه شي ته وایي چي خط په نوشته کېږي بای لون کان احمر، اسود اخضر وغیر ذالک "لکلمات ربي" د کلماتو د علم او حکمت د خدای ﷻ.

## لَنَفِدَ الْبَحْرُ قَبْلَ أَن تَنفَدَ كَلِمَاتُ رَبِّي وَلَوْ جِئْنَا بِمِثْلِهِ مَدَدًا ۝

نیستي او خلاصي سوي به وای جنس اوبه دریاب تولـه لان کل جسم متناه، نو په جنس دریاب کي به هیڅ اوبه نه وای پاته سوي. د مخه تر دې چي معلومات د خدای ﷻ ختم کېدای، ولي چي معلومات او حکمتونه د خدای غیر متناهي دي، والمتناهي لا یمکن ان یحیط بغیر المتناهي. او که څه هم موږ راتگ وکړو په مثل سره د جنس البحر الموجود زیاتوب او کومک. لان ضم المحدود بشرط الوجود لا یفضي الی عدم التناهي لقیام الادلة القطیة العقلیة علی تناهي الابعاد کما في کتب الحکمة. په تفسیر بحر العلوم کي وایي چي په قرآن کریم کي یې لفظ د کلمات راوړی چي جمع قلت ده او جمع کثرت چي کلم دی نه یې راوړی، تنبیه پر دې ده چي اوبه د جنس البحر پر لږ باندي د معلوماتو د خدای ﷻ احاطه نسي کولای فکیف بالکثیر، قطعه:

علمها از بحر علمش قطره ...... این چو خورشید است وآنها ذره
گر کسی در علم صد لقمان بود ....... پیش علم کاملش نادان بود

قُلْ اِنَّمَآ اَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُوْحٰٓى اِلَيَّ اَنَّمَآ اِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ

ته ورته ووايه يعني كفارو ته د مكې نه يم زه مګر يو بشر په مثل ستاسي ماته وحي كړل سوي دي يعني د خداى ﷻ له خوا څخه چي نه دى معبود بالحق ستاسي مګر نه يو يعني الله ﷻ والغرض ان معبوداتكم الاصنام باطلة لاتخلق ولا تنفع ولاتضر ولا بد من ذالك في المعبود بالحق كما لايخفى على العاقل غير المعاند.

فَمَنْ كَانَ يَرْجُوْا لِقَآءَ رَبِّهٖ

**پوه سه:** چي بغوي رحمه الله وايي چي "رجا" په معنى د خوف او اميد دواړو راغلې ده. نو معنى د آيت داده كه څوک بېرېږي له ورتګه او له عذابه د خداى ﷻ او اميد د ښه ثواب د خداى ﷻ لري يعني كلاهما في يوم القيامة.

فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَالِحًا وَّلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهٖٓ اَحَدًا ۝١١٠

نو دى عمل كوي حسن يعني ما امره الله به كه فرائض وي او كه واجبات وي كه بدني وي او كه مالي او كه مشترک لكه حج. او نه دي شريک كوي په عبادت كي د خداى ﷻ هيڅ څوک او هيڅ شى.

**درويش وايي:** چي يو خو شرک جلي يعني ښكاره چي عبادت دى د بتانو لكه قريشو د مكې چي به كاوه او هنود الهند چي يې كوي، يا عبادت د اور لكه مجوسيان چي يې كوي، يا عبادت د ملكو لكه بعض اهل مكه چي به كاوه يا د لمر عبادت لكه بعض هنود الهند چي يې كوي الى غير ذالک. ددې څخه خو بحمدلله تول مسلمانان خداى ﷻ ساتلي دي او بل شرک خفي دى چي ريا او سمعه يې بولي په دې آفت تول مسلمانان د اوسني زماني اخته دي الا ماشذ وندر.

**پوه سه:** چي دا آيت مبارک جامع دى د خلاصه د علم او عمل وهما التوحيد والاخلاص في العمل. سعدي شيرازي رحمه الله وايي:

عبادت باخلاص نيت نكوست ..... وګرنه چه آيد زبى مغز پوست
چه زنار مغز درميانست چه دلق ..... كه درپوشى از بهر پندار خلق
بروى ريا خرقه سهلست دوخت ..... ګرش باخدا درتوانى فروخت

**درويش وايي:** چي په باب كي د ريا واورئ.

## باب الرياء والسمعة

په بحر العلوم کي وايي ان قلت ما معنى الرياء. قلت العمل لغير الله بدليل قوله عليه الصلوة والسلام ان اخوف ما اخاف على امتي الاشراک بالله (هغه ډېر چې زه ډېر ېرېږم پر امت خپل هغه شرک دی له خدايه سره) اما اني لا اقول يعبدون شمساً ولا قمراً ولا شجراً ولا وثناً لکن اعمالاً لغير الله (يعني د خير اعمال د غير لپاره)

**مسئله**: په فرضي اعمالو کي لکه لمونځ وغيره رياء نسته البته په هيئت کي يې رياء شته مثلاً يو سړی چي د خلګو په حضور کي لمونځ کوي په ښه تعديل الارکان سره يې کوي لپاره د رؤيت د خلګو که خلګ نه وي نو يې په ډېره چټکۍ سره بېله تعديل الارکان لمونځ کوي. نو هغه د لمانځه د فرض غاړي خو يې خلاصي سوې لکن د تعديل الارکان ثواب خدای ﷻ نه ورکوي لان ذالک لغير الله وهکذا الصوم المفروض والحج المفروض وغير ذالک. لکن په نفلي عباداتو کي د رياء لو يه دروازه خلاصه ده. مثلاً يو سړي د تهجد لمونځ په کور کي کاوه چي بېله خدايه بل هيڅ څوک په خبر نه وه. لکن د ورځي به يې ويل چي برايي مابښام چي مي د تهجد لمونځ کاوه فلانی سورت راڅخه هېر سو. فهذا رياء بالقول. نو په فتاوی اشباه والنظائر کي وايي چي لا رياء في صوم النفل انتهى. مراد يې دادی چي په قول سره تعرض و روژې ته ونه کړي مثلاً نن ډېر تږی يم يا نن ډېره ګرمي ده. يا په لسان حال سره چي ځان په قصده ډېر وږی کړي چي مخ يې ژړ سي او د روژې آثار يې په مخ کي معلوم سي وامثال ذالک. له عباده بن الصامت ﷺ څخه روايت دی "قال سمعت رسول الله ﷺ من صلا صلوةً يرائيبها الناس فقد اشرک ومن صام صوماً يرائيبه فقد اشرک.

**درويش وايي**: چي په فرضي لمانځه کي هم د بعضې خلګو رياء ځای لري، مثلاً يو سړی وي چي يو ځای مېلمه سي، نو د ماخستن لمونځ د خلګو په حضور کي په ښه تعديل الارکان او خشوع او خضوع کي وکړي او چي په کور کي وي د ماخستن لمونځ نه کوي يا يې بېله تعديل الارکان وغيره کوي. وفي الحديث الصحيح قال رسول الله ﷺ اتقوا الشرک الاصغر! قيل وما الشرک الاصغر قال

الريا، وفي الحديث الصحيح الذي رواه الترمذي عن ابي هريرة ﷺ قال قلت يا رسول الله ﷺ انا اصلي في بيتي في مصلای (یعني کور نفل کوم) اذ دخل علی الرجل فاعجبني الحال التي رأني عليها فقال رسول الله ﷺ رحمک الله اباهريرة لک اجران اجر السر واجر العلانية. وروی مسلم عن ابي هريرة ﷺ قال قيل لرسول الله ﷺ ارئيت (يعني اخبرني) الرجل يعمل العمل من الخير ويحمده الناس عليه (او خلگ دي صفت کوي. غرض يې دا وچي دا خو به ريا نه وي) قال ﷺ تلک عاجل بشری المؤمن (دا ددې دنیا زیری یعني د قبول د عمل الخیر دی یعني ریا نه ده) والحاصل یو سړی چي عمل د خیر کوي خالصاً لله تعالی او خلگ یې ویني نو دوی یې صفت کوي او دوی په خوشاله سي، او دده په عملو کي د عمل الخیر غرض حمد د خلگو نه وي او نه جزا له خلگو څخه غواړي ولا یزید في عمله لاجلهم، مثلاً ده څلور رکعته نفل کول چي خلگو ولیدی شپږ رکعته یې وکړه فذالک بشری العاجل وله اجر السر والعلانية والله اعلم.

او له ثمرة ابن جندب ﷺ څخه روایت دی "من سمع (که یې غرض په عمل الخیر کي اورېدل د خلگو وه) سمع الله به (خدای ﷻ به یې په خلگو واوري یعني ثواب د اخرت یې نسته ومن یرائي یرائي الله به (که د چا غرض په عمل الخیر کي د خلگو لیدل وه خدای ﷻ به یې په خلگو وویني یعني ثواب د اخرت نسته) بخاري و مسلم، دا مضمون د هغه صحیح مشهور حدیث "انما الاعمال بالنیات وانما لامرئ مانوی الی اخیر الحدیث بخاري مسلم وغیرهما، بهیقي رح په شعب الایمان کي داسي روایت راوړی دی چي ریا کارانو ته به خدای پاک په هغه ورځ چي ثواب و بندگانو ته ورکوي پر اعمال د خیر ولاړ سي و هغو کسانو ته چي تاسي ځانونه په دوی لیدل په دنیا کي فانظروا هل تجدون عندهم جزاءً او خیراً، روح المعاني وایي چي بزار او بیهقي رح له انس ﷺ څخه روایت کړی دی "قال رسول الله ﷺ تعرض اعمال بني آدم بين يدی الله ﷻ يوم القيامة في صحف مختومة (مهر کړل سوی) فيقول الله تعالی القوا هذا (دغه وغورځوئ) واقبلوا هذا فيقول الملائكة (ای الحفظة) يا رب والله ما رئينا منه الا خيراً (موږ نه دی

ليدلی د صاحب الصحيفة څخه مگر نه خير يعني په دغه ور كړو صحيفو مو ر دده د خير كارونه نوشته كړي دي) فيقول سبحانه وتعالى ان عمله كان لغير وجهي ولا اقبل اليوم من العمل الا ما اريد به وجهي (ای رضائي خاليًا من الريا) واخرج احمد ومسلم وغيرهما عن ابي هريرة رضي الله عنه عن النبي صلى الله عليه وسلم يرويه عن ربه تعالى انه قال انا خير الشركا فمن عمل عملاً اشرك فيه غيري فانا بريئ منه وهو للذي اشرك. وروى احمد والترمذي وابن ماجه وابن حبان عن ابي سعيد بن ابي فضالة رضي الله عنه عن النبي صلى الله عليه وسلم قال انه اذا اجمع الناس يوم القيامة ليوم لا ريب فيه نادى مناد من كان اشرك في عمل عمله لله احداً فليطلب ثوابه من عند غير الله (يعني الذي اشركه) قال الله تبارك وتعالى انا اغنى الشركا عن الشرك.

**درويش وايي**: چي د ريا په باره كي احاديث بېخي ډېر دي كه زه ټوله رانقل كوم ډېر به اطناب سي وفيما ذكرنا كفاية لمن له عقل سليم ومن لم يعمل بالقليل فلا يعمل بالكثير والله المستعان.

بشارة جليلة سهلة: روى مسلم عن ابي الدردا رضي الله عنه قال قال عليه الصلوة والسلام من حفظ عشر آيات من اول سورة الكهف (يعني قرائت يې هم كاوه له ياده څخه) عصم من الدجال. بعض علما وايي چي له دجال څخه دجال مشهور مراد دی. او ابن ملك وايي چي احتمال د جنس د دجال هم سته لان الدجال في اللغة من كثر كذبه والتلبيس على الناس كما جا في الحديث يكون في اخير الزمان دجالون بصيغة الجمع فاهل الهوا والبدع دجاللة زمانهم فيامن منهم ايضاً.

**پوښتنه**: ددې سر (راز) څه دی؟

**ځواب**: سر يې دادی چي اصحاب كهف له شر څخه د دقيانوس الكافر پناه وه كهف ته وروړه او خدای جل جلاله وساتل. نو له دې سببه چي څوك پناه و سورة كهف ته ورو ړي خدای جل جلاله به يې له دجال څخه خلاص كړي. روى الحاكم عن ابي سعيد الخدري رضي الله عنه قال قال عليه الصلوة والسلام من قرا سورة الكهف كما انزلت كانت له نوراً يوم القيامة من مقامه الى مكة. الحديث. وعن ابن عمر رضي الله عنهما قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من قرا سورة الكهف في يوم الجمعة سطع له نوره

من تحت قدمه الى عنان السماء یضئ له یوم القیامة وغفر له مابین الجمعتین روی مثله الدارمي رح، وفي حدیث رواه ابن مردویة و احمد في سنده عن النبي ﷺ من قرأ سورة الکهف عند مضجعه کان له نوراً من مضجعه یتلألأ الى مکة حشو ذالک النور ملائکة (یعني په منځ کې د هغه نور) یصلون علیه (یعني دعا و قاري ته کوي) حتى یستیقظ وان کان مضجعه بمکة یتلألأ النور من مضجعه الى البیت المعمور، حشو ذالک النور ملایکة یصلون علیه حتی یستیقظ" له برا بن عازب رضي الله عنه څخه روایت دی چې یو سړي سورة کهف وایه (یعني د تهجد په لمانځه کې) والی جانبه حصان مربوط بشطنین (وه یوه آرخ ته یې آس ولاړ ؤ چې تړلی یې ؤ په دوو مړاندو) فتغشته سحابة فجعلت تدور وتدنو (نو وریځ وګرځېدله کرار کرار آس ته رانژدې کېدله) وجعل فرسه یتنفر (آس توریدی) چې سهار سو هغه سړی و علیه الصلوة والسلام ته راغلی د شپې قصه یې ورته وکړه "فقال علیه الصلوة والسلام تلک السکینة تنزلت بالقرآن (ملکې وې د سکینې چې په قرآن راکښته سوې وې. بخاري ومسلم، وفي روایة چې هغه سړي دا هم وویل چې په وریځې کې لکه څراغان داسې شیان وه، وفي روایة هغه سړي وویل چې ما قرائت د سورت کهف بس کړی. ولې چې زما زوی آس ته نژدې بیده ؤ زه بیرېدم چې آس په دغه هلک کې ونه خېژي، وفي روایة چې علیه الصلوة والسلام هغه سړي ته وویل که تا قرائت نه وای متوقف کړی تر سهاره پوري به ګردو خلګو دا وریځ لیدلای.

**درویش وایي**: چې تفسیر د سورة الکهف پر یوولس (۱۱) بجې د ورځې د جمعې مبارکې د صفر الخیر سنه (۱۴۳۰) هجري پای ته ورسېدی ولله الحمد والمنة والصلوة والسلام علی خیر البریة وعلی آله وصحبه الکملة.

تفسیر ایوبي حنفي د نصیراحمد احمدي لخوا
سکین او pdf سو. د دعا محتاج احمدي!
واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

سُوۡرَةُ مَرۡيَمَ مَكِّيَّةٌ وَهِيَ ثَمَانٌ وَتِسۡعُونَ اٰيَةً وَسِتُّ رُكُوعَاتٍ بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

يارب يسر تفسير هذه السورة المكرمة على عبدك الضعيف وتممه بالخير والعافية والصحة والسلامة برحمتك يا ارحم الراحمين.

كٓهٰيٰعٓصٓ ﴿١﴾ ذِكۡرُ رَحۡمَتِ رَبِّكَ عَبۡدَهٗ زَكَرِيَّا ﴿٢﴾

**درويش وايي**: چي دا كلمه له مقطعات قرآنيه څخه ده التي اختلف العلماً فيها قديمًا وحديثًا والارجح تفويض علمها الى الله ﷻ. او زموږ برخه په دې حروف متشابهه وو كي داده چي موږ به ايمان لرو بما اراد الله بها ونقول آمنا بما اراد الله منها. وانها اسرار بين الله ﷻ ورسوله ﷺ او په تفسير كي د سورة البقرة بعض تحقيق ددې مقطعات قرآنيه فقير كړى دى، په شرح كي د منار الاصول وايي چي حق داده چي دا اختلاف په تفسير ددې مقطعاتو قرآنيه وو چي بعض علماً يې له تأويل څخه دده كوي او بعض علماً يې په تأويل سره خوله پورې كوي لفظي اختلاف دى، يعني هغه علماً چي تأويل روا بولي مراد يې تأويل ظني دى، والدليل عليه چي دغه علماً هر ځاى په دې مقطعاتو كي جلا جلا تأويلونه كوي بحسب ظنهم د يوه "الٓمٓ" څلور پينځه تأويله ددوى څخه منقول دي وهكذا في سائر المقطعات يعني پر يوه تأويل نه دي متفق، او هغه علماً چي تأويل روا نه بولي، او تفويض د علم يې و خداى ﷻ ته كوي د هغو مراد تأويل قطعي دى. له هم دې كبله دوى وقف لازم كوي پر الا الله باندي في هذه الاٰيت وما يعلم تأويله الا الله. يعني تأويله اليقيني المقطوع به. او "والراسخون في العلم" مبتدأ بولي او يقولون كل من عند الله يې خبر بولي چي معنى يې توقف في التأويل ده، والعلم عند الله.

**يوه سه**: چي "ذكر رحمة ربك" خبر د مبتدأ محذوفي دى اى هذا المتلو ذكر د رحمت د رب ستا دى يا محمد (ﷺ).

**فائده**: "ذكر" مضاف دى و "رحمت" ته او رحمت و رب ته او رب مضاف دى و ضمير ته د مخاطب، يعني درې اضافته يو ځاى سره راغلي پر له پسې، نو

هغه بعض علماً د علم البلاغة چې وايي چې درې اضافته متواصله مخل بالبلاغة دي هغه په دې آيت سره محکوم دي والتفصيل في المطول "عبده" دا مفعول د رحمت دی "زکریا" دا بدل یا عطف بیان دی د "عبد".

**پوه سه:** چې قاریان لفظ د زکریا په قصر سره وايي او بعض يې په مد سره او دواړه له قرائت متواتره څخه دي.

## إِذْ نَادَىٰ رَبَّهُۥ نِدَآءً خَفِيًّا ۝

کلمه د "اذ" ظرف ده متعلق په رحمت يا په ذکر پورې ده او مراد له نادی څخه دعاً ده "ربه" و خپل خدای ته. هغه وخت چې دی په محراب کې د عبادت لپاره د شپې ناست و "نداً خفياً" دعاً په پټه سره یعني في جوف الليل ولې چې دعاً السر اقرب ده و اجابت ته او د ډېر اخلاص اظهار پکښې سته والاخفاً سنت الدعاً اذا لم يكن بالاجتماع كما في الاستسقاً وغيرها.

## قَالَ رَبِّ إِنِّى وَهَنَ ٱلْعَظْمُ مِنِّى

وه يې ويل ای رب زما "دا تفسير دی د نداً" په تحقيق زما هډونه ضعيف سوه او رقيق سوه يعني كما هو الحال في سن الشيخوخة.

**پوه سه:** چې حرف نداً. مضاف او مضاف اليه د "رب" حذف سوه اختصاراً و مبادرةً الى بيان المقصود.

**فائده:** اسناد د "هن" يې و هډوکو ته وکړی ولې چې هډوکي تمبې او ستنې د بدن دي او د بدن کلک اعضاً دي، نو چې دا هډوکي ضعيف سي نور اعضاً خو په طريق اولی ضعيف ګرځي.

**فائده:** عظم يې مفرد راوړی مراد يې جنس دی، امام همام رازي رح په تفسير کبير کې وايي چې زکريا عليه السلام له اولاد څخه د هارون اخي موسی عليهما السلام و وهما من ولد لاوی بن يعقوب بن اسحق عليه السلام، او حسين کاشفي په خپل تفسير کې وايي چې و او از اولاد رجعيم بن سليمان بن داود عليهما السلام بوده پيغمبر عليشان ومهتر احبار بيت المقدس وصاحب قربان بود آه، تاريخ پوهان وايي چې د زکريا عليه السلام عمر د دعا په وخت کې نهه نيوي (٩٩) کاله و، او جلال الدين المحلي رح وايي چې عمر



Scanned by CamScanner

يې (۱۲۰) کاله وُ او د ماينې عمر يې اته نيوي کاله وُ والله اعلم.

## وَاشْتَعَلَ الرَّأْسُ شَيْبًا

**درویش وايي:** چې تول مفسرین وايي چې زکریا مشابه کړه سپین وېښتان د خپل د اور سره بعلاقة البياض في كل منهما او انتشار د سپينو وېښتانو په سر کې دده يې مشابه کړې د لمبو سره د اور او اشتعال يې و سر ته مسند کړی او شیبا يې تميز وګرځاوه مبالغةً او اشاره ودې ته ده چې سپينو وېښتانو تول سر نیولی دی داسې نه ده چې يوازې مې تېکونه سپین دي.

**پوه سه:** چې "الراس مني" يې نه ووايه اکتفاً بما سبق في العظم او قرينه عقلي هم سته چې دی خو حکایت د خپل سر کوي د بل چا د سر حکایت خو نه کوي، نو حاصل د معنی دادی یارب شبت زه سپین ږیری سوم.

**سوال:** چې شيب يې ویلی وای اخصر به نه وای او اقرب و فهم ته؟

**ځواب:** هو اخصر خو به وای لکن هغه بلاغت د قرآن عزيز چې كفار يې د مثل له اتيان څخه عاجزه وګرځول د لاسه وتی كما لا يخفى فافهم.

**درویش وايي:** چې قرآن کریم خو بالاتفاق معجز دی لکن په وجه کې د اعجاز يې اختلاف دی. بعض وايي چې سبب يې اخبار بالغيب دی چې په قرآن مبارک کې موجود دی لکن مختار د محققينو دا وه چې سبب د اعجاز يې فصاحت فائقه او بلاغت بلا نهايت چې په قرآن کې سته دی واختاره علماً المعاني والبيان واشار اليه البيضاوي رح في خطبة كتابه.

## وَلَمْ أَكُن بِدُعَائِكَ رَبِّ شَقِيًّا ﴿٤﴾

او زه نه یم سوی په ماضي زمانه کې چې ما تا ته خواست کړی دی اې رب زما نا امید.

**پوه سه:** چې اضافت د دعاً و ضمير ته مخاطب چې خدای ﷻ اضافت د مصدر دی و مفعول ته ای بدعائي اياک. او د رب سره يا د نداً محذوفه ده يعني يا رب. حاصل د کلام دادی چې هر وخت چې ما تا ته خواست کړی دی تا

قبول کړې دی (يعني که زما د څوانۍ په حال کي ۋ) نو خواست قبلول زما تاتـه عادت او سنت ګرځېدلی دی، اوس هم اميد د اجابت درتـه لرم، ولي چي کريم چي څوک په طمع کړي وي همېشه، نو بيا يې نا اميده نه پرېږدي خصوصًا په حال کي د عجز او سپين سر توب کمامر ولي دا حالت د اضطرار دی. روايت سوی دی چي يو محتاج سړی يو غني سړي ته ورغلی او ورته وه يې ويل چي زه هغه سړی يم چي تا په فلاني وخت کي زما سره احسان کړی ۋ، هغه غني سړي ورته وويل "مرحبًا بمن توسل بنا الينا فقضى حاجته... بيت:

ای کريمی که از خزانه غيب ..... گبر تر ستا وظيفه خور داری

دوستان را کجا کنی محروم ...... تو که بادشمنان نظر داری

**درويش وايي**: چي په دې آيت کي بل سبب د اجابت د خواست د زکريا عليه السلام بيان دی.

وَإِنِّي خِفْتُ الْمَوَالِيَ مِن وَرَآءِى وَكَانَتِ امْرَأَتِي عَاقِرًا

او زه ېرېږم د اکـا لـه زامنو څخـه وروسته زمـا تـر مـرګ (ولي چي هغـه د خلافت ور نه دي نبايد چي زما امت و ګمراهي ته ولاړ نسي، او دين سماوي بدل نه کړي) او ده زما ماينه وچه.

**يوه سه**: چي "عاقر" مشترک لفظ دی هغه نر او ښځي ته وايي چي عيال يې نه کېږي، په دې خبره کي چي ماينه مي وچه ده او په دمخه خبره کي "اني وهن العظم آه. مقصود د زکريا عليه السلام دا ۋ چي خدايه ته زما خواست خرق العادة قبول کړې ولي چي په عادت کي د (٩٩) يا د (١٢٠) کالو د زوج کمامر د داسي زوجي څخه چي د (٩٨) کالو وي عيال نه پيدا کېږي.

**درويش وايي**: چي همسره او کوروداته د زکريا عليه السلام بعض علما وايي چي نوم يې ايشاع بنت فاقوذ بن قيل وه چي د حنه بنت فاقوذ خور وه، او طبري وايي چي حنه د مريم مور وه، او قتيبي رح وايي چي زوجه د زکريا ايشاع بنت عمران وه، نو پر دې روايت يحيى عليه السلام د عيسى عليه السلام د خاله زوی دی حقيقةً لکه په حديث کي د معراج چي راغلي دي "فلقيت ابني الخالة يحى و عيسى

عليه السلام ، نو دا حديث مؤيد د قول د قتيبي دی، ولي پر اول روايت خو يحيى د عيسى د مور د خال زوی ؤ.

## فَهَبْ لِي مِن لَّدُنكَ وَلِيًّا ۝

نو ماته راوبخښه ستا له جانبه يعني په خپل قدرت سره.

**پوه سه:** چي زکريا عليه السلام لفظ د "هبة" ذکر کړی او "من لدنک" يې ووايه له دې سببه چي ولادت د دومره کلان سالي، دده او دده د مايني خو خلاف العادة کار ؤ نو گويا صرف "هبه" د خدای جل جلاله له خوا څخه او پر صرف قدرت کامله د خدای مبني دی.

**پوه سه:** چي ولي که څه هم لفظ عام دی هر قريب ته وايي لکن مراد د زکريا عليه السلام زوی دی يعني خدايه ماته زوی راکړې چي امر د نبوت زما کوي وروسته تر مرگ زما تا چي تولی زما د امر و فاسقانو فاجرانو د اکا د زامنو پاته نسي.

## يَرِثُنِي وَيَرِثُ مِنْ آلِ يَعْقُوبَ ۖ

چي هغه زوی زما ميراث خور سي او ميراث خور د اولاد د يعقوب عليه السلام سي.

**پوه سه:** چي مراد له ميراث څخه ميراث د علم او نبوت دی دون المال لان الانبيا لا يورثون المال، قال رسول الله صلى الله عليه وسلم العلماء ورثة الانبياء وان الانبياء لم يورثوا دينارا ولا درهما وانما ورثوا العلم فمن اخذه اخذ بحظ وافر. رواه احمد وابو داؤد و ابن ماجه والدارمي من حديث كثير بن قيس رضي الله عنه . او د همدې حديث له سببه ابوبکر رضي الله عنه چي خليفه سو منع يې کړی له فاطمې رضي الله عنها څخه ميراث د پلار عليه الصلوة والسلام چي دې طلب وکړی و عليه انعقد الاجماع، بخاري له عائشې رضي الله عنها څخه روايت کړی دی چي فاطمه او حضرت عباس رضي الله عنه ابوبکر صديق رضي الله عنه ته ورغله چي خليفة الاسلام تاکل سوی ؤ طلب د خپل ميراث (يعني المالي) يې کاوه من النبي صلى الله عليه وسلم چي فاطمه رضي الله عنها له ذوی الفروض څخه وه او عباس رضي الله عنه له عصباتو څخه ؤ ابوبکر رضي الله عنه ورته وويل سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم چي ده وويل "لا نورث ماتركناه صدقة يعني للمساكين وغيرهم" او

دانه رنګه بخاري روايت کړی دی چي ازواج مطهراتو وروسته تر وفات د عليه الصلوٰة والسلام اراده وکړه چي حضرت عثمان ﷺ و ابوبکر ﷺ ته ورواستوي چي زموږ ميراث دي راکړي، نو عائشي ﷺ ورته وويل "اليس قد قال رسول الله ﷺ لانورث ماترکناه صدقة" نو ازواج مطهراتو د عائشي ﷺ قول ومانه او حضرت عثمان ﷺ يې نه ورواستاوه.

## وَاجْعَلْهُ رَبِّ رَضِيًّا ۝

او وګرځوې دا زما زوی يا رب "رضياً" فعيل دی په معنی د مفعول دی ای مرضياً يعني ته ځندي راضي سې قولاً وعملاً. او يا فعيل په معنی د فاعل دی يعني راضياً عنک في السراً والضراً.

**فائده**: خدای ﷻ چي د بنده د حاجت روائي اراده ولري، نو توفيق د دعاً ورکړي، نو يا کلاً يا بعضاً يې دعاً قبوله کړي لکه زکريا عليه السلام ته چي يې دعاً په زړه کي ورواچول او قبوله يې کړه کلاً. په صحيح حديث کي راغلي دي "من فتح له باب الدعاً فتحت له ابواب الرحمة" يو محقق شاعر وايي:

تو دهی هم زاول ميل دعاً ....... تو دهی اخير دعاها را جزاً

## يٰزَكَرِيَّآ اِنَّا نُبَشِّرُكَ بِغُلٰمِ ۨاسْمُهٗ يَحْيٰى لَمْ نَجْعَلْ لَّهٗ مِنْ قَبْلُ سَمِيًّا ۝

"يازکريا" فيه اختصار يعني فاستجاب الله دعائه وقال يا زکريا موږ زيری کوو تاته په زوی چي د هغه نوم يحيی دی (يعني لکه تا چي غوښتی موافق ستا د دعاً سره، اما تر مخه د ولادت خدای ﷻ نوم پر کښېښو تشريفاً لذالک الولد" چي موږ نه دی ګرځولی ده لره يعني ستا زوی لره تر ده دمخه همنامی.

**پوه سه**: چي دا جمله حال يا صفت بعد الصفت دی د غلام. قتاده او کلبي رح وايي چي د زکريا عليه السلام تر زوی دمخه څوک د يحيی په نامه نه دي مسمی سوي.

**فائده**: تسميه په غريبه نومانو سره تعظيم د مسمی دی.

**درويش وايي**: چي نومان دري قسمه دي (١) اسم حسن لکه عبد الله. عبد الرحمن وغيرهما مما فيه اضافت العبد الی اسم من اسمائه تعالی. يا لکه

محمد، احمد، محمود وغیرها من اسماء النبي ﷺ او اسماء سائر الانبياء عليهم السلام لکه آدم، سليمان، شعيب، زکريا وغيرها عليهم السلام (۲) دويم اسماء مكروهه دي مثل عبدالرسول وعبدالنبي وعبد المحمد وعبد المناف وغيرها مما فيه اضافت العبد الى غير اسماء الله تعالى (۳) دريم نه حسن لري او نه قبح لکه خر غازي، مست، ختک، جلندر، غمی، بريالی وغيرها، بعض مفسرين وايي چې يحيى اسم عجمي دی او که عربي وي نو منقول له فعل څخه دی لکه يعمر، يعيش، يزيد وغيرها.

**مسئله**: د چا نوم نيمى کول مکروه دی، مثلاً د يو سړي نوم عبد الغفار وي پښتانه يې غفار بولي، يا يې نوم عبدالمالک وي پښتانه يې مالک بولي الى غير ذالک، بغوي او معمر رحمه الله وايي چې يحيى مثل نه درلودی لانه لم يعص الله ولم يهم بمعصيته تعالى آه. لکن له دې څخه مراد مبالغه ده په فضائلو کې د يحيى يعني د هر فضائل پکښې موجود وه، دا معنى نه ده چې ده پر انبياؤ چې تر ده دمخه وه فضل کلي درلودی، لان خليل الله ابراهيم عليه السلام او کليم الله موسى عليه السلام تر ده دمخه وه او تر ده افضل وه، او حضرت علي بن ابي طلحة له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت کړی دی چې وچو ښځو که په دوا وغيره زوی زيږولی وي مثل د يحيى يې نه دی زيږولی وعلى يصح الفضل الکلي لعبده يحيى على غيره فافهم.

قَالَ رَبِّ أَنَّىٰ يَكُونُ لِي غُلَامٌ وَكَانَتِ امْرَأَتِي عَاقِرًا وَقَدْ بَلَغْتُ مِنَ الْكِبَرِ عِتِيًّا ﴿٨﴾

زکريا (عليه السلام) ووېل رب يعني يا رب څرنګه به ماله زوی پيدا کيږي او حال دا دی چې زما ښځه وچه ده او زه رسېدلی يم د کبر سن په سبب زړتيا ته چې په عربي يې "هرم" بولي.

**پوښتنه**: خدای جل جلاله خو د زکريا عليه السلام خواست قبول کړی حتى چې د زوی نوم يې هم ورته بيان کړی، نو د زکريا عليه السلام ددې قول څه ضرورت ؤ؟

**ځواب**: په دې کې د زکريا عليه السلام غرض دا ؤ چې دا زوی چې ماته خدای راکوي نو زه او زما ماينه به ځوانان وګرځوو زوی به خدای پاک راکړي او که د زړوالي سره به خدای پاک زوی راکړي، نو دا سوال نظر و اسبابا عاديه وو ته دی نه نظر و کمال قدرت ته د خدای پاک.

**یوه سه:** چې اصل د "عتیًا" عتوورٌ، لکه قعود، نو اجتماع د دوو ضمو او د دوو واوو ثقیل وه، نو تا ته یې کسره ورکړه، نو اول واو په یا بدل سو، بیا یې دویم واو هم په یا بدل کړی لمزید التخفیف یا یې په یا کي مدغمه کړه اوس یې بعض قرا په پېښ د عین وایي او کسائي، حفص او حمزه رح یې په کسره د عین وایي اتباعًا لمابعده، په مصاحف مروجه وو کي د کسرو قرائت مروج دی. روح البیان وایي چې "عتي" وچ والي ته وایي کالعود الیابس، او مظهري وایي چې کمال ضعف ته وایي.

**درویش وایي:** چې ومآلهما واحد کما لایخفٰی.

قَالَ كَذٰلِكَ

"قال" ای الله تعالی یا هغې ملکې چې ده ته یې زېری راوړی ؤ "کذالک" یعني خبره خو داغه ده لکه تا چې وویل چې عالم اسباب ته نظر دا زېږېدلد زوی د دوو زړو نر او ښځي عجب دی.

قَالَ رَبُّكَ هُوَ عَلَيَّ هَيِّنٌ وَّقَدْ خَلَقْتُكَ مِنْ قَبْلُ وَلَمْ تَكُ شَيْـًٔا ۝

لکن ستا خدای وایي چې ماته دا زېږېده اسانه کار دی، او په تحقیق ماته پیدا کړې د مخه تر دې او حال دا ؤ چې ته شی نه وې یعني معدوم وې.

**فائده:** له دې څخه دا معلومه سوه چې معدوم ته شی نه وایي کما قال بعض المناطقة والتحقیق في کتاب مسمی حمد الله علی تصدیقات سلم العلوم.

قَالَ رَبِّ اجْعَلْ لِّيْٓ اٰيَةً

زکریا (علیه السلام) وویل چې خدایه ماته راکړه یوه علامه یعني پر دې چې زه پوه سم چې زما ښځي حمل واخستی.

قَالَ اٰيَتُكَ اَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ ثَلٰثَ لَيَالٍ سَوِيًّا ۝

خدای پاک ورته وویل علامه ستا یعني پر حمل داده چې ته به نسي کولای خبري د خلگو سره درې شپې یعني سره د ورځو کما یدل علیه قصة سورة آل عمران.

**پوه سه**: چي قيد د "ناس" يې وو وايه له دې سببه چي ذکر او تسبيح وغيره به کولای سي "سويًا" حال دی له فاعل څخه د "لاتکلم" يعني جوړ سالم به يې نه به ګونګی يې او نه به په غوږو کوڼ يې يعني هيڅ مرض به نه لرې، راويان وايي چي په داغه شپه زکريا عليه السلام د خپلي کور والا سره نزديکت وکړی او ولد يې په رحم کي پيدا سو چي سهار سو د خلګو سره يې خبري نسوې کولای.

# فَخَرَجَ عَلٰى قَوْمِهٖ مِنَ الْمِحْرَابِ

نو راووتی زکريا عليه السلام پر خپل قوم له محرابه څخه يعني د سهار په لمانځه کي، بعض مفسرين وايي ای من المسجد آه، مراد له مسجد څخه هغه موضع خاص دده ؤ لکه يو خلوت دا چي محراب بولي له دې سببه چي دا ځای د حرب دی د شيطان سره، په قاموس کي وايي چي محراب غرفې ته وايي، وصدر البيت واکرم مواضعه ومقام الامام من المسجد کما هو المعنى اليوم في العرف، والموضع الذی ينفرد فيه الملک فيتباعد عن الناس، بغوي رح وايي چي خلګو انتظار ددې کاوه د سهار د لمانځه لپاره، زکريا عليه السلام چي راووتی رنګ يې متغير ؤ، نو خلګو پوښتنه ځندي وکړه مالک يا زکريا،

# فَاَوْحٰۤى اِلَيْهِمْ اَنْ سَبِّحُوْا بُكْرَةً وَّعَشِيًّا ﴿۱۱﴾

نو زکريا عليه السلام ودوی ته وويل يعني په اشاره، ولي په بل ځای کي ددې قصې راغلي دي چي ته به ددوی سره خبري نسې کولای الا رمزا "ن سبحوا" دا تفسير د وحي دی، تاسي تسبيح د خدای واياست يا لمونځونه کوئ "بکرة" په اول کي د ورځي "وعشيًا" وروسته تر زوال، او دا خبره يې هم په اشاره ورته وکړه.

# يٰيَحْيٰى خُذِ الْكِتٰبَ بِقُوَّةٍ ؕ وَاٰتَيْنٰهُ الْحُكْمَ صَبِيًّا ﴿۱۲﴾ لا

"يا يحيى" تقدير د کلام داسي دی حملت ام يحيى ثم ولدته ثم قلنا حين صار اهلاً للخطاب، جلال الدين المحلي رح وايي وروسته تر دوه کاله وهذا بعيد عند الفعل الا ان يکون معجزة له "خذ الکتاب" ای التوراة "بقوة" په کوشش سره بتوفيق الله "وآتيناه الحکم" ای العلم وفهم التورات عطف دی على قلنا

"صبيا" په حال کې د کوچنيوالي، چې سن يې درې کاله ته ورسېدی فقرأ التورات مع کونه کتابًا عظيمًا وهو صغير. علماء وايي من قرأ القرآن قبل البلوغ فقد اوتي الحكم صبيًا. راوي وايي چې يو کوچني ده ته وويل چې راسه ساتېر کړو، يحيى علیه السلام ورته وويل چې ساتېر ېدلو ته خدای پاک موږ نه يو پيدا کړي. بعض مفسرين وايي چې له حکم څخه نبوت مراد دی. نو دی په کوچنيوالی خدای پاک نبي کړی ؤ نسب هذا الى ابن عباس رضی الله عنهما.

وَّحَنَانًا مِّنْ لَّدُنَّا وَزَكٰوةً ۭ وَكَانَ تَقِيًّا ۙ﴿۱۳﴾

عطف دی پر "حکم" باندې يعني اعطيناه رحمةً من عندنا. او يا مراد دادی چې موږ ده ته ورکړی تعطف او مهرباني پر مور او پلار وغيرهما "وزكوة" عطف دی پر "حکم" باندې. مراد له زکوة څخه طهارت دی عن الذنوب او طاعت يا اخلاص. او کلبي رحمه الله وايي چې مراد له زکوة څخه صدقه ده تصدق الله به على والديه "وكان تقيا" مسلمًا مخلصًا مطيعًا لله يعمل معصية ولم يهم بها.

وَّبَرًّا بِوَالِدَيْهِ وَلَمْ يَكُنْ جَبَّارًا عَصِيًّا ﴿۱۴﴾

احسان او لطف کونکی ؤ د پلار او مور سره، او نه ؤ متکبر ظالم يقتل ويضرب الناس عند الغضب "عصيا" نافرمان د خدای جل جلاله.

وَسَلٰمٌ عَلَيْهِ يَوْمَ وُلِدَ وَيَوْمَ يَمُوْتُ وَيَوْمَ يُبْعَثُ حَيًّا ﴿۱۵﴾

"وسلام عليه" جمله معترضه دعائيه ده يعني سلام دی من الله عليه مما يؤذيه "يوم ولد" يعني له مس څخه د شيطان لکه چې دی نور اولاد د نبي مسه کوي په وخت کې د ولادت كما جاء في الحديث الصحيح "ويوم يموت" يعني من عذاب القبر، او هغه ورځ چې دی پاځي له قبر څخه ژوندی، سالم دوی له عذاب النار او له هول څخه د قيامت چې په هغه ورځ ټوله اولياء او صلحاء بلکې انبياء تر لوی سهم لاندې وي. والى هذا اشار العارف الشيرازي رحمه الله.

بجايي که دهشت خورد انبياء ........ تو عذر گناه راچه داری بيا

سفيان بن عيينة رحمه الله وايي چې دهشت ناکه احوال د انسان دادی (۱) يوم

يولد او چې له رحم څخه د مور راووځي چې هوري نه د خوراک غم ورسره وي نه د څيښاک او نه درد وي او نه مرض، چې له موره وزيږي د ټولو مذکوره شيانو سره مخامخ سي كمايدل عليهم التجربة (۲) هغه ورځ چې سړی مري داسې مخلوق به ويني چې ده په طول الحيوة کې نه وي ليدلي يعني ملک الموت او ملائکه د بشارت يادېږي (۳) يوم يبعث حيا او ځان په محشر گاه کې ويني او اولين او آخرين سره غونډ وي او دوزخ ويني او ميزان قائم سي سوال او ځواب شروع سي، شيرازي قدس سره وايي:

دران روز كه از فعل پرسند وقول ...... اولو العزم راتن بلرزد زهول

فحفظ الله يحيى في تلك المواطن بالسلامة.

**حکايت**: بعض اوليا وايي چې زه په تيه کې د بني اسرائيلو روان وم، يو ډېر ښائسته سهمگين سړی راسره ملگری سو زما په زړه کې الهاما دا راوگرځېدله چې دا به خضر عليه السلام وي، نو مې ورته وويل "بحق الحق" چې ته څوک يې ده راته وويل چې اخوک الخضر ما ورته وويل چې ستا ملاقات خو نادر څوک کوي، زما په څه سبب ستا سره ملاقات نصيب سو؟ ده راته وويل ببرک لامک كذا في المقاصد الحسنة للامام السخاوي رحمه الله.

وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ مَرْيَمَ ۘ اِذِ انْتَبَذَتْ مِنْ اَهْلِهَا مَكَانًا شَرْقِيًّا ﴿۱۶﴾

او ته بيان کړه يا محمد (صلى الله عليه وسلم) "في الكتاب" اى القرآن الكريم او هذه السورة فان لفظ الكتاب يطلق على الكل والبعض "مريم" اى قصة مريم بحذف المضاف.

**فائده**: واذكر الى آخير القصة عطف لقصة على القصة بتقدير اعلم في قصة زكريا يعني اعلم ذكر رحمة ربك زكريا آه واذكر.

**پوه سه**: چې "اذ" ههنا ظرف دی د هغه مضاف مقدر يعني لفظ القصة كمامر عنقريب.

**پوه سه**: چې اعتزال گوښه والي، لېري والي او يوازي والي ته وايي له خپل قوم څخه. ولې د مريمې ځای خو مسجد و چې حيض به ورغلی. نو دا به ولاړه د خاله کره چې ايشاع يې نوم و فاذا اغتسلت عادت الى المسجد، نو يوه ورځ

چي یخ وو دا غسل ته اړه سوه، نو دا ګوښه سوه د کور له انسانانو څخه یوې ناحیې شرقي ته د سرای چي لمر ته مخامخ ؤ د غسل لپاره.

**فائده:** نصاری هر ځای چي وي مشرق ته لمونځونه کوي، ولي چي مریمي په مکان شرقي کي غسل کاوه لکه یهودانو چي جانب غرب قبله ګرځولې ده کما قال الله تعالی وما کنت بجانب الغربي اذ قضینا الی موسی الامر کذا قال الحسن.

**پوښتنه:** په قرآن مبارک کي د هیڅ ښځي نوم نه دی ذکر سوی بېله مریمي حکمت یې څه دی؟

**ځواب:** په اسئلة الحکم کي وایي چي مریمه لکه رجل کامل ځان یې و طاعت ته د خدای ﷻ چمتو کړی ؤ. نو لکه د موسی و عیسی وغیرهما علیهما السلام نوم چي په قرآن کي ذکر سوی دی او خطاب ورته سوی دی ددې نوم هم ذکر سوی او خطاب هم ورته وسو "یامریم اقنتي لربک واسجدي وارکعي مع الراکعین" ددې خطاب له سببه بعض کسان وایي چي مریم نبي وه که څه هم دا غلطه ده لان النبوة مختص بالرجال. او علماً وجه د نوم اخستلو د مریمي په مجلس عام کي د قرآن دادی چي بعض نصاری عیسی ابن الله بولي او مریمه نعوذ بالله د خدای ماینه بولي، نو خدای ﷻ پر دوی رد وکړی چي د اشرافو خلګو او د بادشاهانو دا عادت دی چي د ماینې نوم صراحةً نه ذکر کوي بلکې په کنیت ګاهي ذکر کړي بلکې ووایي د فلاني یعني دده زوی مور داسي ویله مثلاً او یا په کنایه ذکر کوي لکه ووایي کور وداني داسي ویل یا د هلکانو مور داسي ویل ونحو ذالک، نو خدای ﷻ به څرنګه بالفرض المحال که مریم داغسي لکه نصاری چي وایي ددې نوم په داسي محفل عام کي د قرآن چي کر الازمان او مر الدهور باقي دی ذکر کولای تنبیهاً علی ان مریم امة الله وعابدة الله ده کذا في التعریف والاعلام للامام السهیلي رح.

**فَاتَّخَذَتْ مِنْ دُوْنِهِمْ حِجَابًا**

نو دي ځان ته جوړه کړې وه د غسل په وخت کي په مخ کي د اهل بیت یوه پرده حبر العرب ابن عباس رضي الله عنهما وایي ستراً، بعض وایي چي د دېوال هغه بلې

خوا ته ورغله ذېوال يې پرده او ستره د ځان ورګرځول. او مقاتل رح يوه نادره د ده منلو خبره کړې ده دی وايي ورا جبل په هر صورت دې کالي وکښل په غسل د حيض يې شروع وکړه جبرئيل په رنګ د يو ځوان بې ږيري ښائسته مخ پېچلې وښښتان ورغلی کما قال الله تعالی.

فَأَرْسَلْنَا إِلَيْهَا رُوحَنَا فَتَمَثَّلَ لَهَا بَشَرًا سَوِيًّا ﴿١٧﴾

ورواستاوه موږ مريمي ته روح زموږ يعني جبرئيل علیه السلام.

**پوه سه:** چي اضافت د جبرئيل خدای جل جلاله ځان ته وکړی، تشريف المضاف او جبرئيل ته چي روح وايي له دې کبله چي دی حامل الوحي دی وانبيا علیهم السلام چي روح د قلوب دي، نو جبرئيل خپل ځان په شکل د يو انسان يعني نر وګرځاوه تام الاعضا، نو مريمي چي ددې و خواته ور روان وو.

قَالَتْ إِنِّي أَعُوذُ بِالرَّحْمَٰنِ مِنْكَ إِنْ كُنْتَ تَقِيًّا ﴿١٨﴾

مريمي ورته وويل چي زه پناه غواړم له تا څخه په رحمن خدای سره که ته له خدايه بېرېږې.

**پوه سه:** چي جواب د شرط محذوف دی يعني لا تتعرضني او فتنح عني تبعوذي.

**پوه سه:** مريمي ولي قيد د تقي ووايه؟ ځواب دادی چي تقي سړی د خدای په روی يعني استعاذه بالله بېرېږي او د هغه کار څخه چي دده اراده ورته کړې وي دست بردار کېږي بخلاف الفاسق هغه د خدای په روی سړی نه پرېږدي بلکې فاسق ته به وايي چي حکومت ته راپور تېروم، او منافق به په مسلمانانو بېروي يعني چي مسلمانان به درخبر کړم.

**پوښتنه:** مريمي کالي اغوستي وه چي جبرئيل ځان ورښکاره کړی او که نه؟

**ځواب:** دې خو کالي اغوستي وه لکن د غسل له ځايه څخه نه وه راوتلې، لما ورد ان جبرئيل نفخ في جيب درعها يعني په ګرېوان کي د قميصه ددې، نو ددې اول خيال دا سو چي دا سړی لکه چي په بد نيت راغلی دی يعني په نيت د زنی وهذا کمال نزاهة مريم حتی چي استعاذه بالله يې وکړه.

قَالَ إِنَّمَا أَنَا رَسُولُ رَبِّكِ لِأَهَبَ لَكِ غُلَامًا زَكِيًّا ﴿١٩﴾

يعني زه بشر نه يم چي ته زما څخه ويره وېږې د سوء فعل له ارادې څخه او تعوذ دې په خداى وغوښتى بلكې زه رسول د خداى د ملكو له جنس څخه تاته يې را استولى يم "لاهب لک" چې زه هبه كړم تاته "غلاماً زكياً" يعني هلک د ګناه پاک يعني معصوماً، او صوفيه كرام وايي چې زكياً هغه چا ته وايي چې همېشه مخ پر ترقى روان وي ولهذا قالوا من استوى يوماه فهو مغبون.

**سوال:** جبرئيل څرنګه اسناد د غلام د هبه و ځان ته وكړى وهو في الواقع خلق الله عزوجل؟

**ځواب:** دا اسناد مجازي دى چې جبرئيل سبب ظاهري ؤ بالنفخ في جيب قميص مريم.

**درويش وايي:** چي مظهري رح بل ځواب هم راوړى دى چې ؤ پر حذف ته ضرورت لري ويجب ان يحفظ ساحة القرآن العزيز عن امثال هذه المحذوفات الا عند الضرورة ولاضرورة ههنا لان للمجاز طريق واسع في القرآن الكريم كما لايخفى على المتفحص فافهم.

قَالَتْ أَنَّىٰ يَكُونُ لِي غُلَامٌ وَلَمْ يَمْسَسْنِي بَشَرٌ وَلَمْ أَكُ بَغِيًّا ﴿٢٠﴾

مريمي وويل چي د تعجب په درياب كي واقعه وه ولي دا كار خلاف العادة دى، څرنګه به ما لره زوى وي، او حال دادى چي زه نه يم مسه كړې كناية عن الجماع، والمراد المس بالنكاح لان هذه الكنايات تستعمل في النكاح او په زنا كي فجر يا فسق استعمالېږي، او زه نه يم فاجره زانيه چي بل سبب دى د ولادت.

**فائده:** مبرد وايي چي اصل د "بَغِيٌّ" بَغُوِيٌ على وزن فعول، ولهذا لم يلحق به تاء التانيث لان فعولاً يستوي فيه المذكر والمونث واعلا له على ما في الزرادي، واو و ياء بهم آمدند نخستين ايشان ساكن بود واو را بيا بدل كرند وياء را دريا ادغام نمودند بغي شد، بعد تبديل ضمة الغين بالكسرة اتباعاً او نور صرفيان وايي چي وزن يې فعيل دى.

**سوال:** په فعيل کي خو مذكر او مؤنث برابر نه دي، نو تا د تانيث يې ولې نه راوړه؟

**ځواب:** بغي دلته د مبالغې لپاره دی، نو تا تانيث نه غواړي كما في كتب الصرف. حاصل د كلام د مريم دادی چي ولد يا له نكاح ځنځه يا له سفاح ځنځه پيدا كېږي ولم يتحقق في شئ منهما.

قَالَ كَذٰلِكِ ۚ قَالَ رَبُّكِ هُوَ عَلَيَّ هَيِّنٌ ۚ

جبرئيل وويل چي خبره خو داغه ده لكه تا چي وويل چي ولد يا نكاح غواړي يا سفاح، نو "كذالک" خبر د مبتدأ محذوفي دی ای الامر كذالک لكن وايي خدای ﷻ ستا چي خلق د غلام ببله پلاره يعني جماع النكاح وماته اسانه دی كه څه هم محال دی عادةً ولي خدای ﷻ و اسبابو ته ضرورت نه لري، خدای ببله پلار او مور ځنځه آدم عليه السلام له خاورو ځنځه پيدا كړی او حوا يې دده له پوښتی ځنځه پيدا كړه. نو آدم عليه السلام لكه مور د حوا پلار يې نه و او عيسی عليه السلام يې له موره پيدا كړی پلار يې نه و. وكذا قال الله تعالی "ان مثل عيسی عند الله كمثل آدم.

وَلِنَجْعَلَهُۥٓ ءَايَةً لِّلنَّاسِ وَرَحْمَةً مِّنَّا ۚ

چي و گرځوو موږ دا غلام بې پلاره دليل د كمال د قدرت زموږ پر دې تقدير كلمه د واو اعتراضيه دی يعني عاطفه نه دی. او يا جمله عطف ده پر هغه جمله "هو علي عين" ولې هغه معنی علت وه فالتقدير تفعل ذالک ای وهب الغلام بغير الاب لكونه هيناً علي ولنجعله آه "ورحمة" ای رحمةً عظيمةً "منا" ای من جانبنا علي الخلق لاجل انهم يهتدون بهدايته ويسترشدون بارشاده.

**پوه سه:** چي عيسی عليه السلام خدای ﷻ رحمت وباله دا مثل د هغه آيت دی په شان كي د نبينا ﷺ وما ارسلناک الا رحمةً للعالمين. لكن فرق بين هذه الآية في شان عيسی عليه السلام وبين ما قال الله في حق نبينا ﷺ بتقيده للعالمين فانه يدل علی ان دين نبينا ﷺ لا ينسخ في الدنيا فيكون هو ﷺ رحمة للعالمين في الدنيا واما في الآخرة فلكون العالمين محتاجون الی شفاعته كما ورد في الحديث ان لواً شفاعتي تحتها ابراهيم و جميع الانبياء عليهم السلام او كما قال عليه السلام.

## وَكَانَ أَمْرًا مَّقْضِيًّا

اى تعلق بخلق هذا الغلام من غير اب القضا الالهي في الازل او قضي به وسطر في اللوح المحفوظ يعني د دلائلو او د اعذار ضرورت نسته كما قالت مريم.

## فَحَمَلَتْهُ

**پوه سه:** چي جمله "فحملته" معطوف ده پر مقدر جمله باندي يعني فاطمانت مريم بقول الملك فنفخ جبرئيل في جيب درعها فحملت آه. جيب گريبان ته وايي او درع قميص ته وايي.

## فَانْتَبَذَتْ بِهِ مَكَانًا قَصِيًّا

يعني وروسته تر حمل مريمه گوښه سوه متلبس په حمل سره په يو ځاى كي له اهل څخه چي گوښه وُ، ابن عباس رضي الله عنهما وايي چي دا د بيت المقدس د شيلي پاى ته ولاړه فراراً من قومها تا چي څوک پېغور د حمل بلا زوج ورنه كړي. بغوي رح وايي چي په مده كي د حمل او په وخت كي د وضع الحمل يې اختلاف دى، ابن عباس رضي الله عنهما وايي كان الحمل والالولادة في ساعة واحدة، وقيل مدة حملها تسعة اشهر كحمل سائر النسا. وهذا هو الاظهر. ومال اليه صاحب روح البيان وقيل ثمانية اشهر. روح البيان وايي چي د اتو (٨) مياشتو كوچني له وخته څخه د آدم عليه السلام نه دى پايدلى بېله عيسى عليه السلام وهذا آية اخرى.

**درويش وايي:** چي وقد دلت عليه التجربة في مولود (٨) اشهر، وقيل لستة اشهر الذي هو اقل مدة وضع الحمل، وقيل غير ذالک.

تاريخ وايي چي په منځ كي د مولد د عيسى عليه السلام او د محمد مصطفى صلى الله عليه وسلم (٥٥٥) كاله فاصله وه، او عيسى عليه السلام ژوندى دى په اسمانو كي، او وروسته چي قريب وي د نفخ الصور ته راكښته به سي د خلگو ته به دعوت د عليه الصلوة والسلام د دين وركوي.

**درويش وايي:** چي روايت د ابن عباس رضي الله عنهما په مده كي د حمل چي يو ساعت وُ تاسي واورېدى، لكن روح المعاني له ابن عباس رضي الله عنهما څخه داسي

روایت هم رانقل کړی دی چي د حمل مده یې نهه میاشتي وه یعني لکه غالب عادت د ښځو چي دی، او امام باقر رضي الله عنه دغه روایت مختاره کړی دی. دلیل یې دا ویلی دی که مریمه په عادت کي له نورو ښځو څخه مخالفه وای لکه د ابن عباس رضي الله عنه په دغه روایت کي چي راغلله، نو مناسبه دا وه چي دا خبره په اثنا کي ددې غریبي قصې خدای جل جلاله ذکر کړې وای کما ذکر احوالها الغریبة الاخر.

**درویش وایي:** چي په عمر او سن کي ددې په وخت کي د حمل هم اختلاف دی فقیل (١٣) کاله وعن وهب و مجاهد رح (١٥) کاله، وقیل (١٤) کاله. وقیل (١٢) کاله. وقیل (١٠) کاله. او د مخه تر حمل دې ته دوه حیضه ورغلي وه، او کرامیه چي یوه ډله ده د اهل هوا چي ددوی رئیس محمد بن المهیصم دی وایي چي مریم د هر څو کالو چي وه له حیض پاکه وه، روح المعاني وایي چي مشهوره داده چي زمانه د حمل د عیسی علیه السلام اته میاشتي وې والله اعلم.

# فَأَجَآءَهَا ٱلۡمَخَاضُ إِلَىٰ جِذۡعِ ٱلنَّخۡلَةِ

**یوه سه:** چي "فاجائها" په اصل کي مشتق دی د "جا" چي لازمي دی، نو په همزه د افعال یې متعدي کړی لکن خص بالالجا في الاستعمال، والمعنی مجبوره کړه دا، علامه زمخشري په کشاف کي وایي ای الجائها یعني مجبوره یې کړه مریم وفي الصحاح اجائته الی کذا، بمعنی الجائته واضطرته "والمعنی ایضاً مجبور یې کړه" وقال ابو حیان جائبها آه "المخاض" ای وجع الولادة، یقال مخضت المرئة اذا تحرک الولد في بطنها للخروج.

**یوه سه:** چي اسناد د فعل یې و مخاض ته مجاز دی والمعنی جائت بسبب المخاض فهو اسناد الی السبب الداعي للمجیٔ "الی جذع النخلة" و یو لرګي ته د خورما یعني وچه درخته وه د خورما په صحرا کي، راوي وایي چي وخت د سخت ژمي هم ؤ. د مریمي غرض دا ؤ چي په دې درخته به ځان پټ کړي او لاس به پوري ټینګ کړي د وجع د ولادت، بیضاوي وایي چي د مریمي په زړه کي خدای پاک الهام ورواچاوه چي هوري به په دې معجزې یعني د قدرت علامات به وویني تاچي زړه یې مطمئن سي او د خلګو د ملامتیا بېره یې له زړه ووځي او

تازه خورما د وچي درختي وويني او وه يې خوري، چي د عربو په اصطلاح کي لنده خورما خورل تر لنګول د ښځو وروسته ډېره بهترينه دوا او خواره دي لکه په اصطلاح کي د پښتنو چي لنګې ښځې ته د ګوړې يا د بوري لېتې (۱) ورکوي.

# قَالَتْ يٰلَيْتَنِىْ مِتُّ قَبْلَ هٰذَا

وويل مريمي چي عيسى (عليه السلام) پيدا سو، کاشکي زه مړه واى دمخه تر دې يعني تر نن ورځي يا دمخه تر دې امر چي بې مېړه لنګه سوم كما في الجلالين.

**پوه سه:** چي دا كلمه "مِتُّ" كه په كسره د ميم وويل سي، نو له باب څخه د خفت يخاف ده، او كه په ضمه د ميم وويل سي، نو له باب څخه د مات يموت ده.

**سوال:** مريمي ولي دا خبره كول سره ددې چي جبرئيل و دې ته اطمنان ورکړی ؤ او دې ته يې ويلي وه چي دا حکم د خدای ﷻ دی چي ته به غلام زېږوې ېبله پلاره؟

**ځواب:** دا خبره د مريمي بناً پر عادت بشري دی چي خلګ به ملامتيا راباندي وايي وحذاراً من وقوع الناس في المعصية په سبب د اتهام ددې، په زنی لاکراهة لحکم الله تعالى، او دا خبره بناً پر عادت د صالحانو خلګو ده چي کراوپر دوی ډېر سي كما روی عن عمر ﷺ انه اخذ تبنة (يوه د پراړه خاشه يې واخستل) من الارض، وقال ياليتني هذه التبنة ولم اكن شيئاً" وروی عن بلال ﷺ ليت بلال لم تلده امه.

**سوال:** په صحيح مسلم کي راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام وويل "لاتمنين احدكم الموت لضر نزل، فان كان لابد متمنياً، فليقل اللهم احيني ماكانت الحيوة خيراً لي وتوفني اذا كانت الوفات خيراً لي؟

**ځواب:** حديث خو مقيد دی په ضرر دنياوي سره من قرض، وفاقة وعدو ونحو ذالک، د مريمي تمنی له موت څخه خو له دې سببه نه وه بل لمامر آنفاً.

په روح المعاني کي وايي چي څوک چي وايي چي تمنی د مريمي له شدت څخه د وجع د ولادت وه فقد اسأ الظن والعياذ بالله.

(۱) لېتې د لوی قندهار په سيمو کي د خپل خانګړو دارو څخه جوړېږي چي د (لېتې دارو) بې بولي.

**پوه سه**: چي یا د یالیتني منادی یې محذوفه ده. تقدیره یا ایها المخاطب لیتني والمخاطب ههنا نفسها. وما قال بعض المفسرین ان المخاطب هو جبرئیل علیه السلام فبعید جداً لان مریم لاتعلم ان جبرئیل ههنا موجود حتی تنادیه فافهم.

## وَكُنتُ نَسْيًا مَّنسِيًّا ﴿٢٣﴾

حسین کاشفي رحمه الله درتفسیر این آیت چنان آورده: یعني هیچ کس مرانداستی وزاین حساب نداشتی وحال انکه همه احبار بیت المقدس مرامی شناسد که دختر ایشانم، ودرکفالت زکریا علیه السلام بوده ام. وهنوز بکارت من زائد نشده وشوهری نه کرده ام واکنون فرزندی می زایم و ازخجالت آن حال نمی دانم که چه کنم. په عربي یې ترجمه داده ای شیئاً حقیراً شانه ان ینسي ولایعتد به اصلاً.

**پوه سه**: چي منسیاً نعت للمبالغة والمعنی لایخطر ببال احد روح البیان. وفي روح المعاني ای شیئاً تافهاً من شانه ان ینسی آه والمآل واحد.

**پوه سه**: چي بعض قرأ "منسیاً" په فتح د نون وایي او اکثره قرأ یې په کسره د نون وایي. قال الفرأ هما لغتان فیه کالوَتر والوِتر. والفتح احب الي انتهی. وقال الفارسي الکسر اعلی اللغتین.

## فَنَادَاهَا مِن تَحْتِهَا

**پوه سه**: چي بعض قرأ لفظ د من په کسره د میم وایي یعني حرف جر یې بولي. او لفظ د "تحتها" مجرور بولي. نو پر دې تقدیر فاعل د "نادی" جبرئیل دی والمعنی ناداها مناد وهو جبرئیل چي د مریم جزع یې واورېدله کذا ابن عباس رضي الله عنهما والسدي، وقتاده، والضحاک وجماعة رحمهم الله. دوی وایي چي مریم پر غونډۍ وه او جبرئیل د غونډۍ و بلې خوا ته و لاندې طرف ته. او مجاهد او حسن رحمه الله وایي المنادی هو عیسی علیه السلام لما خرج من بطن امه ناداها. ورده صاحب روح البیان بان عیسی علیه السلام لایتکلم حتی اتت به مریم الی قومها. او بعض قرأ من په زور د میم وایي او په فتح د تحتها د تا یې وایي. نو پر دې تقدیر کلمه د من موصوله ده او دا موصول سره د صله چي تحتها د فاعل ده نادی دی ای ناداها الذي تحتها في مکان اسفل منها وهو جبرئیل علیه السلام.

**پوښتنه:** چي مريم چونکه غمجنه سوه په ولادت د ابن بلا اب او په عين حال كي هم تږي سوه او هم وږي. نو دا خطاب ورته راغلي يعني د جبرئيل له خوا.

**أَلَّا تَحْزَنِي قَدْ جَعَلَ رَبُّكِ تَحْتَكِ سَرِيًّا** ﴿٢٤﴾

نه غم مه کوه په ولادت د عيسی عليه السلام او په دې ځاى چي وچ ځاى دى نه اوبه سته او نه د خورک شي سته، وتمناى مرگ مکن کمامر، گرڅولی ستا خداى لاندي تر تا اى في مكان اسفل منک يو نرى لښتى چي اوبه پکښي جاري وي فسر السري بذالک النبي ﷺ. وقال ابن عباس رضي الله عنهما چي جبرئيل په پښه مځکه ووهل نو د شيرينو اوبو چينه پيدا سوه او د لښتي پر شکل روانه سوه، او بعض مفسرين وايي چي له پخوا ځخه يو لښتى چي اوس اوبه نه وې پکښې، نو اوبه پکښې روانې سوې؛ په هر صورت دا اوبه له خارق العادة ځخه دي.

**وَهُزِّي إِلَيْكِ بِجِذْعِ النَّخْلَةِ تُسَاقِطْ عَلَيْكِ رُطَبًا جَنِيًّا** ﴿٢٥﴾

او ته وښوروه د ځان و خواته هغه وچ لرگی د خورما د درختي چي مريم په وخت كي د ولادت په هغه لرگي پوري لاسونه ټينگ كړي وه، راشوه کوي دغه وچه درخته خورما پر تا باندي اسقاطاً متواتراً حسب تواتر الهز "رطبًا" تازه خورما "جنيًا" فعيل دى په معنى د مفعول اى رطبًا مجنيًا يعني صالح د اجتنا دى قد بلغ الغاية. وهذا ايضًا من الخوارق.

**پوښتنه:** مريم چي كوچنى وه او په تربيه كي د زكريا عليه السلام وه رزق به په محراب كي ورته راتلى بيله تكليفه او دلته خداى ﷻ دا امر كړه په هزي اليک؟

**ځواب:** هغه وخت حال د كوچنيوالي و، اوس خو دا الويه ښځه وه، په اسئلة الحكم كي وايي چي چونكه مريم په تعجب كي ډوبه سوه چي زوى مي بلا اب پيدا سو، نو خداى ﷻ له وچ لرگي ځخه د خورما لنده تازه خورما ورته توى كړه لدفع تعجبها.

**فائده:** تساقط باب د مفاعلة دى په معنى د تسقط يعني مجرد دى، او باب د مفاعلة لپاره د مبالغي دى، او مونث ضمير راجع و نخلة ته دى لا الى الجزع لانه مذكر، ربيع بن الهشيم وايي چي زما په عقيده نفسا ښځي لره تر رطب ښه شى او

داغه رنګه مریض لره تر عسلو ښه شی نشته، یعني مفرداً و مرکباً مع غیره لانه لایخلو معجون من معاجین الاطبا من العسل فلا یرد ما یتوهم الجهلة فافهم.

## فَكُلِي وَاشْرَبِي وَقَرِّي عَيْنًا

خورک کوه یا مریم من الرطب الجنی او اوبه څښه د سری له لښتي څخه.

**پوه سه:** چي قانون دادی چي سترګي چي یو شی ووینی نفس په خوشاله کېږي، نو سترګي پر هغه شي قرار نسي بلې خوا ته نه ګوري چنانچه عرب په دعا کي یو چا ته وايي قر الله عینک یعني ستا په زړه کي دي په یو شي خوشالي پیدا کړي چي ستا سترګي پر هغه قرار ونسي بل شي ته نه ګوري، نو په آیت کي معنا داده چي ته یا مریم زړه خوشاله لره په ولد سره او سترګي برقرار لره وده ته. څکه په عربي مفسرین داسي ترجمه کوي ای طیبي نفساً وادفع عنک ما احزنک.

**فائده:** "عیناً" تمییز دی له نسب څخه د "قري" ومریم ته.

**درویش وايي:** چي مشهوره داده چي مراد له قر څخه ضد الحر دی یعني خنکي ساته سترګي څکه و محبوب ته قرة العین وايي. او مبغوض ته سخنة العین وايي یعني د سترګو ګرم والی او ددې سبب دادی چي د ډېري خوشالی په حال کي هم د انسان تر سترګو اوښکي راځي لکه د ډېر غم په وخت کي د انسان تر سترګو اوښکي بهېږي فرق یې دادی چي د خوشالی اوښکي یخي وي او د غم اوښکي تودې وي کما یدل علیه التجربة.

**پوه سه:** چي دا ټوله حالات غریبه چي پر مریمي راغلـه دا حالات ددې لپاره کرامت او د عیسی علیه السلام لپاره ارهاص دی معجزه نه بلل کېږي، ولي چي معجزه هغه ته وايي چي په وخت کي د دعوت د کفارو او ددوی د مقابلې لپاره پر لاس د مدعي النبوة ظاهره کړل سي، حسین کاشفي رح په تفسیر حسیني کي ددې آیت په تفسیر کي وايي "وقری عیناً" روشن ساز چشم را بفرزند (لکه پښتانه چي وايي سترګي دي روښانه زوی دي پیدا سو) یا بسبز شدن درخت خرما وبدادن میوه که مناسبت باحال تو دارد چه آنکه قادر است بر اظهار خرما از درخت یابس قادر است بر ایجاد ولد از مادر بدون پدر، وحق سبحانه ملائکه فرستاد تا بګرد

مریم آمدند درصورت بشر وچون عیسی متولد شد ملائکه اورا فراگرفته بشستند ودرحریر بهشت پیچده درکنار مریم نهادند. انتهی ولم ار الفقیر جمیع قول الکاشفي في تفسیرعربي اصلاً والله اعلم. زما مطلب دا نه دی چي دا ماقاله الکاشفي له کرامت څخه د مریمي لېري دی بلکې د مریمي له حال سره مناسب دی. ولې چي ددې سره نه قابله وروسره وه چي کوچنی وريږ ېمينځي او نه کالي ورسره وه چي په عیسی علیه السلام یې واغوندي یا یې پکښې وپېچي. صرف دا قدر زما مطلب دی چي عربي تفاسیرو هم باید ودې کراماتو ته اشاره کړې وای. تفسیر کاشفي ډېر قدیم تفسیر دی چي تر ډېرو عربي تفاسیرو مقدم دی صرف صاحب د روح البیان دغه تفسیر ته د قدر په سترګه ګوري.

## فَإِمَّا تَرَيِنَّ مِنَ الْبَشَرِ أَحَدًا

پس که ته ووینې یا مریم له بشر څخه یو څوک یعنې چي ستا څخه پوښتنه په شان کي د ولد وکړي چي دا ولد دې له کومې خوا پیدا کړی.

پوه سه: چي اصل د اما ان ما ؤ کلمه د ما زائده ده، نون د ان شرطیه یې پکښې مدغم کړی. وروسته یې جزا د ان وګرځول.

## فَقُولِي إِنِّي نَذَرْتُ لِلرَّحْمَٰنِ صَوْمًا

دا جزا د شرط ده، یعنې ته ورته ووایه چي سوال د ولد په باره کي در څخه وکړي چي ما نذر کړی دی د خدای جل جلاله لپاره روژه یعنې روژه د صمت یعنې د خبرو نه کولو. سدي رحمه الله وايي چي په بني اسرائیلو کي داسي کسان وه چي ډېر اجتهاد به یې په روژه کي کاوه، نو به یې خبري هم له چا سره نه کولې لکه دوی چي به یې نه خوړله تر مابنامه پوري. بعض مفسرین چي دغه خبره یعنې اني نذرت دي په اشاره ورته وایي یعنې لاس دي پر خوله کېښېږدي لپاره د قطع د ناحقي بحث اکتفاً بکلام عیسی علیه السلام کما سیاتي. او بعض مفسرین وايي چي دغه قدر خبره دې په خوله ورته وکړي وروسته دې پټه خوله سي.

## فَلَنْ أُكَلِّمَ الْيَوْمَ إِنْسِيًّا

زه هرگز خبري نه کوم د هیڅ انسان سره تخصيص د انسي چي يې وکړی ولي چي دې د ملکې سره خبري کولې.

**مسئله**: روژه د خورک او له خبرو څخه په روژه کي په پېشو امتو کي روا وه، وقد نهى النبي ﷺ عن صوم الصمت فهو منسوخ في شرعنا كما ذكره الجصاص في كتاب الاحكام، په حديث کي چي مروي د ابوبكر الصديق رضی الله عنه څخه دی راغلي دي چي دی د یوې ښځي کور ته ورغلی هغې صوم صمت نیولې وه يعني خبري يې نه کولې فقال لها ان الاسلام قد هدم هذا فتكلمي. يعني اسلام صوم الصمت نړوی. نو دې خبري وکړې. ظاهر د اخبار دادی چي دا روژه حرامه ده فان نذره لايلزمه الوفا به يعني روژه دي ونسي لكن د صمت په نذر نه نذر کېږي لان الحرام لايلزم بالنذر، او په دې مسئله کي په منځ کي د حنيفيانو او شافعيانو اختلاف نشته لانه من التضييق وليس في شرعنا ذالك وان كان قربة في شرع من قبلنا.

**درویش وايي**: چي ومثل هذا كثير كقرض موضع النجاسة من الثوب في شريعة موسى عليه السلام وعدم كفاية الغسل وفي شرعنا الغسل كاف والقرض منسوخ والعمل به حرام لانه غاية التضييق.

**فائده**: عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه په ځای کي د صوماً قرائت يې صمتاً يعني چي زه خبري نه کوم په شان کي د زوی د هیڅ چا سره.

## فَأَتَتْ بِهِ قَوْمَهَا تَحْمِلُهُ

نو مریم راتګ وکړی متلبس په ولد سره وه قوم ته چي زوی یې په غېږ کي را اخستی و، په یوه روایت کي راغلي چي زکریا علیه السلام چي مریم دده په کفالت کي وه له محراب څخه وتلې ورته معلومه سوه. نو زکریا ډېر غمجن سو. نو د مریم د ماما زوی یوسف ته يې وویل چي ته ورځه شاوخوا وګوره او مریم پیدا کړه، یوسف چي پل پسي واخستی دا د خورما تر درختي لاندي ناسته وه او

کوچنی یې په غېږ کې ؤ، نو را رهي یې کړه، نو د مریمې چونکه صالح خاندان وو او زکریا علیه السلام د هغو سره ناست ؤ چې مریم راغله کوچنی یې په غېږ کې ؤ نو لو وژړل او خوابدي سوه.

قَالُوا يَٰمَرْيَمُ لَقَدْ جِئْتِ شَيْـًٔا فَرِيًّا ۝٢٧

لام موطئه د قسم محذوف دی، قوم وویل ای مریم والله تا راتګ وکړی په داسې شي چې منکر دی یعنې بې عادته کار دي وکړی، قتاده وایي عظیماً وقیل عجباً.

**پوه سه:** چې "فري" په اصل کې قطع ته وایي د پوست من فري الجلد بمعنی شق، او په قرآن کریم کې دا ماده یعنې الفا والرا والیا په معنی د الکذب او د شرک ده. او د ظلم په معنی هم راغلې ده. قال الله تعالی ومن اظلم ممن افتری علی الله الکذب، وقال ومن یشرک بالله فقد افتری اثما مبینا. فان الفعل المنکر من الشرک والمعاصي یشق عصمة الرجل وصلاحه.

يَٰٓأُخْتَ هَٰرُونَ

اې خور د هارون. بعض مفسرین وایي چې مراد له هارون څخه هغه څوک دی چې نبي ؤ او د موسی علیه السلام ورور ؤ.

**سوال:** هارون د موسی علیه السلام ورور خو تر عیسی علیه السلام په سلګونه کلونه دمخه ؤ، نو مریم څرنګه د هغه خور کېدای سي، دا سوال پر مغیره بن شعبه رضي الله عنه باندې سوی ؤ چې دی نجران ته تللی ؤ یو نصاری ځندي کړی ؤ چې ستاسې په کتاب کې داسې راغلي دي د مریم په باره کې یا اخت هارون او سره ددې چې موسی خو تر عیسی علیه السلام دمخه ؤ بکذا وکذا سنوات. مغیره رضي الله عنه وایي چې زه یې په ځواب نه پوهېدم چې مدینې منورې ته راغلم له علیه الصلوة والسلام څخه مې دا پوښتنه وکړه فقال علیه السلام انهم کانوا یسمون بانبیائهم والصالحین، مقصود دا ؤ چې بني اسرائیلو خپل زامن په نامه د انبیا نامزد کول. یعنې د بعضې انبیاؤ نوم به یې پر ایښوی او د نورو صالحو کسانو نومان به یې پر ایښوول

(لکه امت د علیه الصلوة والسلام پر خپلو زامنو د محمد، احمد، محمود وغیرها من اسماء النبي ﷺ ایږدي، یا داؤد یا سلیمان یا عمر یا عثمان پر ایږدي وغیر هذه الاسماء) غرض د علیه الصلوة والسلام دادی چي دا هغه هارون د موسی علیه السلام ورور نه دی، بلکې د مریمې پر ورور یې د هارون نوم ایښی ؤ. او بعض مفسرین وایي چي مریمه په ډېرو وسائطو هارون النبي ﷺ ته رسېدله یعني د هغه له نسل څخه وه، یعني دا نسلي شراکت ته یې اخوة ووایه لکه عرب چي د بني تمیم له قوم څخه یو سړی وي دوی ورته ووایي یا اخا تمیم. بغوي رح وایي چي قتاده رح وایي چي هارون د مریمې ورور یو صالح عابد سړی ؤ د بني اسرئیلو. داسي روایت راغلی دی چي دغه هارون نامی چي وفات سو په جنازه کي یې څلوېښت زرو (۴۰۰۰۰) چي ټول په نامه د هارون بني اسرائیل یادېدل شراکت کړی ؤ ماسوی له عموم خلګو څخه. او بعض مفسرین وایي چي مراد اخوة څخه في النسب نه دی بلکې اخوة في الصلاح دی لکه په دې قول کي د خدای پاک "ان المبذرین کانوا اخوان الشیاطین" یعني في الفساد لا في النسب او نور ناوړه احتمالات هم بعض مفسرانو راوړي دي.

مَا كَانَ أَبُوكِ امْرَأَ سَوْءٍ وَمَا كَانَتْ أُمُّكِ بَغِيًّا ﴿٢٨﴾

یعني نه ؤ ستا پلار عمران سړی د بدو او نه ستا مور زانیه وه. ددوی غرض تعریض د زنا پر دې او ددې پلار او مور چي په صلاح سره ذکر کړه اشاره ودې ته ده چي فواحش له اولاد څخه د صالحانو ډېر بعید دی. نو تا څرنګه زوی بې پلاره راوړی. الحاصل الزام د زنی یې پر ولګاوه.

فَأَشَارَتْ إِلَيْهِ

مریمې اشاره و عیسی ته وکړه یعني دده څخه پوښتنه وکړئ. ابن مسعود رضي الله عنه وایي چي چونکه د مریمې سره یو داسي دلیل نه ؤ چي دوی په قانع کړي، نو یې ځکه اشاره و عیسی علیه السلام ته وکړه تاچي خبري دده به ددوی د قناعت بخش دلیل سي، راوي وایي دې چي اشاره و عیسی علیه السلام ته وکړه هغو ته درد ورغلی او دې ته یې وویل چي ته په مور پسخند وهې،

قَالُوا كَيْفَ نُكَلِّمُ مَنْ كَانَ فِي الْمَهْدِ صَبِيًّا ۝

وه يې ويل دوى چې موږ څرنګه خبرې وکړو د هغه چا سره چې په زانګو کې پروت وي کوچنى چې د خبرو صالح هم نه دى يعني كما في عامة صبيان المهد.

**پوښتنه:** "كان" خو صيغه د ماضي ده او عيسى عليه السلام خو په ماضي کې په مهد کې نه و في الحاله په مهد کې دى؟

**ځواب:** لفظ د كان لايقاع مضمون الجملة في زمان ماض مبهم صالح لقريبه وبعيده وهو ههنا لقريبه خاصةً بقرينة انه مسوق للتعجب في الحال الحاضر، او زائدة والظرف اعني في المهد صلة من وصبيًا حال من الضمير المستكن في الظرف او يا كان تامه دى اى وجد في المهد. او يا دائمه دى كما في قوله تعالى وكان الله غفوراً رحيمًا. او يا كلمه د كان لپاره د تحقق د كوچنوالى د عيسى ده فان الماضي دال على التحقق.

**درويش وايي:** چې دا اعراب او بيان منقول دى له روح البيان، روح المعاني، تفسير مظهري وغيرهما څخه فتدبر فيه.

**تنبيه:** پوه سه! چې فقير يو احتمال دا هم راوړى دى چې كان دي لپاره د دوام وي او استشهاد په آيت سره وكان الله غفوراً رحيمًا مي هم وو ايه له دوام څخه د عيسى په حال کې مراد دى حالت حاضره دده او حالت ماضيه قريبه دده او حالت مستقبله قريبه دده، نو په حال کې د عيسى عليه السلام مطلق دوام موجود دى بخلاف الدوام في الآية فانه يشمل الحالة الحاضرة والماضي القريب والبعيد والمستقبل القريب والبعيد فلا يرد مما عسى ان يتوهم من الاستشهاد بالآية الدوام في حال عيسى بالمعنى المذكور في الآية فافهم. سدي رح وايي چې دا د خلګو خبري واورېدلې ترک الرضاع واقبل عليهم.

قَالَ إِنِّي عَبْدُ اللَّهِ

وه يې ويل چې زه بنده د خداى جل جلاله يم.

**پوه سه:** چې اضافت د ځان چې و خداى جل جلاله ته اشاره يې وده ته وکړه چې عبد

مکرم د خدای یم چونکه قوم له دې څخه منکر ؤ، نو نون ثقیله د تاکید یې هم ورسره راوړی او بیل دا اقرار د عبودیت چې یې وکړی ولې چې مقام د عبودیت اعلی مقام د انبیا علیهم السلام دی ولهذا نقول في تشهد الصلوة اشهد ان محمداً عبده ورسوله. علماء وایي چې د رسول په صفاتو عبودیت دده اعلی دی تر رسالت دده لان في العبودية توجه الى الله خاصةً وفي الرسالة اى تبليغ الدين توجه الى المخلوق او بل عیسی په عبدالله سره دفع د توهم دالوهية له ځانه وکړه.

## اٰتٰىنِیَ الْكِتٰبَ وَ جَعَلَنِیْ نَبِیًّا ﴿٣٠﴾

ماته یې راکړی دی کتاب. اکثر علماء وایي چې مراد له کتاب څخه انجیل دی او تعبیر په ماضي سره چې یې وکړی لتحقق ايتاء الانجيل فيما سيأتي على منوال قد قامت القيامة قد اكتفى روح البيان على الانجيل وفي روح المعاني الظاهر انه الانجيل. وقيل التورات وقيل مجموعهما. مظهري په نقل د حسن رح وایي چې مراد تورات دی چې ده ته الهام سوی ؤ هغه وخت چې دی د مور په نس کې ؤ "وجعلني نبيا" اى في اللوح المحفوظ او بمعنى سيجعلني تعبير بالماضي اما على الاول فظاهر واما على الثاني فلتحقق الوقوع في المستقبل فكانه ماض كمامر.

**درویش وایي**: چې د تورات په باره کې او هغه هم د مور په رحم کې کوم حدیث نبوي یا روایت د اصحابو نسته والله اعلم.

**فائده**: په دې خبرو کې د عیسی علیه السلام دلیل دی پر برائة د مور دده له زنی څخه لان الله تعالى اجل من يصطفى للرسالة ولد الزنى وهذا مسلم عند الكل.

**فائده**: په دې کې اختلاف دی چې عیسی علیه السلام چې دا مذکوره خبرې په قرآن کې وکړې بیا تر هغه وروسته یې هم خبرې جاري وې كعادة الرجال او یا پټه خوله او تر هغه وخته لکه نور کوچنیان چې خبرې کوي عیسی هم پر خبرو راغلی، او علیه الصلوة والسلام د عیسی علیه السلام په باره کې ویلي دي چې عیسی چې په مهد کې خبرې وکړې ثم لم يتكلم الى وقت العادة وهو الصحيح.

وَجَعَلَنِي مُبٰرَكًا اَيْنَ مَا كُنْتُ

زه گرځولی یم مبارک. هر چیري چي زه یم في الارض او في السماء.
مجاهد رح وايي نفاعًا يعني كثير النفع الى الناس ومن نفعه ابراء الاكمه والابرص، او سفيان ثوري رح وايي چي معلم الخير امرًا بالمعروف ناهيًا عن المنكر، او ضحاک رح وايي پوره کونکی د حوائجو د خلګو روح المعاني وايي اكمله الله تعالى عقلاً واستنبئًا طفلاً ونقل ذالك عن الحسن.

**درویش وايي:** چي فخذ ما صفی ودع ما كدر.

وَاَوْصٰنِي بِالصَّلٰوةِ وَالزَّكٰوةِ مَا دُمْتُ حَيًّا ۝

او ماته خدای پاک امر کړی دی په صلوة او په زکوة سره تر هغو چي زه ژوندی یم. يعني امر مؤکد دی تر مرګ پوري.

**درویش وايي:** چي ظاهره داده چي د صلوة لمونځ مراد دی چي عبادت بدني دی او له زکوة ځخه زکوة متعارف مراد دی.

**درویش وايي:** چي ددې دوو عباداتو په ماضي راوړه توجیه یې چي د مخه تېره سوه هغه ده فافهم، او بعض علماء وايي چي د زکوة ځخه صدقة الفطر مراد دی، وقيل المراد بالصلوة الدعاء وبالزكوة تطهير النفس عن الرزائل.

**پوښتنه:** که له زکوة ځخه زکوة متعارف مراد سي چي عيسى عليه السلام به مالک د نصاب الزکوة ګرځي وليس كك لان الله تعالى قد نزه الانبياء عن الدنيا فما ايديهم لله تعالى؟

**ځواب:** امور شرعيه ګاهي عام وي نبي او امت دواړو ته شامل وي كالصوم والصلوة، او ګاهي خاص وي كالزكوة بالاغنياء فالوصية بالزكوة بالنسبة الى اغنياء امته وان كان باعتار الظاهر خاصًا بعيسى عليه السلام.

وَبَرًّا بِوَالِدَتِي وَلَمْ يَجْعَلْنِي جَبَّارًا شَقِيًّا ۝

اى وجعلني بارًا بوالدتي، عطف على مباركًا.

**پوښتنه:** چي بار چي د بر په معنی دی ضد د عاق دی. بعض مفسران وايي

چي "والدة" يې ذکره کړه دا لکه تصريح په دې سره چي والد نه لرم فهو اظهر الجمل في برائة مريم عليها السلام من الزنى.

زه خدای نه يم ګرځولی په علم ازلي خپل متکبرا او عاصي د خدای ﷻ قيل الشقي هو الذي يذنب ولايتوب. تاريخ يوهان وايي چي عيسى عليه السلام نهايت تواضع درلوده. کله کله به يې د درختو بلګونه خوړل ويلبس الشعر ويجلس على التراب ولم يتخذ لنفسه مسكنًا وكان هو عليه الصلوة والسلام يقول للناس سلوني" يعني زما څخه پوښتنې کوئ فاني لين القلب صغير في نفسي.

وَالسَّلٰمُ عَلَيَّ يَوْمَ وُلِدْتُّ وَيَوْمَ اَمُوْتُ وَيَوْمَ اُبْعَثُ حَيًّا ﴿۳۳﴾

او سلامتي دې وي پر ما (مظهري رح وايي چي دا جمله په اصل کي فعليه وه ولذالک عطف علي فعلية اى لم يجعلني عدلت الى الاسمية للدلالة على الاستمرار آه) چي زه له مور څخه زيږيدم (حيث حفظني الله من طعن الشيطان كما في الحديث الصحيح) او هغه ورځ چي مرم من عذاب القبر په هغه ورځ چي بعث کېږم ژوندی من اهوال يوم القيامة وعذاب النار.

ذٰلِكَ عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ قَوْلَ الْحَقِّ

يعني دغه سړی چي ذکر يې تېر سو چي اقرار يې په عبوديت وکړی يعني عيسى بن مريم دغه سړی دی.

**پوه سه:** چي "ذالک" مبتدأ ده او "عيسى" يې خبر دی او "ابن مريم" صفت د عيسى دی او يا خبر بعد الخبر دی يا بدل دی يا عطف بيان دی والاکثرون على الصفة "قول الحق" منصوب دی. بعض مفسرين وايي چي مفعول مطلق دی د فعل محذوف والتقدير اقول قول الحق او اضافت د قول و حق ته اضافت بيانيه ده، او بعض مفسرين وايي منصوب على الحال دی من عيسى والعامل فيه معنى الاشارة دی "في ذالک" چي دی ته په نحو کي عامل معنوي وايي كما في قوله "هذا بعلي شيخًا" روح المعاني وايي چي جمهور د قرايانو يې په رفع د قول وايي چي خبر د مبتدأ محذوفي دی اى هو قول الحق الذي لاريب فيه والضمير راجع للكلام السابق او تمام قصة عيسى وقيل غير ذالک.

الَّذِي فِيهِ يَمْتَرُونَ ﴿٣٤﴾

هغه خبر حق دی چي يهود او نصارى اختلاف او تنازع لري، يهودان وايي چي عيسى ساحر و حاشاه، او نصارى وايي ابن الله و سبحان الله عما يقولون.

اعراب: "الذي" صفت د قول دی یا د حق دی یا خبر د مبتدأ محذوفي دی ای هو الذي الخ. چونکه نصارى وو عيسى ابن الله باله، نو خدای پاک اوس نفي د ولد مطلقًا له ځانه څخه کوي په دې آيت کي.

مَا كَانَ لِلَّهِ أَنْ يَتَّخِذَ مِنْ وَلَدٍ سُبْحَانَهُ

نشته خدای لره چي دی ولد ځان لره ولري، كلمه د "من" لپاره د تاكيد ده، "سبحٰنه" مصدر دی په ځای کي د فعل د رېدلی دی ای اسبحه سبحانًا، چي فعل حذف سو مصدر يې و مفعول ته مضاف کړی سبحانه وګرځېدی وروسته تر اضافت د فعل اظهار روا نه دی كما تقرر في كتب النحو.

**پوه سه:** چي دا جمله معترضه ده لپاره د تنزه د خدای ده عن الولد مطلقًا ذكرًا كان او انثى.

إِذَا قَضَىٰ أَمْرًا فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ ﴿٣٥﴾

چي اراده وكړي چي يو شی پيدا كړي، نو هغه شي ته وايي چي پيدا سه! هغه بلا توقف پيدا سي.

**پوه سه:** چي دا عبارت کنايه ده له سرعت امتثال څخه د خدای والا فلا يصح الخطاب للمعدوم وعلى تقدير وجود الشئ المراد فالقول المذكور تحصيل الحاصل كذا قال العلماً قاطبة ومن جملة ذالک الاحداث ایجاد عيسى بلا اب عقل سليم مقتضى ددې ده چي داسي ذات مقتدر حتمًا به منزه وي له مشابهت څخه د مخلوق بريًا من الحاجة في اتخاذ الولد باحبال الانثى كما يقول النصارى. نو دا جمله شرطيه په ځای کي د علت ده لنفي اتخاذ الولد فتدبر هداک الله.

**درويش وايي:** چي دا څو دلائل نقليه دي پر نفي د ولد خدای ﷻ لره او ورته آيتونه نور هم په قرآن عظيم الشان کي پر نفي د ولد خدای ﷻ لره سته په

سورة الاخلاص كي "لم يلد ولم يولد" هم موجود دی، او پاتـه دلائل عقليه پر نفي د ولد خدای ﷻ لره د ہر سته چي د هغو ځای کتابونه د علم الكلام دي، كشرح العقائد وشرح المقاصد للعلامة التفتازاني رح والمواقف للقاضي عضد الملة والدين رح وشرحه للسيد الجرجاني رح، تنبيه! فقير پر ابو المنتهى باندي پښتو شرح کړې ده چي طبع سوې ده، په هغه شرح كي هم دلائل عقليه پر نفي د ولد خدای ﷻ لره ذکر کړه سوي دي فارجع اليه فانه انفع من تفاريق العصا.

## وَإِنَّ اللَّهَ رَبِّي وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوهُ هَٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيمٌ

او په تحقيق الله رب زما او رب ستاسي دی.

**پوه سه:** چي قرائت په زبر د الف قرائت دی د كوفي قراؤ، نو عطف دی پر "اني عبد الله" باندي، يعني دا خبره هم د عيسى ده په وخت كي د رضاع، او اهل بصره يې په فتح د الف وايي، نو عطف دی پر "الصلوة والزكوة" باندي، والتقدير و اوصاني بان الله ربي آه، نو دا هم قول د عيسى عليه السلام دی، او يا ان الله ربي آه منصوب محلاً مقوله ده للقول.

**پوه سه:** چي كمال ته رسېدل د انسان په استكمال د قوة نظريه ده باعتبار التوحيد وغيره من المعتقدات ففي هذه الاية اشارة الى كمال القوة النظرية بالتوحيد وفي قوله تعالى "فاعبدوه" اشاره ده و استكمال ته د قوت عمليه چي مامورات الهيه به كوي او له منهياتو څخه به پرهېز كوي، د غه جمع بين الامرين لار ده سمه چي سړی و جنت او د خدای ﷻ رضا ته رسوي.

## فَاخْتَلَفَ الْأَحْزَابُ مِن بَيْنِهِمْ

نو ډلي ډلي سوې او اختلاف يې سره شروع کړی يعني الهيود والنصارى، او نصارى وو په خپل منځ كي.

**درويش وايي:** چي يهودانو ډېر تفريط وكړی او كوي يې په شان كي د عيسى عليه السلام چي ساحر، ابن الزانية نعوذ بالله من ذالك يې بولي، او نصارى درې ډلې سوې يوه ډله چي په نامه د نسطوريه يادېږي هغه وايي چي عيسى ابن الله

دی معاذ الله، او د یعقوبیه په نامه ډله وایي چي عیسی علیه السلام خدای ؤ چي مخکي ته راکښته سوی ؤ او بیرته ولاړی اسمانو ته. او بله ډله چي د ملکانیه په نامه مسمی ده هغه وایي چي عیسی علیه السلام عبدالله ورسوله ؤ، وهم علی الحق في شان عیسی علیه السلام "من بینهم" د من لفظ زائد دی. او ظرف چي من بینهم دی متعلق دی په اختلف پوري یعني من بین قومه او من بین الناس.

**درویش وایي:** چي تفصیلي بیان ددې درو ډلو د نصاری وو په کتاب "الملل والنحل" لمحمد بن عبدالکریم الشهرستاني رحمه الله کي مطالعه کړئ.

فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ كَفَرُوا مِن مَّشْهَدِ يَوْمٍ عَظِيمٍ ﴿٣٧﴾

"فویل" ای هلاک عظیم "ویل" په اصل کي مصدر دی او منصوب دی په فعل محذوف سره ای هلکو اهلاکًا ثم نقل الجملة من الفعلیة الی الاسمیة. او ویل مرفوع سو علی الابتدا ولذا قلت في الترجمة ویل عظیم لیصح الابتدائیة للدلالة علی الاستمرار، کما في جمیع الجمل المنقولة من الفعلیة الی الاسمیة لامطلق الجملة الاسمیة لان نحو زید قائم لایدل علی الاستمرار کما لایخفی علی من له ادنی درب في النحو "للذین کفروا" هغه کسان چي کافران وه په شان کي د عیسی چي یهودان تولـه دي او په نصاری وو کي نسطوریه او یعقوبیه لا المسلمین، والملکانیة الذین یقولون ان عیسی عبدالله ورسوله "للذین کفروا" ظرف مستقر دی خبر د "ویل" دی ای کائن للذین آه "من" حرف جر متعلق دی په "ویل" پوري او "مشهد" یا مصدر میمي دی ای من شهود یوم عظیم هو لـه وحسابه وجزائه وهو یوم القیامة دی. او یا "مشهد" ظرف مکان یا زمان دی. والمعنی من زمان الشهود او مکانه او یا مشهد د شهادت څخه ماخوذ دی یعني من شهادة ذالک الیوم حیث یشهد علیهم الملائکة والانبیا وامة محمد صلی الله علیه وسلم وشهادة ایدیهم والسنتهم وارجلهم بالکفر والفسوق والعصیان.

أَسْمِعْ بِهِمْ وَأَبْصِرْ يَوْمَ يَأْتُونَنَا

**بوه سه:** "اسمع بهم" وابصر" چي "بهم" ورسره محذوف دی افعل التعجیب

دی، والمعنی چه شنو باشند کافران وچه بینا. هغه ورځ چي دوی موږ ته راسي للحساب وهو یوم القیامة وهو تعجب من حدة سمعهم وابصارهم یوم القیامة او سره ددې چي دوی په دنیا کي صم بکم عمی وه.

**سوال**: تعجب خو استعظام د شي دی مع الجهل بسبب، دا خو پر خدای ﷻ محال دی؟

**ځواب**: تعجب و خدای ﷻ ته نه دی راجع بلکې و هغه خلګو ته راجع دی چي کفار وویني په ورځ د قیامت حدید السمع والبصر مع علمهم بحالهم في الدنیا. لکن دوی ته دا حدة السمع والابصار په اخرت کي فائده نه کوي، کاشکي دوی په دنیا کي تبلیغ د رسولانو په ښه سمع سره د قبول یې اورېدلي وای یا په سترګو د عبرت یې معجزاتو ته د انبیاء کرامو علیهم السلام کتلي وای. نو په قیامت به یې فائده ورته کړې وای او سبب د دخول د جنت او د نجات د دوزخ به ګرځېدلي وای کما یدل علی هذا مابعده.

لَٰكِنِ الظَّالِمُونَ الْيَوْمَ فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ﴿٣٨﴾

لکن ظالمان (کافران) نن ورځ (في الدنیا) په ګمراهي ظاهر کي دي.

**پوښتنه**: د ظالمین په ځای کي چي یې "هم" راوړی وای مع سبق المرجع اخصر به نه وای؟

**ځواب**: د ظالمین د لفظ په راوړلو سره تنبیه ده علی انهم ظلموا حیث لم یستعملوا الاسماع والابصار حین کان ینفعهم یعني في الحیوة الدنیا، وجه التنبیه ان الظلم هو وضع الشيء في غیر محله او دوی خپل اسماع او ابصار په امور دنیویه وو ګمارلي وه فبقوا في واد الضلال المبین وذالک جزاء الظالمین.

وَأَنذِرْهُمْ يَوْمَ الْحَسْرَةِ

ویرېږوه یا محمد (صلی الله علیه وسلم) دوی یعني الکفار له ورځي څخه د غم او پښېماني چي ورځ د قیامت ده چي د کفارو لپاره ورځ د حسرت ده بخلاف المومنین لان ذالک الیوم لهم یوم الراحة ودخول الجنة.

**پوه سه:** چي جمله د "وانذرهم آه" یا جمله معترضه ده یعني کلمه د واو عاطفه نه ده بلکې اعتراضیه ده. یا عطف ده پر "اختلف آه" باندي.

**سوال:** "وانذرهم" خو انشأ ده یعني امر دی او جمله د فاختلف آه خو جمله خبریه ده فکیف یصح العطف کما تقرر في النحو؟

**ځواب:** د "انذرهم" سره "قلنا" مقدر دی یعني وقلنالک انذرهم آه" فالمعطوف صار جملة خبریة کالمعطوف علیه لکنه تکلف لاحاجة الیه.

## اِذْ قُضِیَ الْاَمْرُ

چي فیصله د کار وسي د خدای ﷻ له خوا څخه یعني امر الهي صادر سي چي مؤمنان دي جنت ته ولاړ سي بخلود لاموت ولامرض او اهل دوزخ دي دوزخ ته ولاړ سي یعني الکفار بخلود لاراحة ولاخروج او حساب خلاص سي. بیضاوي وایي چي د قیامت ورځ چي یوم الحسرة بولي له دې سببه چي ګناه کار د خپل ګناه په غم او پرېشاني به اخته وي او د محسن او نېک عمل سره به دا حسرت ورسره وي چي ولې دي په ژوره‌ند کي احسان تر موجوده احسان ډېر نه کاوه. طبراني د معاذ بن جبل ﷺ څخه روایت کړی دی قال قال رسول الله ﷺ لیس تحسر اهل الجنة الا علی ساعة مرت بهم ولم یذکروا الله تعالی فیه.

## وَهُمْ فِیْ غَفْلَةٍ وَّهُمْ لَا یُؤْمِنُوْنَ ﴿۳۹﴾

او دوی یعني ظالمان د خپل ظلم په عاقبت فکر نه وهي چي په اخرت کي به خدای ﷻ څه راسره وکړي. او دوی ایمان او تصدیق د مخبر صادق پر خبره نه لري چي ورځ د قیامت راځي او حساب د مثقال ذره کېږي وبعد ذالک فریق في الجنة وفریق في السعیر.

**پوه سه:** چي دا دوې جملې یعني "وهم في غفلة، وهم لایؤمنون" دوارې حال دي له ضمیر مستکن سره په ظرف کي ای في ضلال کي، وما بینهما اعتراض.

**سوال:** في ضلال خو نه فعل دی او نه شبه فعل دی. نو ضمیر څرنګه پکښې مستکن دی؟

**ځواب**: ضمير خو اصلاً مستکن وي په متعلق کي د في ضلال ای کائنين في ضلال او يکونون في ضلال على حسب اختلاف النحاة لکن متعلق چي حذف سو نحاتو ضمير د هغه په ظرف معتبر کړی تا چي حذف د شبه جمله على تقدير کائنين او يا د جملې على تقدير يکونون لازم نه سي، نو مستتر والی د ضمير په جار او مجرور کي صرف او صرف اعتبار نحوي دی کذا في شرح الجامي قدس سره على کافية ابن الحاجب وفي شرح الرضي على الکافية فافهم. او يا دواړې جملې حال دي له ضمير منصوب څخه په "انذرهم" کي يعني انذرهم حال کونهم غافلين غير مؤمنين.

**فائده**: بغوي، بخاري او مسلم له ابي سعيد الخدري ﷺ څخه او داغه رنګه بخاري او مسلم د ابن عمر ﷺ، او ابو يعلى او بزار او طبراني په اوسط کي په سند صحيح سره له انس او حاکم او ابن حبان د ابی هريرة ﷺ څخه سره د اختصار في بعض او طول في بعض داسي حديث راغلی دی چي يو ځا د عليه الصلوة والسلام څخه پوښتنه وکړه د "اذ قضى الامر" په باره کي، نو عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي دا هغه وخت دی چي مرګ مصور کړل سي په صورت کي د نر پسه چي املح وي نو بيې ملکي ذبح کړي، جنتيان او دوږخيان دواړه ورته ګوري فينادی المنادي يعني يوه ملکه اعلان وکړي يا اهل الجنة خلود بلا موت، و يا اهل النار خلود بلا موت ولي چي مرګ ذبح سو فيزداد اهل الجنة فرحًا على فرح واهل النار غمًا بغم.

## إِنَّا نَحْنُ نَرِثُ الْأَرْضَ وَمَنْ عَلَيْهَا وَإِلَيْنَا يُرْجَعُونَ ۝٤٠

په تحقيق موږ ته په ميراث پاتېږي مځکه او هغه څوک چي پر مځکه وه (يعني فاني به سي مځکه او هغه څوک چي پر مځکه وه و يبقى الرب ﷻ کما يبقى الوارث بعد موت المورث فيکون الملک لله وحده. کريمه "لمن الملک اليوم لله الواحد القهار) او موږ ته رجوع د خلګو ده يعني وروسته تر حشر "فنجازيهم على حسب اعمالهم".

**پوهسه**: چي جمله د والينا يرجعون مرفوع محلاً ده چي عطف ده پر نرث

عطف الجملة الفعلية على الفعلية خبر د انا ده فافهم.

وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ اِبْرٰهِيْمَ ۬ؕ اِنَّهٗ كَانَ صِدِّيْقًا نَّبِيًّا ﴿٤١﴾

او ته ذکر کړه په کتاب یعني قرآن کي ابراهیم بحذف المضاف ای قصة ابراهیم، په تحقیق ابراهیم علیه السلام صدیق ؤ قیل معناه کثیرا الصدق، وقیل بل لم یکذب قط، وقیل بل لم یأتي منه الکذب ولي چي عادت یې د صدق سره نیولی ؤ.

**پوه سه:** چي "نبي" فعیل مشتق له نبوت څخه دی وهي ما ارتفع من الارض، نو ابراهیم په دې معنی عالی الرتبة بارسال الله ایاه، نو پر دې تقدیر اصل د نبي "نبیو" ؤ، واو و یا بهم آمدند نخستین ایشان ساکن بود واو بیا بدل کردند ودریا ادغام نمودند کذا في الزرادي. او یا مشتق دی له بنأ څخه یعني المخبر من الله على اختلاف القرائتین یعني بعض نبي وایي کمامر اعلائه او بعض یې نبیٔ وایي په همزه سره.

اِذْ قَالَ لِاَبِيْهِ يٰۤاَبَتِ لِمَ تَعْبُدُ مَا لَا يَسْمَعُ وَلَا يُبْصِرُ وَلَا يُغْنِيْ عَنْكَ شَيْـًٔا ﴿٤٢﴾

"اذ قال" بدل من ابراهیم، چي وویل ابراهیم و پلار ته چي نوم یې آذر ؤ.

مصرع: گل از خارست ابراهیم ز آذر.

"یا ابت" ای پلاره زما (د ابوة په لفظ دجلب دده وتوحید ته د خدای په نهایت لطف سره) ته ولي عبادت کوې د داسي شیانو چي نه علم پر مسموعاتو لري او نه یې پر مبصراتو لري. یعني معبود خو باید عالم بالمسموعات او مبصرات وي چي مراد دده اصنام دي او فائده نه رسوي یعني دفع د ضرر نسي در څخه کولای د هیڅ شي.

فائدة جاریة في اللغة العربیة: په "ابت" کي تأ عوض ده د یأ الاضافة یعني اصل یې یا ابی ؤ ځکه یې جمع ناروا ده یعني "یا ابتي" او یا ابتاهم نه ویل کیږي ولي چي الف عوض دی له یا څخه، نو یو شي لره دوه عوضه نه وي، او اصل د "لم" لما" ؤ حرف جر چي پر ما استفهامي داخل سو الف یې حذف کړی لکثرة الاستعمال التي هي مقتضی التخفیف. وهکذا القیاس لسائر الحروف الجارة التي ادخلت على ما مثل بم. وعلام وفیم وممّ وعمّ آه.

**فائده**: كه د "شيا" معنى داسي وكړل سي "شيئ من الاغنا" يعني جلب نفع ودفع ضر" نو شيا مصدر دى منصوب على انه مفعول مطلق "ليغنى" فافهم.

**تنبيه**: ابراهيم عليه السلام د خپل پلار مشرك په نصيحت كي ډېره د ادب او د شفقت او رفق لار مختاره كړه چي شايد فائده به وكړي او تصريح په نسبت د ضلال پلار ته ونه كړه اول يې له ده څخه طلب وكړى چي ته ما ته بيان كړه د بتانو د عبادت فائده او اشاره يې ودې ته وكړه چي بتان ادنى رتبةً دي تردې چي ادنى عاقل سړى ودوى ته ميل د عبادت كولو بايد نه وكړي. ولي چي عاقل سړى يو كار نه كوي مگر د غرض صحيح لپاره والعبادة التي هي غاية التعظيم لا يستحقه الا من له غاية الاستغنا من الاغيار والانعام العام القادر على الاثابة والايلام قدرةً تامةً الى غيرها من اوصاف الجمال والجلال والاصنام ليست في شئ من تلك الامور والعاقل لا يستعير من المستعير. پښتانه وايي چي دا استعاره داسي ده لكه سپى چي دودى غواړي له فقيره. او طلب د حاجت له بتانو څخه داسي دى لكه څوك چي طلب كوي د حاجت له محتاج فقير څخه.

يَٰٓأَبَتِ إِنِّي قَدۡ جَآءَنِي مِنَ ٱلۡعِلۡمِ مَا لَمۡ يَأۡتِكَ فَٱتَّبِعۡنِيٓ أَهۡدِكَ صِرَٰطٗا سَوِيّٗا ۝

اى زما باباجانه ماته راغلى دى علم پر خداى يعني پر مستحق د عبادت او د هغه پر احكامو من الحلال والحرام. چي تاته هغه علم نه دى راغلى. نو ته زما متابعت وكړه زه به تاته دروښييم لار مستقيمه او سمه چي په هغه لار كي فلاح د دارينو نغښتې ده. په دې نصيحت كي هم ابراهيم عليه السلام خپل د غايت ادب څخه كار واخستى چي پلار ته د جاهل مطلق نسبت ونه كړي او خپل ځان ته يې هم نسبت د علم كامل ونه كړى. مثال يې دادى لكه دوه كسه چي پر لار روان وي دا يو له لارې څخه بې لارې روان سي دا بل ورته ووايي اتله يو اله لار داده دې خوا ته راسه.

يَٰٓأَبَتِ لَا تَعۡبُدِ ٱلشَّيۡطَٰنَۖ إِنَّ ٱلشَّيۡطَٰنَ كَانَ لِلرَّحۡمَٰنِ عَصِيّٗا ۝

اې زما بابكه ته په خوله مه كوه د شيطان چي عبادت د بتانو يې وتاته ښائسته كړى (دا يې تنبيه پر دې وكړه چي عبادت د بتانو په حقيقت كي عبادت د شيطان دى لكونه امراً بها) په تحقيق شيطان د خداى لوى عاصي بنده ؤ.

**پوښته:** چې دا جمله تعلیل او دلیل دی د لاتعبد الشیطان او "عصي" صیغه د مبالغې ده لان الشیطان قد عصی ربه في امره بالسجود للآدم وقال انا خیر منه. واستقبح الخبیث امره تعالی بسجوده للآدم فوقع في هاویة الضلال الی ابد الآباد. او دا هم بد هې جلي خبره ده چې د خدای ﷻ د دښمن سره چې څوک یاري کوي هغه هم د خدای ﷻ دښمن دی.

## يَٰٓأَبَتِ إِنِّيٓ أَخَافُ أَن يَمَسَّكَ عَذَابٌ مِّنَ ٱلرَّحۡمَٰنِ

اې پلاره زه بېرېږم چې تاته به ورسېږي عذاب د رحمٰن خدای له خوا څخه یعني که ته پر شرک او اطاعت د شیطان پاته سې.

**پوښتنه:** ذکر د رحمٰن یې وکړی د عذاب سره حکمت یې څه دی؟

**ځواب:** حکمت دادی چې اشاره ودې ته راسي چې کفر او عصیان مقتضی د عذاب دي د هغه چا له خوا څخه چې هغه موصوف په رحمت کامله دی کما هو معنی الرحمن لانهم قالوا الرحمن ابلغ من الرحیم، ولې کمال د رحمت پر مطیعینو منافي نه دی د کمال غضب پر کافرانو چې پر خپل کفر ټینګ ولاړ وي.

## فَتَكُونَ لِلشَّيۡطَٰنِ وَلِيّٗا ﴿٤٥﴾

ته به سې د شیطان دوست او قریب په لعنت کې د دنیا او په عذاب النار کې په اخرت کې چې ته وشیطان په سره ملګري یاست په اور کې لوعده تعالی "لاملئن جهنم من الجنة والناس اجمعین" مراد له جنة څخه شیطان دی او عاصیان چې د هغو شیطانانو په ښوونه او وسوسو دوی یعني عاصیان کفر او شرک او نور ګنهونه کوي.

## قَالَ أَرَاغِبٌ أَنتَ عَنۡ ءَالِهَتِي يَٰٓإِبۡرَٰهِيمُ

پلار ورته وویل په استفهام د انکار او تعجب آیا ته بېزار یې زما د خدایانو څخه اې ابراهیمه.

**پوښتنه:** چې رغبت چې متعدي په کلمه د عن سي معنا یې بېزاري ده، او چې متعدي په کلمه د الی سي معنی یې محبت ده، او الهه چې په صیغه یې د جمع

راوړه، ولې چې آذر او نورو مشرکانو د هغه وخت د ډېرو بتانو عبادت کاوه لکه مشرکان د مکې په عصر نبوي کې د لات، عزی، منات وغيرها عبادت يې کاوه.

**فائده:** ابراهيم عليه السلام ډېر ادب او شفقت د پلار سره وکړی کمامر في الآيات السابقة. او پلار په ډېر غلظت خبرې ورسره وکړې يعنې يا ابنې يې نه وواية بلکې په نامه يې ورته وويل او د ابراهيم په خبرو کې به پلار دمخه ذکر کېدی يا ابت يا ابت، او پلار دی وروسته ذکر کړی او وروسته يې پېش رو د رجم بالحجارة هم ورکړی او د هجران يعنې له کوره د شړلو تهديد يې هم ورکړی حيث قال ابو ابراهيم.

لَئِن لَّمْ تَنتَهِ لَأَرْجُمَنَّكَ وَاهْجُرْنِي مَلِيًّا ﴿٤٦﴾

که ته منع نه سې له خپلو خبرو څخه يعنې زما د خدايانو عيب وايه "لارجمنک" کلبي، مقاتل او ضحاک رح وايي چې زه به سخت بېکنځل درته وکړم، او ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې سخت به دې ضرب او کوب کړم، او حسن رح وايي چې زه به دې په ډبرو مړ کړم "واهجرني مليًّا" زما څخه ولاړ سه يعنې له کوره ووزه زمانًا طويلاً سالمًا مني ولا تکلمني خبرې مه راسره کوه.

**درويش وايي:** چې دا ټولې ترجمې خو حقيقةً يا مجازًا صحيح دي لکن اهل لغت وايي چې رجم مأخوذ دی له رجام څخه او رجام ډبرو ته وايي والله اعلم بمراده في کتابه.

**پوښتنه:** د "واهجرني" جمله پر کومه جمله عطف ده؟

**ځواب:** مفسرين په اتفاق وايي چې عطف ده پر "لارجمنک" باندې او په ځواب کې ددې چې لارجمنک خو جمله خبريه ده او واهجرني خو جمله انشائيه ده ټول په اجماع سره وايي چې دا عطف په اعتبار د معنی د لارجمنک دی چې د هغه معنی دا ده فاحذرني واهجرني فاتفق المعطوف والمعطوف عليه انشا فانهم هداک الله لفهم دقائق القرآن.

قَالَ سَلَٰمٌ عَلَيْكَ ۖ

ابراهيم وپلار ته وويل سلام دی يعنې زما له جانبه، ولهذا اصح کون

المبتدأ يعني سلام نكرة كما في شرح الكافية للجامي قدس سره.

**پوه سه:** چي دې سلام ته سلام توديع او متاركة وايي، او ابراهيم عليه السلام مقابله د سيئه د پلار په حسنه وکړه لکه چي عادت دی د حليم په مقابل کي د سفيه كما قال الله تعالی "واذا خاطبهم الجاهلون قالوا سلاماً ای سلمت مني لا اصيبک بمکروه.

## سَأَسْتَغْفِرُ لَكَ رَبِّيٓ ۖ

ژر دی چي زه به طلب د بخښني وغواړم تالره زما د رب څخه.

**پوښتنه:** د مغفرت سوال و کافر ته خو نه دی روا، څرنگه ابراهيم عليه السلام خپل پلار ته دا خبره وکړه؟

**ځواب:** بعض مفسرين وايي چي سوال د مغفرت وکافر ته چي ژوندی وي روا ده. ددې سوال معنا داده چي تا ته دي خدای پاک توفيق د توحيد درکړي او د توبې له شرک څخه فيغفرلک وهذا مذهب اكثر المفسرين رح كروح البيان وروح المعاني وغيرهما. او چي كافر پر كفر مړ سي بيا سوال د مغفرت نه دی ورته روا. او بعض مفسرين وايي چي دا خبره د ابراهيم عليه السلام و پلار ته قبل النهي عن الاستغفار للمشركين كمايدل عليه قوله عليه الصلوة والسلام لعمه ابی طالب والله لاستغفرن لک مالم انه عنه فنزلت قوله تعالی ماكان للنبي والذين آمنوا ان يستغفروا للمشركين ولو كانوا اولی قربی الآية وقدمر في سورة التوبة. او بل دليل دادی كه ابراهيم له خدای جل جلاله څخه سوال د توفيق د ايمان د پلار لپاره کړی وای خدای به توفيق د ايمان ورکړی وای فان كل نبي مجاب الدعوة لكن لما كان ايمانه غير مقدر في تقديره تعالى في الازل لم يوفق الله ابراهيم لذالک السوال والله اعلم.

## إِنَّهُۥ كَانَ بِى حَفِيًّا ۝

په تحقيق خدای جل جلاله زما سره ډېر ښه او ډېر لطف كونكی دی. او كلبي رح وايي چي خدای عالم دی چي ما خواست ورته کړی دی هغه يې قبول کړی دی. او مجاهد رح وايي چي زه خدای عادت کړی يم په اجابت د دعا.

## وَأَعْتَزِلُكُمْ وَمَا تَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ

"واعتـزلكم" عطف دى پر "سأستغفر" او زه ستاسي څخه هجرت کوم په خپل دين سره "وماتدعون" عطف دى پر ضمير منصوب يعني کم. والمعنى اعتزل ماتعبدونه اى الاصنام "من دون الله" بيان لقوله "وماتدعون" اعتزال د ابراهيم عليه السلام د پلار او له قوم څخه دا وچي د کوثى من ارض بابل څخه يې هجرت و بيت المقدس ته وکړى كذا قال مقاتل رح.

## وَأَدْعُوا رَبِّي عَسَىٰ أَلَّا أَكُونَ بِدُعَاءِ رَبِّي شَقِيًّا

او زه عبادت کوم د خپل خداى، ښايي چي زه به نه يم په عبادت د رب زما ناکام او بدبخت يعني لکه تاسي چي په عبادت کي د بتانو بې برخي او بدبخته یاست.

**سوال:** د خداى جل جلاله عبادت خو بلا ريب سعادت دى، نو ابراهيم عليه السلام لفظ د عسى ولي ووايه؟

**ځواب:** لپاره د هضم نفس او تواضع يې ووايه. او بل تنبيه يې پر دې وکړ چي اجابت پر خداى جل جلاله واجب نه دى بلکي د خداى جل جلاله تفضل او احسان دى. او بل مدار د عباداتو پر خاتمه دى او خاتمه مستوره ده. مظهري رح.

## فَلَمَّا اعْتَزَلَهُمْ وَمَا يَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ

هغه وخت چي گوښه سو يعني ولاړى ابراهيم عليه السلام له قوم څخه او گوښه سو له بتانو څخه چي عبادت يې کاوه قوم دده من دون الله. بعض وايي بيت المقدس ته او بعض وايي شام ته. قال الفقير ولامنافات بينهما لقربهما.

## وَهَبْنَا لَهُ إِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ ۖ وَكُلًّا جَعَلْنَا نَبِيًّا

موږ ور کړى ده په عوض کي د کفارو قرة العين زوى اسحاق (يعني له همسري ساره څخه) او لمسى يعقوب بن اسحاق بن ابراهيم عليهم السلام. او دده قوم چي کافران وه عوض يې په نبيانو سره ورکړى کما قال الله تعالى. او هر يو د اسحق او يعقوب موږ گرځولي دي نبيان يعني په خپل وخت کي ولقد نعم العوض.

وَوَهَبْنَا لَهُم مِّن رَّحْمَتِنَا وَجَعَلْنَا لَهُمْ لِسَانَ صِدْقٍ عَلِيًّا ﴿٥٠﴾

او مونږ ورکړي دوی درو ته (ابراهيم، اسحٰق و يعقوب عليهم السلام) ته بعض رحمت زمونږ، کلبي رح وايي چي مراد اولاد کرام او اموال دي، بعض وايي کتاب او نبوت دی. بيضاوي وايي چي تخصيص د اسحٰق او يعقوب يې وکړی او سره ددې چي اسماعيل خو هم دده زوی ؤ؟ له دې کبله چي اسحٰق او يعقوب دوې درختي د انبياؤ دي يعني انبيأ ددې دوو په نسل کي ډېر دي، او ددې لپاره چي اسماعيل عليه السلام په سبب ددې چي سيد البشر صلى الله عليه وسلم دده له نسل څخه دی درلوونکی د ډېر فضيلت دی جلا يې ذکر کړی.

**پوه سه:** چي مراد له لسان څخه مايصدر من اللسان، والمراد کلام صدق چي تول ملل پر دوی ثنا وايي او هر دين ددوی د دين د متابعت دعوه کوي حتی مشرکان د مکې او اتباع ددوی فخر کوي، دا نتيجه د هغه خواست د ابراهيم عليه السلام ده "واجعل لي لسان صدق في الآخرين آه"

**پوه سه:** چي "لهم" ظرف مستقر دی ای کائنًا لهم مفعول ثاني د جعلنا دی او مفعول اول يې لسان دی، او عليًا حال د ضمير مرفوع دی چي مستکن في الظرف دی يعني لهم وقد مر ان الاستتار للضمير في الجار والمجرور اعتباري نحوي.

وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ مُوسَىٰ إِنَّهُ كَانَ مُخْلَصًا وَكَانَ رَسُولًا نَّبِيًّا ﴿٥١﴾

او بيان کړه په قرآن کي موسی، په تحقيق موسی ؤ مخلص، رسول او نبي ؤ.

**پوه سه:** چي قرأ د کوفې دا لفظ په فتح د لام وايي پر صيغه د اسم مفعول ای اخلصه الله لنفسه ونزهه عن التدنس بامور الدنيا والتوجه الی غيره، او نور قاريان يې په کسره د لام وايي پر صيغه د اسم فاعل ای اخلص موسی نفسه لله ونزه عبادته عن الشرک الخفي (اعني الريا) والجلي اعني عبادة الاوثان، او نبي ذو رتبة ؤ، ای ارسله الله الی الخلق يعني لوړ رتبه چي رسالت يې وده ته ورکړی ؤ ولهذا اقدم رسولاً علی نبيًا، وبنا علی کون الرسالة اخص من النبوة ولي چي رسالت دادی چي شريعت متجدد به لري که کتاب ورسره وي او که نه، او نبوت عام دی، نو انبيأ د بني اسرائيلو وروسته تر موسی عليه السلام انبيا وه او رسولان نه وه لعدم الشريعة

المتجددة لهم بل كانوا على دين موسى وشريعته والعمل بالتورات.

## وَنَادَيْنٰهُ مِنْ جَانِبِ الطُّوْرِ الْاَيْمَنِ وَقَرَّبْنٰهُ نَجِيًّا

او موږ ناره وکړه ورته له جانبه ښخه د طور. چې يو غر دی په منځ کې د مصر او د مدين چې ددې غره نوم زبير دی. دا ندا هغه وخت ده چې موسى عليه السلام له مدين ښخه چې د شعيب عليه السلام د قريبي نوم دی او اور يې وليدی. دی چې ورغلی "نودي يا موسى اني انا الله رب العالمين" "الايمن" صفت د "جانب" دی يعني دغه جانب پر راسته لاس د موسى عليه السلام و والا فلا ايمن ولا ايسر للجبل "وقربناه" موږ دی نږدې کړی وځان ته بلا کيف "نجيا" حال دی له ضمير منصوب ښخه د قربناه يعني مناجات کونکی د خدای ﷻ يعني چې خدای ﷻ په ده خپل کلام واوراوه. ولهذا اشتهر موسى بين الانبياء باسم كليم الله.

## وَوَهَبْنَا لَهٗ مِنْ رَّحْمَتِنَاۤ اَخَاهُ هٰرُوْنَ نَبِيًّا

او موږ ورکړی موسى عليه السلام ته چې ده خواست وکړی "واجعل لي وزيراً من اهلي هارون اخي الآية" "من رحمتنا" اى من رحمتنا عليه "اخاه" دا مفعول د وهبنا دی "هارون" عطف بيان دی د اخاه. هارون عليه السلام ډېر حليم شخصيت و او تر موسى عليه السلام دوه کاله مشر و "نبيا" حال دی له مفعول ښخه د "وهبنا" بغوي رح وايي له دې سببه هارون عليه السلام په هبت الله سره شهرت درلودی.

## وَاذْكُرْ فِى الْكِتٰبِ اِسْمٰعِيْلَ اِنَّهٗ كَانَ صَادِقَ الْوَعْدِ

او بيان کړه په قرآن اسماعيل بن ابراهيم جد النبي صلى الله عليه وعليهما وسلم يعني بالوسائط. په تحقيق و اسماعيل وفا کونکی په وعده سره. مجاهد رح وايي لم يعد شيئاً الا وفى به. او مقاتل رح وايي چې اسماعيل عليه السلام د يو سړي سره وعده کړې وه چې زه به دلته درته ولاړ يم تر څو چې ته راځې. هغه سړی چې ولاړی يا عذر ورپېښ سو يا يې د اسماعيل عليه السلام وعده هېره سوه. اسماعيل عليه السلام درې ورځې هورې تېرې کړې په سبب د وعدې. وروسته هغه سړی راغلی، او کلبي رح وايي يو کال اسماعيل عليه السلام هورې و وهذا نادر جداً لم يرد به حديث اصلاً.

تر دې لويه وفا پر وعده په ځېرې وې چې صبر پر ذبح يې وکړې. ولې چې ده و پلار ابراهيم عليه السلام ته ويلي وه "ستجدني ان شاء الله من الصابرين اى على الذبح".

## وَكَانَ رَسُولًا نَّبِيًّا

**سوال:** د مخه تېره سوه چې رسول هغه دی چې صاحب د نوي شريعت وي مع ان اولاد ابراهيم عليهم السلام كانوا على شريعة ابراهيم. بيضاوي وايي چې له دې آيت څخه دا معلومه سوه چې رسول شريعت متجدد نه غواړي.

**درويش وايي:** چې د بيضاوي پر دې ځواب دا سوال وارد ېږي چې په صحيح حديث كي راغلي دي چې له رسول الله ﷺ څخه چا پوښتنه وكړه "كم الانبياء"؟ انبيا څو دي؟ ده مبارک ورته وويل "مائة الف واربعة وعشرون الفًا" يو لک څلېرويشت زره، وفي رواية مائتا الف واربعة وعشرون الف" فقيل كم الرسل منهم؟ رسولان په دوی كي څو دي قال عليه الصلوة والسلام (۳۱۳) جمًا غفيرًا او كما قال عليه السلام. نو سوال دا دی چې كه په رسول كي شريعت متجدد شرط نه سي. نو تعداد د رسولانو ولي دومره كم سو، بل الصحيح في الجواب ان اسماعيل كان مبعوثًا الى جرهم والى العماليق والى قبائل اليمن في زمن ابيه ابراهيم عليهما السلام وتزوج اسماعيل ؑ فيهم وكان على شريعة ابيه ولم يكن له كتاب انزل اليه ولا شريعة متجددة باجماع العلماء وكذا لوط واسحق ويعقوب عليهم السلام وحاصل الجواب على ما في روح المعاني نقلاً ان المراد بكون الرسول صاحب شريعة ان يكون له شريعة بالنسبة الى المبعوث اليهم وان لم تكن متجددة واسماعيل ؑ كان كذالک لانه بعث الى جرهم والعماليق والى قبائل اليمن كما امر بشريعة ابيه ولم يبعث ابراهيم ؑ اليهم.

**درويش وايي:** چې له دې څخه دا معلومه سوه چې په رسول كي صرف رسول د شريعت شرط دی ومن بعث اليهم ته وان كان غير متجددة وهذا هو حل هذا المقام بقدر طاقة الفقير رحمه القدير والعلم عند الله العزيز العلام.

## وَكَانَ يَأْمُرُ أَهْلَهُ بِالصَّلَوٰةِ وَالزَّكَوٰةِ

او و اسماعيل ؑ امر كاوه يې خپل اهل يعني قريبان في النسب، دا شرعي مسئله ده چې مؤمن دي متوجه اوسي تر ټولو اول په تكميل سره د خپل ځان

بیا په تکمیل سره د احب الناس الیه ثم الی غیرهم. قال الله تعالی خطاباً للنبي ﷺ "وامر اهلک بالصلوة" ایة کریمه خطاباً للنبي ﷺ "وانذر عشیرتک الاقربین" کریمه "قوا انفسکم واهلیکم ناراً". ابن عباس ﷺ وایي چي مراد هغه لمونځ او زکوة دي چي پر موږ باندي فرض سوي دي چي ملة حنیفیة یې بولي او ملة ابراهیم یې هم بولي، کریمه "بل نتبع ملة ابراهیم حنیفاً.

**پوه سه:** چي تخصیص د صلوة او زکوة په ذکر سره وکړی لان الصلوة اهم العبادات البدنیة، والزکوة افضل العبادات المالیة.

## وَكَانَ عِندَ رَبِّهِۦ مَرۡضِيّٗا ۝٥٥

او و اسماعیل علیه السلام په نېز د خدای مرضیاً یعني خدای ﷻ څخه راضي دی په سبب د نبوت او رسالت او د سبب د ثبات پر طاعت د خدای ﷻ او استقامت دده په ټولو اعمالو کي علی الحق.

**فائده:** "مرضی" صیغه د اسم مفعول ده. په زرادي کي وایي چي اصل یې مرضوي، واو ویا بهم آمدند نخستین شان ساکن بود واو بیا بدل کردند ویا دریا ادغام نمودند. چناچه قانون صرفي است. پس از آن ضمه ضاد بکسره بدل نمودند بسبب استثقال فافهم.

## وَٱذۡكُرۡ فِي ٱلۡكِتَٰبِ إِدۡرِيسَۚ

او ذکر کړه خلګو ته په قرآن کي ادریس علیه السلام. مؤرخین وایي چي ادریس له اولاد څخه د شیث جد ابی نوح علیهم السلام و. نوم یې اخنوخ و. سمی ادریس لکثرة درسه الکتب. بیضاوي وایي چي د ادریس لفظ په استعمال کي غیر منصرف راځي للعلمیة والعجمة. او درس څو عربي لفظ دی، او څواب یې داسي ورکړی دی چي ددوی په لغت کي بل لفظ و چي معنی یې قریبه و ادریس ته وه، نو له دې سببه په عربي کي مشهور په ادریس سو، پر ده باندي خدای پاک څلوېښت صحیفي نازلي کړي وې همېشه به یې ده درس و خلګو ته کاوه، بغوي رح وایي چي ادریس اول من خط بالقلم و اول من خاط الثیاب ولبس المخیط او تر ده دمخه خلګو به د حیواناتو پوستکي اغوستل. او اول سړی چي

ــلاح یې جوړه ول او د کفارو سره به یې جنګ په کاوه.

إِنَّهُۥ كَانَ صِدِّيقًا نَّبِيًّا ﴿٥٦﴾ وَرَفَعْنَٰهُ مَكَانًا عَلِيًّا ﴿٥٧﴾

وو ادریس علیه السلام مبالغ په صدق کې په رشتیا ویلو کې یا په اخلاص درلودلو کې او نبي هم ؤ "ورفعناه آه" عطف دی پر "کان صدیقا" باندې. بعض مفسرین وایې چې له مکان څخه مراد رتبه ده درجةً رفيعةً بشرف النبوة والقرب من الله. او بعض وایې چې مراد جنت دی او بعض وایې چې مراد څلورم اسمان دی یا شپږم وهذا هو الاشهر په حدیث کې د معراج راغلي دي چې علیه الصلوة والسلام ولیدی آدم علیه السلام په اول اسمان کې. او یحیی او عیسی علیهما السلام په دویم اسمان کې او یوسف علیه السلام په دریم اسمان کې او ادریس علیه السلام په څلورم اسمان کې او هارون علیه السلام په پینځم اسمان کې او موسی علیه السلام په شپږم اسمان کې او ابراهیم علیه السلام په اووم اسمان کې.

**پوښتنه** ادریس علیه السلام چې اسمان ته پورته سو مړ دی او که ژوندی؟

**ځواب:** جمهور علماً وایې چې ژوندی دی وهو الصحیح. علماً وایې چې څلور کسه له نبیانو څخه ژوندي دي دوه په اسمان کې ادریس وعیسی علیهما السلام او دوه په ځمکه کې دي الیاس والخضر علیهما السلام علی تقدیر نبوته کما مر من الاختلاف في نبوة الخضر والله اعلم وعلمه اتقن واحکم.

**درویش وایي:** چې که په دې آیت رفع حسي مراد سي واسمان ته کما هو المشهور، نو د ادریس علیه السلام و اسمان ته سبب، روح المعاني، روح البیان، مظهري او حسیني په ډول ډول عباراتو بیان کړی دی لکن مآل یې تخمیناً یو دی. ددې واقعې راوي کعب بن مالک رضي الله عنه دی او نور راویان هم لري. فاسمع پښتو ژباړه، ادریس علیه السلام په یو کار پسې په سختې ګرمۍ کې روان ؤ. د لمر تېزۍ یې مخ او اندامونه ډېر تاوده کړه، نو یې د خدای جل جلاله سره مناجات وکړی یا رب زه یوه ورځ د لمر په وړانګو کې روان یم فاصابني ما اصابني نو به څه حال وي د هغې ملکي چې دا لمر راکشوي د پینځو سوو کالو په مسافت کې په هره ورځ اللهم خفف عنه یعني سپک کړې له هغې ملکي څخه من ثقلها وحرها. نو ملکي چې لمر ددې په

تصرف کي ؤ دا بل ورځ يې په ثقل او په تودوخي کي ډېره اساني وليدل چې تر اوسه يې نه وه ليدلې. نو خداى عزّوجلّ ته يې وويل يا رب خلقتني لحمل الشمس فما الذي قضيت؟ نن دا سپکوالى پر ما له څه سببه راغلى. خداى جلّ جلاله ورته وويل چې زما يو بنده ادريس په مځکه کي ستا په حق کي د تخفيف سوال وکړى ما يې خواست قبول کړى ملکي ورته وويل يا رب فاجمع بيني وبين هذا العبد. اې ربه زما او ده تر منځ خلت او دوستي پيدا کړې او ماته اجازه راکړه چي ورسم دغه ستا عبد ادريس ته. خداى جلّ جلاله اجازه ورکړه. هغه ملکه چي ادريس عليه السلام ته راغله او ځان يې ورته معرفي کړى. ادريس عليه السلام ورته وويل چي ما اسمان ته درسره بوزه. ملکي د خداى جلّ جلاله څخه اجازه وغوښتل خداى پاک اجازه ورکړه. نو ادريس عليه السلام ملکي و اسمان ته وخېژاوه پر خپل وزر.

**درويش وايي:** چي تر دې ځايه پوري پښتو ژباړه وه د عبارت د روح المعاني. لکن روح المعاني له ابن المنذر څخه په روايت ددمخه قصې ضد او نقيض روايت رانقل کړي دي. نو هغه درويش پر ښوول. د حسين کاشفي رحمه الله د روايت ژباړه د ما قبل ذکر سوي قصه خو حسين کاشفي هم کړې ده دا خبره يې تر ماقبل بالا کړې ده. ملکي ادريس عليه السلام مطلع الشمس ته ورساوه او ادريس ملکي ته وويل چي زما يو حاجت دى. دغه حاجت مي هم را اجرا کړه بيا به مي کور ته ورسوې. ته د عزرائيل عليه السلام څخه پوښتنه وکړه چي زما عمر څو دى. ملکه چي عزرائيل ته ورغله نام ونښان د ادريس عليه السلام يې ورته ووايه. عزرائيل په خپل کتاب اجال العباد کي وکتل ملکي ته يې وويل چي دغه سړى چي ته يې يادوې په مطلع الشمس کي يې روح قبض سوى دى. ملکه چي راغله (د حسين کاشفي رحمه الله د بلاغته ډک عبارت داسي دى چون آن فرشته باز آمد ادريس را يافت نقد جان بخازن اجل سپرده الى اخيره) وروسته هغې ملکې خداى جلّ جلاله ته خواست وکړى چي خدايه لکه د ادريس خواست چي دي زما په باره کي قبول کړى زما خواست هم ده په باره کي قبول کړه. ادريس راژوندى کړه چي زه يې مځکي او خپل ځاى ته ورسوم. خداى پاک ادريس عليه السلام ژوندى کړى ملکي ته

يې وويل چې زه خو مړ سوم د زګندن د پرې خوارۍ مي وليدلې، ملکې ته يې وويل چې يو حاجت مي پاته دی، ملکې ورته وويل کوم حاجت؟ ده ورته وويل چې يو وار دا جنت او دوږخ په ما وو وينه. ملکې اجازه وغوښتل خدای حکيم مطلق اجازه ورکړه، اول دوږخ ته يې ورووستی، ادريس عليه السلام ورته وويل چې خازن النار ته ووايه چې د دوږخ دروازه خلاصه کړي چې زه يو وار ور ننوځم (يعني بلا تعذيب النار) ملکې خازن النار ته وويل هغه دروازه د دوږخ ورخلاصه کړه دی لږ ګړی ور ننوتی بيرته راووتی ملکې ته يې وويل چې د جنت سيل هم راباندي وکړه. ملکې د جنت دربان ته خواست وکړی هغې د جنت دروازه ورخلاصه کړه، ادريس عليه السلام جنت ته داخل سو، ملکې يو ګړی ورووسته ورته وويل چې راووزه چې ځو مځکې ته، ادريس عليه السلام په يوه درخته پوري لاسونه ټينګ کړه او له وتلو څخه يې انکار وکړی، تر دې ځايه پوري وه د کاشفي د عبارت پښتو ترجمه، اوس د مظهري د عبارت پښتو ترجمه واورئ، د ادريس عليه السلام او د ملکې تر منځ چې اختلاف پيدا سو خدای پاک بله ملکه ورواستول ددوی د محکمې لپاره، محکم ملکې و ادريس عليه السلام ته وويل چې ته ولې له جنته نه وځې؟ ادريس عليه السلام ورته وويل چې خدای پاک ويلي دي "کل نفس ذائقة الموت" ما د مرګ خوند وکتی چې مړ سوم، او بيا خدای پاک د دوږخ په باره کې وايي "وان منکم الا واردها (ای جهنم) زه هم دوږخ ته وارد سوم او د جنت په باره کې وايي "وماهم بخارجين منها" (ای من الجنة) نو زه هم له جنته نه وځم خدای جل جلاله ملکې ته ووايي چې زما په اجازه دی جنت ته داخل سوی دی پريږدئ، فهو حي هناک فذالک قوله تعالی ورفعنا مکاناً علياً.

**درويش وايي:** چې روح البيان هم د کاشفي روايت راوړی دی فقط، نو دده مختاره هم دغه روايت دی.

**تنبيه:** د غو تولو ناموړو تفاسيرو اول د قصې خو يې د ملکې د لمر حافظه راوړی ده په منځ کې يې د ملک الموت قصه راوړې ده يعني چې دا تولـه اختلافات يې د ادريس عليه السلام او د ملک الموت تر منځ بللي دي فقير قصه منظمه

كړي ده لـه اول څخـه تر اخيره پوري تاچي مطالعـه كـونكي د تفسير ايوبي پـه تشويش كي واقع نه سي. اصلاً خو خداى ﷻ د ادريس عليه السلام لپاره مكاناً علياً منظور و. دا تنبيـه فقير ددې لپـاره راوړه كـه حاسدان يـو لـه دغـو مذكوره تفاسيرو څخه مطالعه كړي، نو به وايي چي عبيد الله پـه دې كي خطاوتلى دى. ولي چي د عزرائيل عليه السلام قصه يې پـه تفسير كي نـه ده راوړې، ما تولـه تفاسير مذكوره وغيرها مطالعه كړه صرف د دفع د تشويش مي هغه قصه رانه وړه.

**أُولَٰئِكَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِم مِّنَ النَّبِيِّينَ مِن ذُرِّيَّةِ آدَمَ**

دغه كسان چي پـه دې سورت كي ذكر سوه (لـه زكريا څخه نيولې بيا تر ادريس عليه السلام پوري) هغه كسان دي چي خداى ﷻ انعام كړى ورپر دوى باندي په دنيوي نعمتو او په ديني نعمتو سره، كلمه د "من" بيان دى د موصول چي "الذين" دى حال دى له ضمير څخه د "عليهم" "من ذرية آدم" دا لفظ بدل دى له "من النبيين" څخه باعادة الجار.

**وَمِمَّنْ حَمَلْنَا مَعَ نُوحٍ وَمِن ذُرِّيَّةِ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْرَائِيلَ**

او له اولاد څخه د نوح عليه السلام چي آدم ثاني د انسان د نوع دى يعني پـه كښتۍ كي. او له اولاد څخه د ابراهيم عليه السلام دى چي هغه له نسل څخه د سام بن نوح و "واسرائيل" عطف دى پر "ابراهيم" چي نوم يې يعقوب و د اسرائيل له اولاد څخه موسى، هارون، زكريا، يحيى او عيسى عليهم السلام وه، لـه دې آيت څخه دا معلومـه سوه چي اولاد د البنات هم ذريه بولي لان عيسى من اولاد البنت يعني مريم عليها السلام.

**وَمِمَّنْ هَدَيْنَا وَاجْتَبَيْنَا ۚ إِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُ الرَّحْمَٰنِ خَرُّوا سُجَّدًا وَبُكِيًّا ۩**

يعني له جمله څخه د هغو كسانو چي موږ و هغـو تـه هدايت كړى وحق تـه چي توحيد دى او ايمان پر حيوة بعد الموت دى وغير ذالک من العقائد الحقة والاعمال الصالحة والاخلاق الحميدة، او موږ دوى مختاره كړي وه پـه خلگو كي لپاره د نبوت او كرامت او هدايت، چي تلاوت وكړل سي پر دوى، دوى پريوزي پر سجده جمع د ساجد ده لپاره د رغبت پـه اياتو كي د رحمن، "بكيا"

جمع د باک ده یعني ژاړي له جهته څخه د خوف له خدایه څخه مع علو رتبتهم چي هم شرب النسب و کمال الانفس، والقرب الی الله ﷻ لري.

**درویش وایي**: چي هر څو چي خدای ﷻ ته نژدې کېږي خوف ورسره زیاتېږي.

# فَخَلَفَ مِنۢ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ أَضَاعُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ

یعني تر دغو انبیاء علیهم السلام وروسته پیدا سوه په ځای کي ددوی اولاد سوء، چي پرې ایښي یې دي فرضي لمونځونه، او ابن مسعود رضي الله عنه وایي چي تر وخت مندوب یې ځنډول، او سعید بن المسیب رح وایي چي د ماپښین لمونځ به یې د مازدیګر په وخت کي کاوه د مازدیګر لمونځ به یې د غروب الشمس په وخت کي کاوه وهکذا.

**بوه سه**: چي خلف په فتح اللام صالح اولاد ته وایي او خلف په سکون د لام ناصالح ته وایي کما ههنا

**مسئله**: اضاعة د لمانځه دا هم دی چي پر وجه مکروه یې ادا کړي تعدیل الارکان نه کوي، نور سنن د لمانځه او اداب د لمانځه نه پر ځای کوي کما في العصر الحاضر في بعض العوام.

# وَٱتَّبَعُوا۟ ٱلشَّهَوَٰتِ ۖ فَسَوْفَ يَلْقَوْنَ غَيًّا

یعني طلب د شهوات یې پر طلب د طاعت د خدای ﷻ دمخه کاوه او نور معاصي چي ددوی نفس اماره به غوښتلې هغه به یې کولې، ژر دی چي دوی به واقع سي په "غيًّا" کي، والمعنی في قول البغوي رح ویاله ده په جهنم کي بعید قعره خبیث طبعه. ابن عباس رضي الله عنهما وایي چي "غي" یوه شېله ده په جهنم کي چي نوري شېلې یې له ګرمی څخه پناه غواړي چي دا شېله ځای ددغو کسانو ده زاني چي پر زنا مصر وي، شارب الخمر چي عادت یې ګرځېدلی وي، سود خور چي سود نه پرېږدي او عاق د مور یا د پلار یا د استاذ او لپاره د شاهد په دروغو سره، روح البیان د "غي" تفسیر په شر سره کړی دی، دی وایي چي هر شر په نېز د عربو غي دی او هر خیر رشاد دی، ضحاک رح یې تفسیر په خسران سره کړی

دی. او بعضو يې تفسير په هلاک سره کړی دی. وقيل عذاباً.

**درویش وايي:** چې دا ټولـه تفاسير وشر ته راجع دي. او بعض مفسرين د غي معنی ضلال بولي او په عبارت قرآني کي مضاف محذوف بولي ای جزا غي وضلال. کان عليه في الدنيا من العقائد الباطلة والاعمال الخبيثة. او بعض مفسرين وايي چې غي ورکېدلو ته د لاري وايي چې په عربي يې ضلال بولي چې ضد د هدايت دی. نو معنی د يلقون غياً داده چې لار د جنت به ځندي ورکه سي. او په صحيح حديث کي چې روايت يې طبراني او بيهقي کړی دی راغلي دي چې رسول الله ﷺ وويل که يوه لويه ډبره چې وزن يې لس وقيه وي د جهنم له غاړي څخه دوږخ ته وغورځول سي. ور وه به رسېږي ببېخ ته په اوويا کاله کي. وروسته به غي او اثام ته ورسېږي. عليه الصلوة والسلام د يو سړي د پوښتني په ځواب کي وويل چې هغه ورته وويل "ماغي و اثام"؟ عليه الصلوة والسلام وويل چې هغه دوې ويالې دي په دوږخ چې توونه د لوړو دوږخيانو ورتو يېږي "وهما الذان ذکرهما الله تعالى في کتابه فسوف يلقون غياً. ومن يفعل ذالک يلق اثاماً".

# إِلَّا مَنْ تَابَ وَءَامَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا

مگر هغه څوک چې له اتباع څخه د شهواتو او له ترک الصلوة څخه توبه وکاږي او ايمان راوړي بعد ما کان کافراً او عمل صالح کوي.

**يوه سه:** چې عمل صالح هر هغه عمل ته وايي چې ايمان او دين يې مقتضي وي بدنياً کان او مالياً او مرکباً منهما کالحج.

# فَأُولَٰٓئِكَ يَدْخُلُونَ ٱلْجَنَّةَ وَلَا يُظْلَمُونَ شَيْـًٔا ۝

دغه کسان چې توبه وکاږي او ايمان راوړي او عمل صالح کوي. داخلېږي به جنت ته چې موعود د خدای ﷻ دی د دغسي کسانو لپاره او دوی ته به نه ورکمول کېږي يو شی له جزا څخه د اعمالو ددوی. نو پر دې ترجمه شيئاً منصوب دی پر دې بنا چې مفعول به دی. يا معنی د آيت داده لا يظلمون شيئاً من الظلم" نو

مفعول مطلق دی . ددې آیت مطلب دادی چې هغه سابق یا ګنهونه وروسته تر توبې دوی ته تاوان نه رسوي ، قال علیه الصلوة والسلام الاسلام یهدم ماکان قبله رواه مسلم ، وقال ایضاً التائب من الذنب کمن لاذنب له رواه اصحاب السنن.

## جَنّٰتِ عَدۡنٍ

**پوه سه:** چې "جنات عدن" چې په صیغه د جمع راغلي دي، نو عدن په معنی د اقامت دی چې ټولو جنتو ته شامل دی، نو دا بدل یا عطف بیان دی د الجنة روح البیان وایي چې دا معنی انسب ده په دې ځای کې ، ولې چې جنت عدن چې د یو مخصوص جنت نوم دی او دغه رنګه جنت الفردوس ځای د مقربو بندګانو دی لایدخلهما العوام بالاصالة.

**درویش وایي:** چې جنت عدن په معنی علمي مفرد راځي او په معنی جنسي یعنې دار الاقامة جمع راځي ، نو دلته چونکه جمع راغلی نو معنی جنسي ځندي مراد ده وهذا هو الدلیل اللفظي علی ارادة المعنی الجنسي ، او هغه چې روح البیان وویل هغه قرینه معنوي ده پر اراده د معنی جنسي فتدبر.

## الَّتِیۡ وَعَدَ الرَّحۡمٰنُ عِبَادَهٗ بِالۡغَیۡبِ

چې وعده کړې ده رحمن د بندګانو سره.

**پوه سه:** چې دا آیت بله قرینه د ارادې د معنی جنسي له جنت څخه ، ولې چې جنت عدن په معنی علمي موعود د خدای ﷻ نه دی د ټولو بندګانو سره بلکې هغه موعود د مقربانو دی.

**فائده:** عائد و موصول ته چې التي دی محذوف دی تقدیره وعد الرحمن بها.

**سوال:** جنت عدن په معنی جنسي خو نکره دی ولې مضاف الیه یې نکره دی ، نو التي چې معرفه دی څرنګه یې صفت کیدای سي؟

**ځواب:** التي صفت د جنت عدن نه دی بلکې د الجنة چې معرفه دی صفت دی یا التي آه بدل دی له جنات عدن څخه ، یا مرفوع محلاً دی خبر د مبتدا محذوفي دی ای هي التي آه.

**درويش وايي:** چي ترديد د بعض مفسرينو په "جنات عدن" په مابين كي د معنى علمي او د جنسي ليس بشئ لما سمعت ان المعنى العلمي يورد بلفظ مفرد وههنا ورد لفظ الجمع والله اعلم "بالغيب" حال دى له "عباده" څخه اى متلبسين بالغيب اى غائبين عنها في الحيوة الدنيا، او يا حال دى له الجنة څخه اى متلبسة الجنة بالغيب اى غائبة عنهم.

## إِنَّهُۥ كَانَ وَعْدُهُۥ مَأْتِيًّا ﴿٦١﴾

"انه" اى الله تعالى "كان وعده" مصدر دى په معنى د مفعول دى اى موعوده وهو الجنة "ماتيا" اى يأتيه من وعدله لامحالة لان الخلف في وعده تعالى محال عقلاً ونقلاً فالماتي بمعنى المفعول، او دا احتمال هم مظهريؒ بيان كړى دى چي صيغه د مفعول دي په معنى د فاعل وي يعني آتيا لان كل شئ اتاک فقد اتيته ولي چي ددې دوو خبرو په معنى كي فرق نسته قوله "اتى علي خمسون سنة" وقوله اتيت علي خمسين سنة فتامل هداک الله عزوجل.

## لَّا يَسْمَعُونَ فِيهَا لَغْوًا إِلَّا سَلَٰمًا

نه به اوري جنتيان په جنت كي فضول خبري يعني بې فائدې لكه په دنيا كي، دا جمله مستانفه ده لپاره د بيان حال د جنت "الا سلاما" منقطع ده ولي چي سلام خو په لغوه خبرو كي نه وي داخل، والمعنى لكن يسمعون تسليماً من الله تعالى كريمه "سلام قولاً من رب رحيم ومن الملائكة، كريمه "سلام عليكم فادخلوها خالدين، او من بعضهم على بعض" كريمه "تحيتهم بينهم سلام" نو پر هر تقدير سلام اسم مصدر بمعنى التسليم كسبحان بمعنى التسبيح.

## وَلَهُمْ رِزْقُهُمْ فِيهَا بُكْرَةً وَعَشِيًّا ﴿٦٢﴾

او دوى لره دى رزق ددوى اى مرزوقهم په اول كي د ورځي او په اخير كي د ورځي، قال الحسن البصريؒ چي عرب عيش افضل تر رزق بكرةً وعشياً نه پېژندى، نو خداى ﷻ توصيف د جنت په هغه سره وكړى، او بعض مفسرين وايي چي مقصود په دې وصف فراخي د رزق ده، لان المعمول عند اغلب الناس

الاكل بكرة وعشيا . او له ابن عباس رضي الله عنهما څخه په صحيح سند منقول ده چي جنتيانو ته په جنت كي پر مقدار د ماكانوا يؤتون في الدنيا رزق راوړل كيږي. له زهير بن محمد رح څخه وليد بن مسلم رح ددې ايت د معنی پوښتنه وکړه. هغه ورته وويل ليس في الجنة ليل هم نوراً ابداً. دوی مقدار د ورځې د دنيا په دې سره پيژني چي حجابونه يعني پردې پورته سي او مقدار د شپې د دنيا په ايله کولو سره د پردو پيژني. امام همام فخر الدين الرازي رح په تفسير كبير كي وايي، چي د سوال او ځواب په ډول داسي دی.

**سوال**: مقصود خو دلته توصيف د جنت دی په لوی او ډېرو نعمتو سره او سره ددې چي رزق بكرةً وعشياً خو عادي شی په دنيا كي هم ؤ؟

**ځواب**: خدای پاک ترغيب وجنت ته د هر قوم په هغه شي کوي چي دوی ته مرغوب في الدنيا وي او د عربو مرغوب ترين عيش خوراک ؤ بكرةً وعشياً كذا قال الحسن البصري رح انتهى.

**درويش وايي**: چي كه له دې آيت څخه مراد د رزق فراخي وي في الجنة في كل حين وآن فلا سوال ولا جواب فافهم وقد مر الاشارة الى ذالك.

تِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِي نُورِثُ مِنْ عِبَادِنَا مَنْ كَانَ تَقِيًّا ﴿٦٣﴾

"تلك الجنة التي نورث" بحذف العائد الى الموصول اى نورثها" دا جنت هغه دی چي موږ يې په ميراث ورکوو د خپلو بندګانو و هغه چاته چي په دنيا كي له خدای جل جلاله څخه بيريږي يعني له عذاب څخه د ورځي د قيامت. نو د هغې په سبب يې له كفره توبه كښلې وي او اوامر د خدای جل جلاله يې پر ځای كړي وي او له منهياتو څخه يې اجتناب كړی وي.

**پوښتنه**: پر جنت د ميراث إطلاق څرنګه وسو؟

**ځواب**: لكه په دنيا كي چي يو سړی مړ سي، نو مال يې وارث ته وركول كيږي په سبب د قرابت كما ثبت في علم الميراث، دغه رنګه جنت د قرب الهي په دنيا كي. نو ځكه يې ميراث وباله. او يا يې له دې سببه اطلاق د ميراث پر وكړی چي اقوى له اسبابو څخه د تمليک او استحقاق په دنيا كي ميراث دی چي

نه فسخ کېږي او نه رجوع پکښې کېږي او نه په رد د وارث رد ېږي، او نه اسقاط قبلوي دغه جنت د عباد الله ځکه نه بیرته اخستل کېږي او نه په رد د عباد الله فرضاً رد ېږي، او نه عقد او وعده د خدای ﷻ د جنت د عباد الله سره فسخ کېږي. او بعض مفسرین وايي چې متقينو ته هغه ځايونه په جنت کې چې د کافرانو وه يعني که دوی ايمان راوړی وای په ميراث ورکول کېږي زيادةً على كرامتهم ويؤيد هذا التفسير الحديث الذي اخرجه ابن ماجة والبيهقي بسند صحيح عن ابي هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ مامنكم من احد الا وله منزلان منزل في الجنة ومنزلاً في النار (اى على تقديري الكفر والايمان) فاذا مات فدخل النار (اى كافر) ورث اهل الجنة منزله فذالك قوله تعالى "اولئک هم الوارثون (اشاره و جنتيانو ته ده) امام بخاري له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت کړی دی چې رسول الله ﷺ و جبرئيل عليه السلام ته وويل چې تاته څه مانع دی چې ته ملاقات ته زما نه راځې اکثر تر دې چې ته ملاقات ته راځې؟ فنزلت هذه الآية.

## وَمَا نَتَنَزَّلُ إِلَّا بِأَمْرِ رَبِّكَ

وتقدير الجواب قل يا جبرئيل لمحمد ﷺ وما نتنزل آه.

**پوه سه**: چې تنزل له بابه د تفعل دی نزول بالمهلة ته وايي. ولې باب د تفعل مطاوع دی باب د تفعيل، دا باب لپاره د نزول بالمهلة دی او ګاهې تنزل په معنی د مطلق نزول هم راځي لکه نزل چې په معنی د انزل راځي "الا بامر ربک" مګر په امر د رب ستا. يعني زه يې اختيار نه لرم. ابن ابي حاتم له عکرمه څخه روايت کړی دی چې جبرئيل تاخير وکړی په راتلو کې د څلو ښتو ورځو، نو عليه الصلوة والسلام هغه پوښتنه ځندي وکړه جبرئيل عليه السلام هغه مذکور جواب ورکړی. ابو نعيم په خپل کتاب "دلائل" کې داسې شان نزول په روايت د ابن عباس رضي الله عنهما راوړی دی چې قريش چې په ښوونه د يهودانو د مدينې و عليه الصلوة والسلام ته د اصحاب کهف د قصې او د ذوالقرنين د واقعاتو او د روح په باره کې پوښتنه وکړه، عليه الصلوة والسلام ته علم نه ؤ پر ځواب او اميد يې ددې درلود چې وحي به راسي، نو کفارو ته د قريشو يې وعده د صبا ورځې

ورکړه، نو پينځلس ورځي او بعض راويانو بالا تر پينځلس ورځو روايت کړي دي حتى تر څلويښتو ورځو پوري وحي وځنډېدلې وقد مر هذه القصة بالتفصيل في تفسير سورة الكهف وروسته تر مدة مذكورې چې جبرئيل نازل سو عليه الصلوة والسلام ورته وويل ابطأت يعني تاخير دي وکړی په راتلو کي فنزل هذه الآية. بغوي، ضحاک، عکرمه، مقاتل او کلبي عليهم السلام وايي چې جبرئيل عليه السلام بند سو او د عليه الصلوة والسلام آمد ورفت يې قطع کړی هغه وخت چي قريشو په باره کي د اصحاب کهف او ذوالقرنين او روح پوښتنه د عليه الصلوة والسلام څخه وکړه، عليه الصلوة والسلام ورته وويل اخبركم غداً يعني په طمع ددې چي د شپې به جبرئيل راسي ماته به وحي ددې درو پوښتنو ځوابونه راوړي، لكن ان شأ الله يې ونه ويل.

**درويش وايي:** چي ان شأ الله له ډېري خوشاليه د عليه الصلوة والسلام څخه هېره سوه، وجه د خوشالۍ يې دا وه چي د قريشو رئيسانو دده سره وعده کړې وه چي که تا موږ ته دا درې ځوابونه راکړه موږ کلمه وايو او ستا متابعت ته غاړه ايږدو، خير خلګ وايي چي پر سپينه جامه لږ خيره هم معلومېږي، صبا چي قريش ورته راغله عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي ماته تر اوسه اسماني خبر نه دی راغلی او د قريشو هره ورځ تګ او راتګ جريان درلودی حتى چي قريشو به ويل ان محمداً قد ودعه ربه وقلاه حتى چي د ابو لهب مايېنه ام جميل هم د عليه الصلوة والسلام کور ته ورغله او داسي يې ورته وويل ما ارى شيطانك الا قد ترک، ددې له شيطان څخه جبرئيل مراد دی، پر عليه الصلوة والسلام دا نه راتګ د جبرئيل او د مشرکانو خبري د ډېر مشقت سبب وګرځېدلې ثم نزل جبرئيل بعد ايام، شاه عبد العزيز محدث دهلوي رحمه الله په تفسير عزيزي کي وايي چي له پينځلسو څخه بيا تر څلويښتو ورځو پوري روايتونه راغلي دي. عليه الصلوة والسلام جبرئيل عليه السلام ته وويل ډېر وځنډېدې حتى ساځنى (يعني چي بيا لکه چي نه راځې) او زه ډېر تا ته مشتاق وم لكن زه عبد مأمور يم اذا بعث اتيت واذا احتسبت احتسبت فانزل الله هذه الآية او سورة والضحى هم نازل سو په

رد کي د قول د مشركانو ان محمداً قد ودعه آه، او د قريشو د هغو درو سوالو ځوابونه بالتفصيل نازل سوه كمامرت في سورة الكهف.

لَهُۥ مَا بَيْنَ أَيْدِينَا وَمَا خَلْفَنَا

د خدای ﷻ په تصرف کي دي هغه حالات چي زمونږ په مخ کي دي يعني له دي وخته څخه وروسته الى قيام الساعة بل الى مالانهاية له من امور الدنيا والآخرة والثواب والعقاب.

**پوه سه:** چي جمله د "له" مابين آه په محل کي د نصب ده علت د ځنډ پدلو د راتګ د جبرئيل عليه السلام "وما خلفنا" عطف دی پر "مابين ايدينا" يعني چي تر دې وخت دمخه ماضي حالات او شيان دي، حاصل دادی چي ټوله امور مستقبله او ماضيه د خدای ﷻ په علم او تصرف کي دي چي يو په هغو کي زما راتګ او نه راتګ دی.

وَمَا بَيْنَ ذَٰلِكَ ۚ وَمَا كَانَ رَبُّكَ نَسِيًّا ﴿٦٤﴾

يعني په منځ کي د ماضي او مستقبل چي مراد ځنډي حالات حاضره دي ولي زمانه درې قسمه ده ماضي، حال او مستقبل، او مظهري وايي چي د مابين ذالک څخه مراد کُره د هوا "وماكان آه" او نه دی رب ستا هېرونکی يعني تارک ستا لان حقيقة النسيان محال على الله، يعني زما عدم نزول يې سبب د ترک د خدای ﷻ تا لره نه ده كما زعمت الكفرة بلکې عدم الامر بالنزول لحكمة علمها في عدم امر النزول مدة يسيرة فافهم.

**سوال:** ذالک مفرد دی او اشاره و دوو شيانو ته ده يعني مابين ايدينا وما خلفنا؟

**ځواب:** افراد د اسم اشاره په تأويل د مذكور دي.

رَّبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا فَٱعْبُدْهُ وَٱصْطَبِرْ لِعِبَٰدَتِهِۦ ۚ

"رب السموات والارض ومابينهما" خبر د مبتدا محذوفي دی ای هو رب آه مالک او خالق دی خدای ﷻ د اسمانو او د ځمکي او د مابين د اسمان او د ځمکي من كرة الهوا او چي په دې کره کي پيداکيږي من المطر والثلج والبرق والرعد وغيرهما "فاعبده آ" الخطاب للنبي ﷺ پر ماقبل تفريع ده يعني لما عرفت رحمة ربک عليک وفضله وانه لاينبغي ان ينساک، نو د خدای ﷻ و عبادت ته مخ

راوړوه شکراً لنعمة علیک، او پر عبادت د خدای ﷻ صبر وکړه او تشویش مه کوه په ځنډ پدلو کې د وحي یعني لحکمة او د کفارو په استهزا کې.

**سوال:** د صبر صله خو په عباداتو کې کلمه د علی دلته په دې آیت یې صله لام راوړی حکمت یې څه دی؟

**جواب:** د عمومي خلکو په باره کې خو صله د عبادت علی دی چې اشعار پر مشقت د عبادت کوي پر دوی باندې او علیه الصلوة والسلام خو په عبادت کې د خدای ﷻ لذت روحي او قلبي محسوساوه. نو ځکه یې صله لام راوړه کما یدل علیه قوله علیه الصلوة والسلام جعلت قرة عیني في الصلوة زما د سترګو خونکتیا چې کنایه له راحت څخه ده په لمانځه کې ګرځول سوې ده.

هَلْ تَعْلَمُ لَهُ سَمِيًّا ۝

ابن عباس رضي الله عنهما وایي چې ته خبر یې په مثل د خدای ﷻ په استحقاق کې د عبادت حتی چې نوم د اله پر کېښېښول سي، والاستفهام للانکار یعني لاتعلم ذالک لکونه محالاً. او کلبي رحمه الله وایي چې تاته معلوم یو څوک چې د الله نوم پر ایښی وي غیر الله څخه. ولې چې مشرکینو که څه هم خپل بتان الهه بلل لکن د الله نوم دوی پر یوه بت هم نه دی ایښی اصلاً.

**حکایت:** په قندهار کې د ملا عالم په ګلي کې یو پښه ال ؤ چې زوی یې زو کړی ؤ ماته یې وویل چې یو ښه کتابي نوم راوښیه چې زه یې پر زوی کېښېږدم. ما ورته وویل چې ستا چې خوښ وي یو نوم ماته یې ووایه که د شریعت سره برابر ؤ زه به درته ووایم چې ښه نوم دی او که نه ؤ برابر هم درته وایم. ده راته وویل چې ما ډېره زمانه په ښه نامه کې فکر وهلی دی چې که خدای ﷻ زوی درکړی دغه نوم به پر ایږدې، ما ورته وویل چې هغه کوم نوم دی؟ ده راته وویل الله محمد. ما ورته وویل چې څرنګه ناپوه انسان یې چې د محمد چې د علیه الصلوة والسلام نوم مبارک ؤ کفایت دې ونه کړی بلکې لفظ الله دې هم ورجوت کړی، ما ورته وویل چې د الله نوم مشرکانو د مکې چې خپل بتان یې الهه هم بلل لکن د الله په نامه یې یو بت مسمی نه کړی ته یې پر خپل زوی ایږدې.

**درويش وايي**: وحق القول بان العوام كالانعام بل هم اضل. حسين كاشفي رح وايي يكى از اثار سطوت الهى آن بود كه هيچ كس از اهل شرك معبود خود را الله نگفته اند عزت احديت وغيرت الوهيت اين اسم سامى را از تصرف كفار وتسميه ايشان درحصن حصين امان محفوظ است وزبان اهل ايمان را درنعمت ومحنت وسرا وضرا بتكرار آن نام نامى جارى ساخت:

الله الله چه طرفه نام است اين ...... حرز دل ورد جان تمامست اين

بس بود نزد صاحب معنى ...... حسبى الله گواه اين معنى

فرعون انا ربكم الاعلى و قبط ته وايه، ولم يقدر ان يقول انا الله.

**پوه سه**: چي هغه اسم چي اختصاص ذاتي او استعمالي لري لكه "الله" يا په خداى پوري اختصاص استعمالي لري لكه "الرحمن" د بل چا تسميه نه ده په روا كذا قال المولى الفناري.

**وَيَقُولُ الْإِنسَانُ أَءِذَا مَا مِتُّ لَسَوْفَ أُخْرَجُ حَيًّا ﴿٦٦﴾**

او وايي انسان ("الف ولام لپاره د جنس دى" كه څه هم قائل ددې قول بعض د كفارو د مكې وه لكن قول دبعض اسناد يې وجنس ته روا دى يا بعض معهود نفر مراد دي، بغوي رح وايي چي مراد له انسان څخه ابي بن خلف الجمعي دى چي له بعث بعد الموت څخه منكر و، په يوه روايت كي راغلي دي چي د: يو وخت يو زوړ هډوكى راواخستى او د خلكو په مخ كي يې توتې توتې كړى او وه يې ويل ان محمداً يزعم انا نبعث بعد الموت. فحكى الله تعالى قوله حيث قال) "اذا مامت لسوف اخرج حيا" آيا چي زه مړ سم (يعني هډوكي مي وراسته او بوسيده سي كما يدل عليه قول ابي خلف كما نقلناه من البغوي) نو ژر دى چي زه به بيرته راوويستل سم له خاورو څخه يعني دا حال امكان نه لري.

**پوه سه**: چي كلمه د "اذ" ظرف ده او همزه لپاره د انكار دى.

**پوښتنه**: ولي ظرف دمخه سو او د همزه سره انكار متصل سو؟

**ځواب**: لكون المنكر عند ابي بن خلف واضرابه هو الموت بعد الحيوة او عامل د ظرف چي اذ دى فعل محذوف دى دل عليه اخرج وهو البعث اخرج يې

عامل نسي کېدای لأن القانون ان مابعد اللام لایعمل في ماقبله لصداتها او کلمه د لام په لسوف کي دلته لپاره د مجرد تاکید د همزة الانکار که څه هم په اصل کي لپاره د زمان حال ده نو هم ددې سببه اقتران د لام په سوف سره صحیح دی که څه هم سوف لپاره د استقبال دی هذا ما ذکره صاحب روح البیان وروح المعاني ونقل المظهري بعض ذالک فافهم.

اَوَلَا یَذْكُرُ الْاِنْسَانُ اَنَّا خَلَقْنٰهُ مِنْ قَبْلُ وَلَمْ یَكُ شَیْـًٔا ﴿۶۷﴾

آیا په یاد نه دی د انسان (عطف دی پر یقول) چي موږ پیدا کړی دی دمخه تر مرگ او دی هیڅ شی نه ؤ.

**درویش وایي:** چي په دې سره مشرکین د مکې هم معترف او اقرار وه چي موږ هیڅ شی نه ؤ خدای پیدا کړو، نو چي دا دوی منی نو ایجاد د بعد العدم البحت ای الخالص خو اعجب دی تر جمع د هډوکو او د خاورو دده اعضاً، نو دا انسان بعث بعد الموت ولي نه مني.

فَوَرَبِّكَ لَنَحْشُرَنَّهُمْ وَالشَّیٰطِیْنَ ثُمَّ لَنُحْضِرَنَّهُمْ حَوْلَ جَهَنَّمَ جِثِیًّا ﴿۶۸﴾

ستا په خدای مي دې قسم وي یا محمد (ﷺ) موږ به حشر کړو دوی سره د شیطانانو، نو شیطان مفعول معه دی، بغوي رح وایي چي هر کافر به د شیطان سره په یوه ځینځیر تړلی دوږخ ته داخلېږي، بیا به حاضر کړو دوی سره د شیطانانو پر شاوخوا د دوږخ.

**یوه سه:** چي خدای جل جلاله قسم په خپل ذات کریمه سره وکړی او مضاف یې کړی ؤ نبي علیه السلام ته لپاره د تعظیم د شان د نبي علیه السلام، او کلمه د فأ سببیه ده یعني انکار ددوی له بعث بعد الموت څخه چي په اغوا د شیطان یې کړې وه سبب ددې وگرځېدل چي دوی او شیطان به یو ځای دوږخ ته ورځي.

**یوه سه:** چي "جثیاً" حال دی له ضمیر څخه د مفعول، ابن عباس رضي الله عنهما وایي جماعات او جثیا جمع د جثوة ده په معنی د جماعت، او حسن بصري او ضحاک رح وایي چي د جاث معنی یعني پر زنگنو به دوږخ ته لوېږي، او سدي رح

وايي چي پر زنګنو به ولاړ وي، ولې چې ځاى تنګ وي. بعض مفسرين وايي چي مؤمنان او كافران يعني السعدا چي مؤمنان او اشقيا چي كافران دي پر شاوخوا د دوزخ به ټول خداى پاک جمع كړي، مؤمنان ددې لپاره چې ددوى سره به سرور او خوشالي د پره سي چي دوزخ يې په وليدى او نجات يې ځندى وركړى او د كافرانو به حسرت او غم او ندم د پر سي چي مؤمنان ددوى څخه دار الثواب جنت ته ولاړه.

**فائده:** كلمه د "ثم" يې ددې لپاره راوړه چې حضور ددوى حول جهنم د پره زمانه تر حشر وروسته دى لاحتباسهم دهراً طويلاً في الموقف قبل ان يفعل بينهم.

## ثُمَّ لَنَنْزِعَنَّ مِنْ كُلِّ شِيعَةٍ

وروسته په زور راجلا كړو كما هو معنى النزع قاله البغوي له هري ډلې او هر امت څخه او له هر دين څخه. په قاموس كي وايي چي شيعة الرجل اتباعه ويقع على الواحد والاثنين والجمع والمذكر والمؤنث. جوهري په صحاح كي وايي الشياع الانتشار والتقوية ته وايي يقال شاع الحديث اذا شاع وكثر وقوى وشاع القوم انشروا وكثروا شيعت النار بالحطب قوت به والشيعة من يقوى به الانسان وينتشرون عنه روح المعاني د شيعه په ترجمه كي وايي اى جماعة وتعاونت على الباطل على مايقتضيه كون الآية في الكفرة. او روح البيان يې هم ورته ترجمه كړې ده.

## أَيُّهُمْ أَشَدُّ عَلَى الرَّحْمَٰنِ عِتِيًّا ﴿٦٩﴾

چې څوک له دوى څخه سخت دى پر رحمن باندې په قاموس كي وايي اى استكباراً او تجاوزاً عن الحد في العصيان. بغوي رح وايي چي ابن عباس رضي الله عنهما وايي په جرئت كي پر خداى جل جلاله، او مجاهد وايي فجوراً.

**فائده:** "عتيا" منصوب دى تميز دى له نسبت څخه د "اشد" ودوى ته حاصل دادى چې له هر امت څخه به اعصى فالاعصى راغونډ كړي چې ټول له سره جمع سي بيا به يې پر ترتيب دوزخ ته ورواچوي، امام همام فخر الدين الرازي رح

په تفسیر کبیر کې وايي چې د هر امت کافران به حول جهنم ته حاضر کړل سي. بيا به هغه کسان ځندي راوباسي چې اشد تمرداً علی الله وه هغه به عذاب اعظم و دوږخ ته تېله کړل سي اذ عذاب الضال المضل لغيره يجب انيكون فوق من يكون ضالاً تبعاً. قال الله تعالى "الذين كفروا وصدوا عن سبيل الله زدناهم عذاباً فوق العذاب بما كانوا يفسقون. انتهى كلام الرازي رح.

**ثُمَّ لَنَحْنُ أَعْلَمُ بِالَّذِينَ هُمْ أَوْلَىٰ بِهَا صِلِيًّا ﴿٧٠﴾**

**پوه سه:** چې کلمه د "ثم" لپاره د تراخي في البيان ده لا التراخي في العلم. وروسته مو ږ بنه خبر يو په هغو کسانو چې دوی اولی په دوږخ سره از روی دخول وي.

**پوه سه:** چې ضمير مونث د بها راجع دی جهنم ته چې هغه مونث سماعي دی.

**پوښتنه:** بل څوک خو د کفارو په حال نه دي. نو صيغه د تفضيل في العلم نسبت وچا ته ده؟

**ځواب:** بعض مفسرين وايي چې اعلم په معنی د عليم دی يعني لپاره د تفضيل نه دی. او بعض مفسرين وايي چې كرام كاتبين خو هم كافر او تقي سره پېژني او د سعيد او د شقي فرق ورته معلومېږي لكن پر اعمالو د قلب علم نه لري او كه يې وه هم لري د بعضي قرائنو په سبب لكن بيا هم علم تفصيلي نه پر لري او خدای ﷻ پر افعال القلوب باندي تفصيلاً علم لري فصح صيغة التفضيل بالنظر الى الكرام الكاتبين.

**وَإِن مِّنكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا ۚ كَانَ عَلَىٰ رَبِّكَ حَتْمًا مَّقْضِيًّا ﴿٧١﴾**

نسته يو له تاسي څخه (ان نافيه دی او "منكم" صفت دی د محذوف ای احد) مگر نه وارد ېږي به جهنم ته يعني د دوږخ پر غاړه به سره جمع کېږي که مؤمن وي او كه كافر. كه تقي وي او كه شقي. دا جمع كول پر شفير د دوږخ ستا پر رب واجب دی يعني خدای پاک پر خپل ځان لازم گرځولی دی لا بمعنی الوجوب العقلي عليه تعالى ولا بالوجوب الشرعي "مقضياً" چې د قضا او وعده پر دغه راغلي ده ولا يمكن تخلف وعده.

ثُمَّ نُنَجِّي الَّذِينَ اتَّقَوْا وَّنَذَرُ الظّٰلِمِينَ فِيهَا جِثِيًّا ﴿۷۲﴾

وروسته تر حضور به موږ نجات ورکړو يعني له دخول څخه د دوزخ يعني لپاره د تاييد هغو کسانو ته چي ځان يې ساتلی او پرهيز يې کړی وي له شرک څخه (او د جنت پر خوا به يې سمدلاسه روان کړو او بعد مدة التعذيب الموقت کما في بعض عصات المؤمنين) او پرې به ږدو موږ ظالمان يعني کافران په اور کي تولـه. او يا جاثين على الركب يا پر زنګنو به داخليږي لعدم طاقتهم للقيام.

**پوه سه:** چي يا مراد له ورود څخه د مؤمنانو تيريدل دي پر پل صراط باندي چي پر دوزخ باندي پروت دی او مؤمنان پر هغه پل جنت ته بيول کيږي. او معتزله وايي چي مراد له ورود څخه دخول نه دی ولي چي د دوی په نيز چي دوزخ ته داخل سي ابدي به په دوزخ کي وي. ولي چي يا خو به کافر وي د هغه خو ابدي ځای دوزخ دی او يا به مرتکب د کبيره ګنهو چي بلا توبه مړ سي د هغه ځای هم ابدي دوزخ دی ددوی په نيز، او موږ اهل السنة والجماعة وه مؤمن ته که هر څو ګناه کار او بلا توبه مړسي ابدي دوزخ نه وايو والدلائل لنا ولهم والجوابات عن جانبنا في کتب علم الکلام لانطول بها الکلام شفقة على الطلبا الکرام.

**درويش وايي:** چي پـه تفسير کـي د ورود المذکور في الآية اختلاف بين المفسرين وبين اهل السنة والجماعة، روح المعاني وايي چي اکثره سلف او اهل السنة والجماعة پر دې دي چي له ورود څخه دخول مراد دی دوزخ ته که مؤمن وي او که کافر وي مؤمن که تقي او که عاصي وي. لکن دی وايي چي پر هغه مؤمنانو عاصيانو چي خدای ﷻ اراده د تعذيب نه ورته لري اور ورته بردا وسلاما وي لکه ابراهيم عليه السلام ته چي اور د نمرود ؤ کما جا في القرآن الکريم "وقلنا يا نار کوني بردا وسلاما على ابراهيم" او کافرانو او بعض عاصي مسلمانانو ته چي خدای پاک اراده د عذاب ورته لري هغو ته بردا وسلاما نه وي، پر دې مذهب باندي دا سوال وارديږي چي هغه مؤمنانو ته چي اور ورته بردا وي د دخول د اور څه فائده ده، دوی وايي چي اوله فائده يې داده چي مؤمنانو ته به غايت سرور پيدا سي چي دوزخ اور ورته بردا وسلاما سو او بيا جنت ته بوتلل سي کما لا يخفى. دويم کفارو ته به

زيات حسرت پيدا سي حين رؤا المؤمنين قد تخلصوا منها او كفار به شرمنده هم
شي په نېز د مؤمنانو چي دوى يعني كافران بې په دنيا كي په دوږخ سره بېرول الى
غير ذالك من الفوائد التي بينها الامام الرازي في التفسير الكبير، وروح البيان
ايضاً في تفسيره. او بعض سلف او اهل السنة والجماعة تفسير د ورود په حضور
سره كوي بلا دخول للمؤمنين كما مر. والدلائل في تفسير روح المعاني
والمظهري والله اعلم بمراده في كتابه.

وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ قَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِلَّذِينَ آمَنُوا

چي ولوستل سي پر كفارو (دا جمله عطف ده پر ويقول الانسان) هغه آيتونه
يعني د قرآن كريم چي واضح دي دلالت يې پر خپل معنا (يا دي په خپله يا په بيان
سره د رسول الله ﷺ) وايي هغه كسان چي كافران دي يعني النضر بن الحارث او
نور مثل دده له قريشو څخه، و هغو كسانو ته چي ايمان يې راوړی وي.

أَيُّ الْفَرِيقَيْنِ خَيْرٌ مَّقَامًا وَأَحْسَنُ نَدِيًّا ﴿٧٣﴾

كوم يو د دغو دوو ډلو څخه چي مؤمنان چي ځانونه ښه بولي او موږ (يعني
كفار خپل ځان ښه بولي) "واحسن نديّا" او ښه دی از روی مجلس او مجتمع.

**پوه سه:** چي مقام بفتح الميم ظرف دی مشتق دی له قيام څخه ای خير
موضعاً للقيام.

**پوه سه:** چي قريش چي له اتيان څخه د مثل د آيات بيناتو چي پر دوی تلاوت
سوه عاجزه سوه نو يې فخر په امورو د دنيا شروع كړی يعني موږ تر تاسي بالا يو
په مقام او مكان كي او زموږ په مجلس كي تولنه صناديد يعني اشراف د قريشو او
سرداران د عربو ناست دي او ستاسي د نبي په مجلس كي يا فقراً يا مريان ناست
دي كبلال وصهيب وعمار بن ياسر وغيرهم ؓ، نو دوی په دې سره فضل عند الله
ځانو ته ثابتول، نو خدای ﷻ پر دوی رد وكړی په دې آيتو كي.

وَكَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّن قَرْنٍ هُمْ أَحْسَنُ أَثَاثًا وَرِئْيًا ﴿٧٤﴾

**پوه سه:** چي كلمه د "كم" خبريه ده (يعني ډېر مو هلاک كړي او منصوب

محلاً دی په هلكنا سره) تر تاسي دمخه "من قرن" بيان د کم دی.
**فائده**: قرن د يوې زمانې خلګو ته وايي ولي چي دوی په يوه زمانه کې سره
مقارن دي، كاشفي رح گروهی کـه مجتمـع بودنـد درزمـان واحـد آه. او بعض
مفسرين وايي چي زمان د قرن اتيا کاله دی لکن الصواب ماجا في الحديث
النبوي الصحيح چي عليه الصلوة والسلام و يو چاته د طول عمر دعا وکړه او
داسي يې ورته وويل عش قرنا هغه سل کاله ته ورسېدی او بيا وفات سو "هم
احسن اثاثا" چي هغه اهل قرن ښه وه يعني تر تاسي، او بغوي رح وايي چي اثاث
متاع البيت او اموالو ته وايي او مقاتل رح وايي د اغوستلو کالو ته وايي "ورءيا"
يعني از روی منظر او حسن الصورة مشتق من الروية.
**يوه سه**: چي اثاثا سره د مابعد تمييز دی له نسبت څخه د احسن وهم ته چي
تمييز محول دی له فاعل څخه يعني اثاثهم احسن.

قُلْ مَنْ كَانَ فِي الضَّلَٰلَةِ فَلْيَمْدُدْ لَهُ الرَّحْمَٰنُ مَدًّا ۚ

**يوه سه**: چي "فليمدد" که څه هم په صيغه د امر دی لکن معنی يې اخبار
دی، ترجمه: ته ورته ووايه يا محمد چي هغه کسان چي په ضلالت کي دي
خدای ﷻ ددوی سره کومک کوي په نعمتو ورکولو سره او مهلت ورکوي په
طغيان کي لکن استدراجاً لپاره ددې چي عذرونه ددوی په قيامت کي قطعه
سي، کريمه "اولم نعمركم ای في الدنيا مايتذكر من تذكر".

حَتَّىٰٓ إِذَا رَأَوْا مَا يُوعَدُونَ إِمَّا الْعَذَابَ وَإِمَّا السَّاعَةَ

تر هغه پوري چي دوی ووينې هغه شی چي ددوی سره يې وعده کړل سوې دی،
يا عذاب د دنيا "بالاسر والقتل" (لکه په کفارو د قريشو چي خدای ﷻ عذاب
وليدی په بدر کي) او يا قيامت او عذابونه د هغې ورځي او رسوايي او دوږخ.
**يوه سه**: چي اما العذاب واما الساعة بدل دی له "مايوعدون" څخه.

فَسَيَعْلَمُونَ مَنْ هُوَ شَرٌّ مَّكَانًا وَأَضْعَفُ جُندًا ۝٧٥

نو په ورځ کي د عذاب يا د قيامت.

**پوه سه:** چې "من" سره د مابعد قائم مقام د مفعول د "يعلمون" دی او جمله د "فسيعلمون آه" جزا د شرط ده يعني حتى اذا رؤا آه. او مراد له جند څخه اعوانا او كومكيان دي، وترجمة الآية: په هغه ورځ به كفار د مكې پوه سي چې څوک دی بد ازروی مقام او اضعف دی په كومكيانو كې.

**پوه سه:** چې دا د كفار قريش د هغه قول ځواب دی "اى الفريقين خير مقاما واحسن نديا" نو "شرمكانا" ځواب دی د "خير مقاما" او اضعف جندا ځواب دی د هغه قول واحسن نديا.

**پوه سه:** چې جند د كافرانو شيطانان دي او جند د مؤمنانو ملكي دي كما في غزوة بدر كما جا في القرآن العزيز... بيت:

افتخار از رنگ وبو واز مكان ...... هست شادی وفريب كودكان

**درويش وايي:** چې كفارو د مكې چې پر مؤمنانو افتخار په دنياوي امورو كي وكړی او خدای ﷻ په متلو آيتو ځواب وركړی حاصل د ځواب الهي دادی چې ډېر قرون چې هغه افضل او بالا وه تر قريشو د مكې په هغه امورو دنيويه ؤ كي چې دوی افتخار پر مؤمنانو په كاوه لكه قوم عاد او قوم ثمود او قبط قوم فرعون، او نور ورته اقوام ماضيه چې سركشي يې كړې وه د خدای ﷻ له امر څخه لكه كفارو د قريشو چې هم وكړه. نو ما هغه اقوام عاتيه هلاک كړه بالاستيصال په قسم قسم عذابو سره، يا په باد لكه قوم عاد. يا په غرق لكه قوم د فرعون. نو كه چېرې هغه نعمتونه چې ما دوی ته يعني امم ماضيه وو ته وركړي وه په سبب د كرامت ددوی. نو بيا ما ولې هلاكول دوی. نو د قريشو دا خيال هم غلط دی چې موږ پر خدای گران او معزز يو تر مؤمنانو ..... بيت:

برمال وجمال خويشتن تكيه مكن ..... كه آنرا بشبى برند وآنرا بتبى

يعني مال به دي د شپې غله درڅخه يوسي او جمال به په يوه تبه درڅخه ولاړ سي.

وَيَزِيدُ اللَّهُ الَّذِينَ اهْتَدَوْا هُدًى ط

او زياتوي خدای ﷻ و هغو كسانو ته چې پر راه راست وي يعني مؤمنان

وي هدايت اي الهاماً الى مقاصد هم من القرب الى الله تعالى بالهام الاسباب من الطاعات الموصلة الى القرب، مظهري وايي چي دا جمله عطف ده پر مضمون د هغه جمله شرطيه چي تر قل وروسته راغلي ده، يعني من كان في الضلالة يمده الرحمن استدراجاً والذين اهتدوا زادهم هدى بالايمان بما ينزل عليهم من الآيات. والحاصل چي امهال وكافرانو او نفع رسول دوى ته په دنيايي چارو ددې سبب نه دى چي دوى فضيلت پر مؤمنانو لري كما زعموا بل هو استدراج لهم اوكم والى د نعمتو د مؤمنانو ددې جهته نه دى چي په دوى كي يو نقص ستة بلكي خداى ﷻ لروالى د حظ د مؤمنانو په دنياوي چارو كي سبب د مزيد ثواب گرځوي او رفع د درجو ددوى يې گرځوي عند الله في الآخرة او دوى رسوي ددوى مقاصد ته چي قرب الى الله دى.

وَالْبٰقِيٰتُ الصّٰلِحٰتُ خَيْرٌ عِنْدَ رَبِّكَ ثَوَابًا وَّخَيْرٌ مَّرَدًّا ﴿۷۶﴾

يعني اذكار او ښه عملونه ولي چي يوم القيامة فائده ده وصاحب ته راجع دي ابد الابدين، خير ده په نيز د رب ستا يا محمد تر تمتع د كافرانو په دنيا كي بالنعم الفانية او خير ده از روى مرجعاً وعاقبةً.

**سوال**: د كفارو په طريقه كي خو خير نسته فما معنى التفضيل؟

**ځواب**: اسم تفضيل چي "خير" دى لپاره د مجرد زيادت دى د ډېر زيادت لپاره نه دى او د قبيلې ددې دى چي خلگ وايي چي دوبي احر من الشتاً مع عدم الحرارة في الشتاً، حسين كاشفي رح ميگويد: اگر كافران را دردنيا جاه ومال است درآخرت نكال و وبال است، اما مؤمنان را دردنيا هم هدايت دارند وهم حمايت از پروردگار. وفي الحديث الصحيح قال ابو الدرداً رضي الله عنه جلس رسول الله ﷺ ذات يوم (كښېنستى رسول الله ﷺ يوه ورځ) واخذ عوداً يابساً وازال الورق عنه (عليه الصلوة والسلام راواخستى يو لرگى او ځندي وه يې رژول بلگونه د هغه لرگي) ثم قال ان قول لا اله الا الله والله اكبر وسبحان الله والحمد لله "يعني هذه الكلمات" ليحط الخطايا كما يحط ورق هذه الشجرة الريح (هر آئينه رژوي گناهونه د ويونكي د دغو كلماتو لكه چي باد تويوي بلگونه ددغه درختي

يعني چي خزان سوي وي، بيا عليه الصلوة والسلام ابو درداﷺ ته وويل) خذهن يا ابا الدرداﺀ قبل ان يحال بينک وبينهن (زده کړه او واخله دغه کلمات يا ابا الدرداﺀ د مخه تر دې چي ستا او د هغو تر منځ حائل او مانع پيدا کېږي چي عبارت له مرګ څخه دی. بيا عليه الصلوة والسلام وويل) فهن الباقيات الصالحات وهي من کنوز الجنة (دغه کلمات باقيات صالحات دي يعني په قبولي عباداتو کي او دا کلمات له خزانو څخه د جنت دي) د وروسته آيت شان نزول. بخاري او مسلم له خباب بن الارت څخه روايت کړی دی چي زه آهنګروم يعني توري وغيره مي جوړولې، نو عاص بن وائل ته يعني چي يو مالدار مشرک ؤ په مکه کي ماتوره ورجوړه کړه او اجرت مي پر ده باندي پاته ؤ. نو زه ورغلم ته ده چي زما پور راکړه؟ ده راته وويل لا والله لا اقضينک حتی تکفر بمحمد (ستا پور تر هغو نه درکوم چي ته په محمد (ﷺ) سره کافر نه سې يعني دده د نبوت منکر نه سې) ما ورته وويل اما والله لا اکفر بمحمدﷺ حتی تموت وتبعث.

**درويش وايي:** چي ددې حتی آه معنی دا نه ده چي بعد الموت والبعث نو زه کفر په محمد سره کوم ولي هورې خو کافران لا کفر بمحمدﷺ نه کوي فضلاً عن المؤمنين به في الدنيا. ده يعني عاص راته وويل چي زه مرم بيا بعث کېږم ځای د انکار د عاص بعث ؤ لا الموت لانه محسوس في افراد الانسان کلهم. ما ورته وويل نعم، يعني ته بعد الموت بعث کېږې. ده راته وويل چي داسي دی فسيکون لي مال وولد. نو ستا پور به هغه ورځ درکړم، نو دا آيت خدای ﷻ نازل کړی.

أَفَرَءَيْتَ ٱلَّذِى كَفَرَ بِـَٔايَٰتِنَا وَقَالَ لَأُوتَيَنَّ مَالًا وَوَلَدًا ﴿٧٧﴾

ته خبر راکړه والخطاب للنبيﷺ. يعني هغه څوک چي زموږ له آياتو څخه انکار کوي يعني قرآن نه مني چي عاص بن وائل دی، او دی وايي چي ماته به راکړل کېږي يعني په ورځ د قيامت مال او زامن. دا قال معطوف دی پر کفر.

**پوښتنه:** د فرئيت ترجمه تا په خبر راکړه ولي وکړه. او سره ددې چي د رؤيت معنی خو ليدل ده؟

**ځواب**: چونکه رؤيت د ستر ګو قوي له اسبابو څخه د اخبار دی، نو دا الرئيت په معنی د اخبرني دی په ټوله قرآن او په کلام کي د عربو . قانون نحوي تر همزه د استفهام وروسته که واو که فا که ثم راسي معطوف عليه په ماقبل تر همزه نسي کېدای لفوات صدارة الاستفهام کما قال النحاة بلکي معطوف عليه بي د مقام سره مناسب يو فعل مقدر وي په دې ځای کي معطوف اوقع نظر ک فرئيت.

## أَطَّلَعَ الْغَيْبَ أَمِ اتَّخَذَ عِندَ الرَّحْمَٰنِ عَهْدًا ﴿٧٨﴾

ابن عباس رضي الله عنهما وايي آيا ده وکتل په لوح محفوظ کي چي دا علم غيب ورته حاصل سو ، او مجاهد وايي اعلم علم الغيب حتى ادعى انه له يوم القيامة مالاً وولداً والمآل واحد . يا له خدای ﷻ څخه عهد او وعده ددغه مال او ولد اخستې ده.

**پوه سه**: چي اصل ددې کلمې اطلع ؤ چي يو همزه د وصل ؤ او يو همزه د استفهام ؤ . نو همزه د استفهام چي داخل سو ، نو د همزه د وصل څخه غنا راغله لعدم لزوم الابتدا بالساکن چي د هغه لپاره همزه د وصل داخل سوی ؤ فحذف همزة الوصل.

**پوه سه**: چي له عهد الله څخه مراد کلمه د لا اله الا الله ده ، او قتاده وايي چي يعني عمل عملاً صالحاً ، او کلبي رح وايي عهده الله ان يدخله الجنة والمآل واحد.

## كَلَّا ۚ سَنَكْتُبُ مَا يَقُولُ

"کلا" کلمه د ردع ده يعني نه چنين است په پښتو وايي داسي نه ده.

**درويش وايي**: چي پر ظاهر د عبارت دا توهم کېږي چي کتابت دده د قول خو سمدلاسه کرام کاتبين کوي ، کريمه "مايلفظ من قول الا لدي رقيب عتيد" نو د سين د استقبال څه معنا ده؟

**ځواب**: ددغه توهم له جهته روح المعاني او مظهري او روح البيان بلکي ټوله مفسرين ددې آيت ترجمه داسي کوي "سنظهر انا کتبنا قوله. او سننتقم منه ما کتبنا من قوله الی غير ذالک من التاويلات.

**فائده**: اسناد د کتابت خدای پاک ځان ته کوي مع ان الکاتبين هم الملائکة الحفظة لان الله تعالی هو الامر لهم بالکتابة.

## وَنَمُدُّ لَهُ مِنَ الْعَذَابِ مَدًّا ﴿٧٩﴾

موږ به زيات کړو وه ده ته لـه عـذاب څخه. دا په عوض کي د هغـه قـول ددهـ چي دی به دعـوه کـول د ځان لپاره من الامداد بالمال والولد ای نطول لـه مـن العذاب مايستحقه بكفره وقوله المذكور.

## وَنَرِثُهُ مَا يَقُولُ وَيَأْتِينَا فَرْدًا ﴿٨٠﴾

او موږ ته به ميراث پاته سي چي دی هلاک سي او ملک يې په مرګ سره ولاړ سي. چي هغه دی وايي من المال والولد. او دی به راسي موږ ته يعني په ورځ د قيامت تنها چي نه به مال ورسره وي او نه ولد لکه په دنيا کي چي ورسره وه فضل تر دې چي په دنيا کي به ده ته زائد مال هم ورکړل سي.

**پوه سه:** چي جمله د "سنکتب" سره د معطوف عليها علت ده ردع چي له "کلا" څخه وفهمېدی.

## وَاتَّخَذُوا مِن دُونِ اللَّهِ آلِهَةً لِّيَكُونُوا لَهُمْ عِزًّا ﴿٨١﴾

اخستي دی کفارو د قريشو يعني معبود يې ګرځولي دي پرته لـه خدايه چي معبود بالحق دی نور خدايان او معبودان چي بتان دي، تاچي سي دا معبودان باطل ددوی لپاره عزت عندالله يعني وصيله او شفعا. کريمه "هؤلآ شفعائنا عندالله.

## كَلَّا ۚ سَيَكْفُرُونَ بِعِبَادَتِهِمْ وَيَكُونُونَ عَلَيْهِمْ ضِدًّا ﴿٨٢﴾

"کلا" ردع او انکار دی له عزت مندلو څخه د دوی په ذريعه د بتانو، ژر دی چي انکار به وکړي يعني په ورځ د قيامت دغه معبودان ددوی له عبادت څخه ددوی. کريمه "تبرئنا اليک ماکانوا ايانا يعبدون، او يا معنی داده چي کفار به انکار وکړي د بتانو د عبادت، کريمه "والله ربنا ماکنا مشرکين" وه به ګرځي دا بتان پر دوی ذلت او سپکاوی يعني سبب د ذلت ددوی به په ورځ د قيامت همدغه بتان وي.

**پوښتنه:** اسم د "تکونوا" خو جمع دی، نو خبر يې ولي مفرد راوړی يعني ضداً؟

**ځواب:** په معنی کي د مضادة ټوله سره شريکان دي. نو لکه ټوله چي يو شی وي فتدبر. او بل ځواب دادی چي دا له قبيلې څخه ددې قول د عليه الصلوة والسلام

دی وهم يدعن من سواهم. يعني "هم" جمع دی او "يد" مفرد دی رواه ابو داؤد وابن ماجه. او بل ځواب دادی چې په قاموس کې وايي چې ضد جمع هم راځي يعني اطلاق يې پر مفرد او جمع دواړو کېږي قال ومنه قوله تعالى ويكونون عليهم ضداً".

**أَلَمْ تَرَ أَنَّا أَرْسَلْنَا الشَّيَاطِينَ عَلَى الْكَافِرِينَ تَؤُزُّهُمْ أَزًّا ﴿٨٣﴾**

آيا ته علم نه لرې يا محمد (ﷺ) نو رويت علمي دی او استفهام انكاري دی نفي د نفي اثبات دی يعني علم لرې، چې موږ مسلط كړي دي شيطانان پر كافرانو يعني په دې هم خبر يې، كريمه "وقيضا لهم قرناً" كما هو معنى قوله تعالى "واستفزز من استطعت بصوتک آه" كذا قال البغوي الشافعي المذهب "تؤزهم ازاً" يعني دلاوره كوي شيطانان كافران پر معاصيو او شرک باندې او پر ناوړه خيالاتو او اتباع د شهواتو لكه زنا شرب الخمر الى غير ذالک. دوی ته دا عقيدې په زړو كې وراچوي بان لابعث ولاحساب ولا الجنة والنار.

**پوه سه:** چې "ازاً" مفعول مطلق دی او جمله د "تؤزهم" حال ده له شياطين څخه.

**فائده:** له دې آيت څخه يعني "الم تر" تر اخيري پورې په تعجب كې اچول دي د رسول الله ﷺ له اقوالو څخه د مشركانو او ټينګار ته ددوی پر شرک بعد وضوح الحق بالآيات والمعجزات.

**فَلَا تَعْجَلْ عَلَيْهِمْ ۖ إِنَّمَا نَعُدُّ لَهُمْ عَدًّا ﴿٨٤﴾**

ته تلوار مه كوه پر ښېرا ودوی ته په نزول د عذاب پر دوی، موږ شمېرو ورځې د عمر پوره كېدو ددوی يعني ددوی د عمر شپې او ورځې محصور او معدود دي دا جمله علت او سبب دی د جمله د "فلا تعجل عليهم" په حديث كې له ابن عباس رضي الله عنهما كې مروي دي چې ده چې به دا آيت ورايه كه څه هم په شان كې د كافرانو راغلى دی لكن حكم يې عام دی. يعني د مسلمانانو خو هم ايام د اجل محصور او معدود دي، نو ده به وژړل او داسې به يې وويل اخير العدد خروج نفسک ای روحک من البدن اخير العدد فراق اهلک (يعني د خپل اولاد او اقاربو څخه) اخير العدد دخول قبرک، يو صحرايي وويل كيف تفرح بعمر تقطعه الساعات وسلامة بدن تعرض الآفات.

يَوْمَ نَحْشُرُ الْمُتَّقِينَ إِلَى الرَّحْمَٰنِ وَفْدًا ﴿٨٥﴾

هغه ورځ چي موږ حشر کړو تقوی داره کسان وه الرحمن ته یعني ومهربان خدای ﷻ ته "وفداً" جمع د وافد ده حال دی له متقين څخه. او لفظ د "یوم" منصوب دی په اذکر مقدر سره، او یا ظرف دی د فعل محذوف ای نفعل بالفريقين ای المتقين والمجرمين مانفعل.

**درويش وايي:** چي وفد يو هئيت ته وايي چي بادشاهانو ته ورځي منتظر وه کرامت او د انعام د بادشاهانو وي.

وَنَسُوقُ الْمُجْرِمِينَ إِلَىٰ جَهَنَّمَ وِرْدًا ﴿٨٦﴾

او موږ شړو (دا لفظ د اهانت لپاره دی یعني لکه حیوانات چي راعي شړي)

**فائده:** فاعل که څه هم خدای ﷻ دی لکن شړل کار د ملائکو د دوږخ دی خدای ﷻ یې آمر دی، له مجرمانو څخه مراد کافران دي.

**يوه سه:** چي د "ورداً" ترجمه بغوي رحمه الله په مشاة سره کړې ده یعني پیاده، او ابن عباس رضي الله عنهما یې تفسیر په عطاش سره کړی دی یعني تږي "والورد جماعة" چي د اوبو پر خوا روان وي او اوبو ته نه ځي څوک مګر نه د تندي له سببه کما لا يخفى.

لَا يَمْلِكُونَ الشَّفَاعَةَ إِلَّا مَنِ اتَّخَذَ عِندَ الرَّحْمَٰنِ عَهْدًا ﴿٨٧﴾

د لایملکون ضمیر و عبادو ته راجع دی المدلول علیه بذکر القسمين ای المتقين والمجرمون.

**يوه سه:** چي که شفاعت مصدر مبني للفاعل سي او عهد په معنی د اذن سي، نو معنی د آیت داده چي نسي کولای له بندګانو څخه هيڅ څوک هر څوک چي وي که انبیاً وي او که صلحاً وي او که ملائکه وي شفاعت د عصاتو مګر نه هغه څوک چي له خدای ﷻ څخه اجازه واخلي د شفاعت کولو کما في آية الکرسي "من ذا الذي يشفع عنده الا باذنه" او که چیري شفاعت مبني للمفعول سي او عهد په معنی د ایمان سي، نو معنا د آیت داسي ده لا يملك المجرمون چي څوک دي شفاعت وکړي الا من كان له عهد ای كان مؤمنا لان الايمان

شرط للشفاعة، او ابن عباس ﷺ تفسیر په شهادت سره د لا اله الا الله کړی
دی او ابن ابي شیبة او ابن ابي حاتم او الطبراني او الحاکم چي حاکم یې د صحت
دعوه کړې ده له ابن مسعود ﷺ څخه چي ده دا آیت قرائت کړی او داسي یې
وویل چي خدای پاک به وو ایي په ورځ د قیامت من کان له عهد عندي فلیقم
هغه دي ولاړ سي فلا یقوم الا من قال هذا في الدنیا یعني دا دعا یې کړې وي
وفي روایة کل صباح ومسا اللهم فاطر السموات والارض عالم الغیب والشهادة
اني اعهد الیک في هذه الحیوة الدنیا انک ان تکلني الی نفسي تقربني من الشر
وتباعدني من الخیر واني لا اثق الا برحمتک فاجعله لي عهداً عندک تؤدیه الي
یوم القیامة انک لا تخلف المیعاد.

**درویش وایي**: چي ددې دعا د کلماتو تفسیر زه په دې نه کوم چي دغه
عربي الفاظ چي له مشکوة څخه د سید البشر ﷺ راغلي دي د هغو الفاظو
وینا ضروري ده که یې څوک په ترجمه پوهېږي او که نه.

**تنبیه**: په شفاعت د سید الشافعین ﷺ له ترمذي څخه بلکې د صحیحینو
په روایت احادیث صحیحه راغلي دي لکن په هغو کي یو داسي متشابه الفاظ
سته چي بېله عالم محدث څوک تاویل نسي کولای، نو چونکه زما تفسیر د
طالبانو او عمومي خلګو لپاره دی، نو له دې سببه مي هغه احادیث نه کړل ذکر
چي بعض مطالعه کونکي یې پر ظاهر حمل نه کړي بلکې داسي عام الفهم
احادیث به ذکر کړم سره د ترجمې چي هر خوانند په وه پوهېږي. طبراني او
بیهقي له عمر بن الحزم الانصاري ﷺ څخه روایت کړی دی چي علیه الصلوة
والسلام درې شبانه روزه د خلګو سره ملاقات بند کړی ؤ صرف به د فرضي
لمونځو لپاره له کوره راووتی چي لمونځ به یې وکړی بیرته به کور ته ولاړی
چي څلورمه ورځ سو د اصحابو کرامو ﷺ و ملاقات ته له کوره راووتی. موږ
ورته وویل چي تاسي درې ورځي ملاقات زموږ سره بند کړی ؤ حتی چي زموږ
دا ګمان سو چي یوه نوې حادثه او واقعه پېښه سوې ده. علیه الصلوة والسلام
ورته وویل لم یحدث الا خیراً نه دی پېښ سوی مګر نه د خیر کار. هغه دا چي

زما رب زما سره وعده کړې وه چې ستا له امت څخه اوویا زره کسه بې حسابه جنت ته بیایم، په دې درې ورځو کې ما د زیادت د بې حسابه امتیانو وکړی فوجدت ربي ماجداً کریماً، نو خدای ﷻ ماته وویل چې د هر نفر سره د مخنې اوویا زره به نور بې حسابه جنت ته داخل کړم الحدیث.

**درویش وایي:** چې په بعضې احادیثو مبارکه وو کې تعیین د من یدخل الجنة بلا حساب په بعض حدیثو کې راغلي دي چې هغه کسان دي چې حمد د خدای ﷻ وایي في السرا (یعني د صحت او عافیت او د غنی په وخت کې حمد د خدای ﷻ) والضرا (یعني د فقر، ناجوړۍ الی غیر ذالک) حمد د خدای وایي، او په بعض اخبارو کې "الذین تتجافی جنوبهم عن المضاجع" یعني د شپې د تهجد لپاره بغلونه ددوی پورته وي د خوب له ځایه څخه، او په بعض احادیثو کې راغلي دي چې هغه کسان چې حج یا عمرې ته تللي وي یا ذاهباً مره سي یعني د کور له خوا څخه او یا راجعاً له مکې څخه مړه سي، او په بعضو کې داسې راغلي دي چې طالبان د علوم شرعیه وو دي او هغه ښځه چې د مېړه فرمانبرداره وي، یا ولد بار بالوالدین، یا هغه کسان چې لاتلهیهم تجارة ولابیع عن ذکر الله علامه بغدادي السید محمود آلوسي رح په روح المعاني کې وایي چې وجه د جمع ددې اخبار چې ذکر سوه ظاهره ده انتهی.

**درویش وایي:** چې وجه د جمعې یې داده چې دغه په اخبار کې ذکر سوي کسان خو ډېر محدود کسان دي او هغه کسان چې په حدیث مذکور کې عنقریب تېر سوه چې جنت ته بې حسابه هغه ډېر لوی عدد ۍ داتوله پکښې داخلېدای سي، بلکې هغه کسان چې په روایت کې د بخاري او مسلم له ابن عباس رضي الله عنهما پکښې ځانېږي، دی وایي خرج الینا رسول الله ﷺ ذات یوم فقال عرضت علی الامم (پېش سوه امتونه د انبیا علیهم السلام یعني والله اعلم په عالم رؤیا کې، یو نبي به تېرېدی یو نفر به ورسره ۍ والنبي معه رجلان والنبي لیس معه احد والنبي معه الرهط (یعني لږ کسان تر لسو پوري) فرئیت سواداً کثیراً (ما ولیدل یوه لویه ډله چې نبي یې ورسره ۍ) فرجوت انیکون امتي (زما امید پیدا سو چې دا به زما

امت وي) فقيل هذا موسى وقومه، ثم قيل لي انظر فرئيت سواداً كثيراً (وروسته ووېل سوره چې وګوره ما چې وکتل نهايت ډېر نفر مې وليدل يعني چې د موسى عليه السلام سره ورسره ؤ تر هغو هم ډېر وه) فقيل هؤلاء امتك ومع هؤلاء سبعون الفاً يدخلون الجنة بغير حساب وروسته اصحاب ﷺ سره متفرق سوه، او عليه الصلوة والسلام هم بيان راته ونه کړی په باره کې ددغو اوويا زرو کسانو چې دا به څوک وي، نو د صحابه کرامو ﷺ په دې کې اختلاف سو چا وويل چې موږ خو په شرک کې زو کړي يو لکن آمنا بالله ورسوله نو اوويا زره کسان به زموږ زامن وي، نو د عليه الصلوة والسلام څخه چې وروسته چا پوښتنه وکړه عليه الصلوة والسلام ورته وويل هم الذين لايسترقون (چې د چا څخه طلب د دم. تعويذ و ځانبت نه کوي) ولايكتون (او داغ نه ايږدي د يوې ناجوړی له کبله په يو ځای کې د بدن) ولا يتطيرون (او نه بد فالي په يو شي کوي) وعلى ربهم يتوكلون (خاص پر خدای ﷻ يې توکل وي).

**درويش وايي:** چې مظهري رح سوال کړی دی چې خدای ﷻ د متقين کاملين حال بيان کړی لکه انبياً وغيرهم يعني په هغه آيت کې يوم نحشر المتقين آه، او د مجرمين ای الکافرين حال يې هم بيان کړی يعني بقوله "ونسوق" الخ، او د عامو مؤمنانو من الصالحين والمذنبين حال يې نه کړی بيان، بيا مظهري ددې په ځواب کې يو اوږد بيان کړی دی، درويش وايي چې هيڅ مفسر و دريمي ډلې ته اشاره نه ده کړې او حق هم دغه ده چې تقسيم د قرآن حاضر دی په دليل ددې چې متقين چې مقابل د مجرمين راغله چې مراد له مجرمين څخه کافران دي واعترف به المظهري رح ايضاً، نو مراد له متقين څخه متقين عن الکفر والشرک چې ټولو مؤمنانو ته شامل دي من الانبياء عليهم السلام والصالحين الکاملين وعامة المؤمنين والمذنبين غاية ما في الباب په درجاتو کې يې فرق ډېر وي حتی چې بعض ګناه کاره مؤمنان که څه هم دوږخ ته ولاړ سي لکن اخير الامر په سبب د ايمان له وافدينو څخه د رحمن ګرځي کما لايخفى. او مظهري چې هر څو اوږد بيان کړی دی تفاوت د درجاتو يې بيان

کړي دی وهو مسلم عند الکل وثابت بالاجماع لکن خبره دلته په دې کې ده چې مقابل د کافر کما هو معنی المجرمین چې متقي راسي مراد ځندې متقي من الشرک والکفر دی من کان سواً کان تقواه في الدرجة الاعلی او الوسطی او الاسفل لکه عامة المؤمنین چې په دوی کې مذنبین هم داخل دي او درې سره وفد الرحمن دي اما اولاً او اخیراً مع تفاوت درجاتهم في القرب الی الله ﷻ.

مثال یې دادی لکه یو سړی چې عمومي مېلمستیا جوړه کړي په هغه کې امیران خلګ راوبلل سي او د سړي خپل نژدې قریبان هم راوغوښتل سي او مساکین بیګانه هم دعوت سي په دې مېلمستیا کې چاته ډېر اعلی ترین خواړه ایږدي او په ډېرو معززو ځایو کې یې کښېنولي وي، او بعضو ته اوسط خواړه په اوسط ځای کې ورته کښېښول سي او بعضو ته ادنی خواړه ورکړل سي، د قصر د مهمان نواز په کښېنته اوطاقو کې ډوډۍ ورکړل سي او سره ددې چې خلګ خو ټوله د فلاني مېلمانه دي والله اعلم.

وَقَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمٰنُ وَلَدًا ﴿٨٨﴾

او وایي کافران چې خدای ﷻ د ځان لپاره ولد اخستی دی. نصاری وایي چې عیسی علیه السلام ابن الله دی. او یهودان وایي چې عزیر علیه السلام ابن الله دی او بعض مشرکین د مکې وایي چې ملائکه بنات الله دي نعوذ بالله من ذالک، قال الله ﷻ.

لَقَدْ جِئْتُمْ شَيْئًا إِدًّا ﴿٨٩﴾

تاسي راتګ وکړی یعني عقیده مو وکړه او وه مو وایه یو شی اد.

**پوه سه:** چې د "اد" معنی العجب والامر الفظیع والمنکر، په قاموس کې واییای فعلتم فعلاً منکراً شدیداً آه.

تَكَادُ السَّمٰوٰتُ يَتَفَطَّرْنَ مِنْهُ وَتَنْشَقُّ الْأَرْضُ وَتَخِرُّ الْجِبَالُ هَدًّا ﴿٩٠﴾

قریب ده چې اسمانونه دي سره څیري سي (التفطر بالفارسیة شګافته شدن ددې خبرې د بدۍ په سبب یعني قول الولد للرحمن) او ودي نړېږي غرونه.

**پوه سه:** چې "هداً" مصدر مؤکد دی د افعل محذوف چې حال دی له جبالو

ځځه اى حال كون الجبال تهد هداً اى تكسر كسراً عظيماً وبالفارسية پاره پاره گردند. او بعض مفسرين وايي چي يتفطرن چي اسمانونه دي پر دوى راونړېږي وتنشق الارض په مځكه كي دي دوى خسف سي. وتخر الجبال" او غرونه دي پر دوى راونړېږي او دوى دي تر لاندي سي.

# اَنْ دَعَوْا لِلرَّحْمٰنِ وَلَدًا ﴿۹۱﴾

له دي سببه چي دوى خداى ﷻ لره ولد ووايه چي دا ډېر خبيث او دروند قول دى او ناوړه خبره ده، قال ابن عباس وكعب ﷺ فزعت من هذا القول السموات والارض والجبال وجميع الخلائق الا الثقلين اى الانس والجن وغضبت الملائكة وسعرت الجهنم حين قالوا ولداً لله. او بعض مفسرين وايي ان هول هذه الكلمة وعظمها بحيث لولا حلم الله تخرب العالم وبدد قوائمه غضباً على من تفوه بهذا.... ابيات:

دا عيبونه چي پر خداى ويل كېږي
ور دي دي چي اسمان پر ونړېږي
دا درواغ چي پر خداى پاک باندي څوک وايي
مناسب ورسره داده چي په مځكه كي ښخېږي
ده واجب چي يو ممكن څوک ولد بولي
ور يې داده چي لوى غر پر ونړېږي

# وَمَا يَنۢبَغِيْ لِلرَّحْمٰنِ اَنْ يَّتَّخِذَ وَلَدًا ﴿۹۲﴾

**پوه سه**: چي دا جمله حال ده له فاعل ځځه د "قالوا" اى قالوا ذالک والحال انه لاينبغي اى لايليق لعلو شانه اتخاذ الولد لانه نقص بالاضافة اليه. او خداى منزه دى له نقائصو ځځه او دغه رنګه د ما لايليق به.

# اِنْ كُلُّ مَنْ فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ اِلَّآ اٰتِى الرَّحْمٰنِ عَبْدًا ﴿۹۳﴾

نه دى هيڅ شى په اسمانو كي لكه ملائكه او نه په مځكه كي من الثقلين اى ما منهم احد كلمه د "ان" نافيه ده لكه "ما" او لفظ د "كل" مبتدأ ده خبر يې

آتي دی او کلمه د من موصوفه جار او مجرور يې صفت دی "الا اتی الرحمن عبداً" دا استثنا مفرغ ده. والمعنى نه دی هيڅ شی مګر راتلونکی دی په عبوديت و رحمن ته ای الا هو مخلوق مملوک له تعالی ويأوی اليه بالعبودية والانقياد والولد لايکون عبداً للاب، ولذالک من ملک ابنه عتق عليه.

## لَقَدْ أَحْصٰىهُمْ وَعَدَّهُمْ عَدًّا ﴿٩٤﴾

په تحقيق خدای ﷻ پر ټوله مخلوق احاطه کړې ده چي دده له علم او قدرت څخه هيڅ شی نه دی خارج (يعني څه چي مقدر دي هغه وده ته معلوم دي وبالعکس) او خدای ﷻ ته شمير د ټولو شيانو او د هغو د احوالو او افعالو هم شمېر معلوم دی.

## وَكُلُّهُمْ اٰتِيْهِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فَرْدًا ﴿٩٥﴾

**پوه سه**: چي ضمير د کلهم راجع دی و ذوی العقول ته د مخلوق. ولي ورځ يوم القيامة لپاره د باز پرس دی، او دا خاص په ذوی العقول پوري دي، والمعنى الآية هر يو له معبودينو څخه لکه عيسی، عزير او ملائکه عليهم السلام او له عابدينو څخه ددوی، دوی به راځي و خدای ﷻ ته تنها.

**فائده**: لفظ د کل چي مضاف سي و معرفه ته که ضمير وي نحو کلهم او که اسم ظاهر وي نحو کل الناس يجوز عود الضمير اليه مفرداً نحو کلکم ذاهب مراعاتاً للفظه او عود د ضمير جمع هم ورته روا دی باعتبار معناه نحو کلکم ذاهبون، نو دا سوال نه واردېږي چي کلهم خو جمع ؤ او "فرداً" چي لفظ مفرد دی خبر يې راغلی. وحاصل نفي الولد عنه تعالى بهذه الآية دادی چي ټوله اتباع او انصار چي د اتباعو د نصرت اميد ورته ؤ خدای ﷻ ته منفرد او تنها راځي چي محتاج و کومک او رحمت د خدای ﷻ به وي فکيف يجانسه ويناسبه احد حتى يتخذه ولداً ويشرکه تعالى کالولد في ملک الوالد تعالى الله عما يقول الظالمون علواً وفي الحديث القدسي الصحيح کذبني ابن آدم "ای سبني ابن آدم الى الکذب" ولم يکن له ذالک (او ده لره نه ښايي چي نسبت د کذب ماته کوي)

وشتمني ولم يكن له ذالك (او ده ته دا نه ښاييده) اما تكذيبه اياي فقوله لن يعيدني كما بدأني (تكذيب زما داده چي بني آدم يعني بعضهم لكه مشركان دا وايي چي خداى ما بيرته نسي راګرځولاى يعني په آخرت كي لكه چي ابتداً يې زه پيدا كړى يم دا ولي تكذيب دى خداى ﷻ خو وايي چي په آخرت كي زه تبوله انسانان بيرته پيدا كوم) وليس اول الخلق باهون علي (او سره ددې چي نه دى اول پيدا كول اسانه پرما يعني تر وروسته پيدا كولو بلكې دواړه ماته يو شى دي) واما شتمه اياى فقوله اتخذ الله ولداً (ښكنځل يې دادي چي خداى ﷻ لره ولد سته) وانا الاحد اى المنفرد بصفات الكمال والمنزه عن النقص والزوال الصمد يعني المقصود اليه في كل الحوائج الذي لم يلد ولم يولد ولم يكن له كفواً احد.

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ سَيَجْعَلُ لَهُمُ الرَّحْمَٰنُ وُدًّا ﴿٩٦﴾

په تحقيق هغه انسانان چي دوى ايمان راوړى وي او عمل يې كړى دي يعني اعمال د زړه او د جوارحو چي د شريعت سره برابر وي، نو ټوله دين محمدي تر دې لاندي داخل سو.

**پوه سه:** الذين سره د صله اسم ده ان دى او خبر يې دا قول د خداى ﷻ دى "سيجعل لهم الرحمن وداً" ژر دى چي خداى ﷻ به وګرځوي دوى لره محبت په زړو كي د مؤمنانو. يا معنى داده چي خداى ﷻ به محب ددوى سي.

**درويش وايي:** چي دا آيت په شان كي د عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه نازل سوى دى كه يې څه هم حكم عام دى. ابن جرير رحمه الله وايي چي عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه چي هجرت مدينې منورې ته وكړى نو زړه يې خفه ؤ پر فراق د مكې د انديوالانو منهم شيبة بن ربيعه وعتبة بن ربيعة وابي بن خلف چي كافران وه، نو ده ته په دې آيت كي خداى ﷻ تسلي وركړه او وعده يې ورسره وكړه چي ده ته به په بدل كي د كافرانو محبين او دوستان د مؤمنانو وركړي. او طبراني په اوسط كي وايي چي دا آيت په شان كي د علي رضي الله عنه نازل سوى دى يعني يجعل الله محبته في قلوب المؤمنين كلهم سوى الكافرين. قال رسول الله ﷺ من كنت مولاه فعلي

مولاه، که زه و چاته دوست یم علي به هم د هغه دوست وي رواه احمد وابن ماجه عن البرا ابن عازب رضي الله عنه، وروى البخاري ومسلم من حديث ابي هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ اذا احب الله عبداً قال لجبرئيل قد احب فلاناً فاحبه فيحبه جبرئيل بيا جبرئيل په اهل السموات کي اعلان وکړي چي خدای جل جلاله فلانی سړی محبوب ګرځولی دی تاسي هم محبت ورسره کوئ فيحبه اهل السما ثم وضع له القبول في الارض يعني اهل الارض" هم په نظر د محبت ورته ګوري.

**حکایت:** یوسړي و عبد الله بن جعفر رحمه الله ته وویل چي فلانی سړی وایي چي زه ستاسره محبت لرم، زه دده رشتیا په څه شي معلوم کړم، عبد الله بن جعفر ورته وویل چي له خپل زړه څخه فتوی وغواړه، که تا په زړه کي دده سره محبت درلودی، نو دی رشتیا وایي یعني محبت درسره لري او که تا محبت نه ورسره درلودی، نو دی درواغ وایي دی هم محبت نه درسره لري یعني غوره مالي درسره کوي، ومن هذا قيل:

وعلى القلوب من القلوب دلائل ..... بالود قبل تشا هد الا شباع

فَإِنَّمَا يَسَّرْنَٰهُ بِلِسَانِكَ لِتُبَشِّرَ بِهِ ٱلْمُتَّقِينَ وَتُنذِرَ بِهِ قَوْمًا لُّدًّا ﴿٩٧﴾

آسانه مو ګرځولی دی قرآن ستا پر ژبه ((فكلمة با بمعنى على او مراد له لسان څخه لغت عربي دی او سبب د اسانی هم داغه دی، وبالفارسية "پس جز این نیست که آسان گردانید ام قرآن رابر زبان تو، زیرا که بلغت تو است "التبشريه" ای بالقرآن "المتقین" ای المتقين عن الشرک، د زیري معنا داده چي ورته ووایي چي په قرآن کي د اوامر د خدای جل جلاله بیان مفصل سته، او د منهیاتو کامل بیان سته، تاچي تاسي وروسته تر تقوی عن الشرک په هغه عمل وکړئ او امر یي پر ځای کړئ او له منهیاتو څخه یې پرهیز وکړئ، او یا د زیري معنا داده چي په تقوی د شرک څخه د ابدي دوږخه خلاص یاست)) "وتنذر به قوماً لداً" او ته ویېروه په قرآن سره هغه قوم چي شديد الخصومة وي، چي اور د دوږخ يې مختار کړی تعصباً وعناداً وتکبراً سره د وضوح د حق په معجزاتو بيناتو سره.

**درویش وايي:** چي د حصر معنا چي د انما څخه وفهمېدل داده چي قرآن ما

ددې لپاره پر تا نه دی نازل کړی چې ته د غم په دریاب کې ځان ډوب کړه په سبب د عدم ایمان د قریشو بلکې ستا وظیفه زېری کول دي او ېېرول دي هغوی ته پر ځای کړه والهدایة بمشیته تعالی مجده دی؛

وَكَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّن قَرْنٍ

کلمه د "کم" خبریه ده مفید د کثرت ده یعني ډېر موږ هلاک کړي دي دمخه تر کفارو د قریشو "من قرن" له اهل څخه د یوه قرن، په دې آیت کې تخویف دی؛ کفارو د قریشو او دلاوره کول دي د علیه الصلوة والسلام پر انذار د قریشو.

هَلْ تُحِسُّ مِنْهُم مِّنْ أَحَدٍ أَوْ تَسْمَعُ لَهُمْ رِكْزًا ﴿٩٨﴾

آیا ته وینې "المخاطب هو النبي ﷺ او کل من هو اهل للخطاب" یعني ته وینې په یوه له حواس خمسه وو د هغو هلاک کړه سوو کفارو څخه یو څوک (والاستفهام للانکار یعني نه یې وینې؛ وکلمة من الثانیة لاستغراق النفي المفهوم من همزة الانکار) او یا ته اورې دوی لره یو صوت خفي؛ اصل ترکیب د رکز د خفا لپاره دی، حسین کاشفي رح وایي چې یعني چون عذاب ما بدیشان فرود آمد مستاصل شدند از ایشان نه شخص باقی ماند که کسی اورا به بیند ونه اواز برجای که کسی بشنود بلکه موکل قهر الهی باهیچ کس نه ساخت وهمه را بدست فنا دردام خمول ونسیان انداخت انتهی بعبارته البلیغة؛ شیخ سعدي رح وایي:

بگو آنچه دانی سخن سودمند ....... وگر هیچ کس را نیاید پسند
که فردا پشیمان بر آرد خروش ....... که اوخ چرا حق نکردم بگوش
بگمراه گفتن نکو میروی ....... گناه برد کست وجور قوی
مگو شهد شرین شکر فایقست ....... کسی را که سقونیا لایق است
چه خوش گفت یک روزدارو فروش ....... شفا بایدت دارو تلخ نوش

**درویش وایي:** چې د خدای ﷻ په توفیق سره پوره سو تفسیر د سورة مریم په وخت کې د څابنت د شنبې ورځ د ربیع الاول د میاشتې اوله سنه (۱۴۳۰) هجري قمري، اوس هم ان شا الله تعالی تفسیر د سورة "طٰه" شروع کېږي.

سُوْرَةُ طٰهٰ مَكِّيَّةٌ وَهِيَ مِائَةٌ وَّخَمْسٌ وَّثَلٰثُوْنَ اٰيَةً وَّثَمَانُ رُكُوْعَاتٍ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اللهم يسر على يد العبد الضعيف تفسير هذه السورة الجليلة بالصحة والعافية.

طٰهٰ ﴿١﴾ مَآ اَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْقُرْاٰنَ لِتَشْقٰٓى ﴿٢﴾

**درويش وايي:** چي تفصيل د مقطعات قرآنيه وو په تفسير كي د سورة البقرة حتى الوسع موږ بيان كړى دى، لكن په "طٰهٰ" كي اختلاف تر نورو مقطعاتو ډېر دى (۱) طٰهٰ د قرآن نوم دى (۲) نوم دى د سورت. نو پر دې دوه تقديره "طٰهٰ" مرفوع محلاً دى بحذف المبتدأ اى هذا قرآن او سورة (۳) "ط" ماخوذ ده له طاهر څخه او "ها" ماخوذ ده له هادي څخه چي نومان د خداى ﷻ دي، نو پر دې تقدير حرف ندأ ورسره محذوف دى والمعنى يا طاهر طهرنا من الذنوب يا هادي اهدنا الى صراط مستقيم (۴) "طٰهٰ" د عليه الصلوة والسلام له نومانو څخه دى مثل احمد وحامد وغير ذالک كما جا في الحديث "قال عليه الصلوة والسلام انا محمد وانا احمد والفاتح والقاسم والحاشر والعاقب والماحي وطٰهٰ ويٰس ويؤيد قول هذا البعض الخطاب في عليک، نو بيا هم حرف ندأ يې ورسره محذوف كړه مثل يا رسول الله يعني يا طٰهٰ افعل كذا (۵) مقاتل بن حيان رحمه الله وايي چي معنا د طٰهٰ طي الارض بقدميک يعني دواړې پښې پر مځكه ايږده د تهجد په لمانځه كي، په حديث كي د بزار او د ابن مردويه رحمه الله د علي رضي الله عنه داسي نقل راغلى دى چي څه وخت چي پر عليه الصلوة والسلام دا سورة نازل سو "يا ايها المزمل قم الليل الا قليلاً" نو عليه الصلوة والسلام به د احتياط له كبله ټوله شپه په قيام او لمانځه تېره كړه حتى چي پښې مباركي يې وپړسېدلې. من طول القيام. نو به يې يوه پښه پورته كړه چي يو ګړى هوسا سي، بيا به يې هغه پښه پر مځكه كښېښول هغه بله پښه به يې پورته كړه، نو جبرئيل ورته وويل طٰهٰ بقدميک پر صيغه د امر على الارض دواړې پښې پر مځكه ايږده يا محمد، نو پر دې تقدير اصل د طٰهٰ طأ وو چي د وطأ يطأ څخه جوړ دى، بيا يې

همزه ساکنه په ها ساکنه بدل کړی نو طٰه څندي جوړ سو او پر صيغه د امر په يو قرائت کي راغلی هم دی (٦) ضحاک، مجاهد او عطا رحمه الله وايي چي د "طٰه" معنی يا رجل ده، او قتاده رحمه الله وايي چي يا رجل يې په سرياني ژبه سره معنی ده. کلبي رحمه الله وايي چي معنی يې يا انسان ده (٧) حسين کاشفي رحمه الله وايي: يا "طا" طهارت دل اوست از غير حق تعالی و "ها" هدايت اوست بقرب حق (٨) امام جعفر رضي الله عنه وايي "طٰه" قسم بطهارة اهل البيت کريمه "ويطهركم تطهيراً" يا وطوبی او هاوية ای الجنة والنار ته يې اشاره ده (٩) په زاد المسير کي وايي چي "ط" طيبه ته اشاره ده چي مدينه منوره ده، او "ها" و مکې ته اشاره ده چي په پای کي تا ده چي په وقف کي ها گرځي، نو خدای جل جلاله په دې دوو حرمينو قسم واخستی پر ورروسته آيت.

**درويش وايي:** چي نوري ترجمې هم په تفاسيرو کي ليدل کېږي اوس بيرته د آيت د ترجمې پر خوا.

موږ نه دی نازل کړی پر تا قرآن د دې لپاره چي ته ځان دومره ستړی کړې په عبادت کي د شپې کمامر، په قاموس کي وايي الشقا الشدة والعسر. او جوهري په صحاح کي وايي چي مراد له شقاوة څخه دينوي و بدني دی وهو التعب يعني ډېره ستړيا. او بيضاوي وايي الشقا شائع بمعنى التعب آه.

إِلَّا تَذْكِرَةً لِّمَن يَخْشَىٰ ﴿٣﴾

"الا" استثنا منقطع ده يعني لكن تذكيراً للناس. او بعض علما چي توهم کوي چي تذکرةً دی مفعول له وي د "انزلنا" هغه غلطه خبره ده ولې يو فعل و دوه مفعول له ته نه متعدي کېږي. يعني د انزلنا يو مفعول له "لتشقی" ذکر سو "لمن يخشی" د هغه چا لپاره چي په زړه کي خشيت يعني بېره وي له عذاب څخه د خدای جل جلاله او رقت وي يعني زړه نرم وي لکه ډېره سخت نه وي لکه د قريشو د کفارو.

تَنزِيلًا مِّمَّنْ خَلَقَ الْأَرْضَ وَالسَّمَاوَاتِ الْعُلَى ﴿٤﴾

ای نزل تنزيلاً، نو تنزيلاً مفعول مطلق د فعل محذوف دی. له جانب څخه د هغه چا يعني چي رب العالمين دی چي پيدا کړې يې ده ځمکه او اسمانونه چي لوړ دي.

**فائده:** د اسمانو او مځکي تخصيص يې په ذکر سره وکړی. ولې چې دا دوه قوام د ټوله عالم دي او مځکه تر اسمانو د مخه کړه يا لپاره د رعايه د فاصله يعني د اخير د آيتو يا د دې سببه چې مځکه وحس ته د بشر نژدې وه تر اسمانو، او على جمع د عليا ده چې مؤنث د اعلى دی.

## اَلرَّحۡمٰنُ عَلَى الۡعَرۡشِ اسۡتَوٰى ۝

**درويش وايي:** چې دا آيت په سورت يونس کې هم راغلی دی له متشابهاتو څخه د قرآن دی، عرش په لغت کې سرير الملک والاستوا الاستقرار، مراد د لته استيلا او غلبه ده والاستيلا کناية عن الملک ولې چې استيلا د توابعو څخه د ملک ده. نو لازم يې ذکر کړی مراد ځندي ملزوم دی، په عرف کې د عربو وايي چې استوى فلان على سرير الملک على قصد الاخبار عن حاله بانه ملک وان لم يقعد على السرير المعهود اصلاً. بعض محققان وايي چې زموږ ايمان دی چې خدای ﷻ لره مکان نشته والا لزم قدم المکان. او دلائل عقليه او نقليه پر دې متفق دي چې لاقديم الا الله وانه تعالى لم يرد في القرآن من الاستوا الاستقرار والجلوس لانه يستلزم جسميته تعالى بلکې مراد د خدای ﷻ بل شی دی او موږ په تعيين د هغې ځان نه مشغولوو خوفاً من الخطا وتفويض علم المتشابهات الى الله ﷻ کما هو رأى من وقف على اسم الجلالة وما يعلم تاويله الا الله وعلى هذا المذهب اكثر السلف. امام احمد امام مالک رح الاستوا معلوم (اى ورد في القرآن) والکيفية مجهولة والبحث عنها بدعة آه په احاديثو شريفه وو کې راغلي دي چې يو سړي د دوو متشابه آيتو پوښتنه د امير المؤمنين عمر رضي الله عنه څخه وکړه، نو امير المؤمنين رض هغه سړی په دره وواهه، او له دې قسمه څخه دی "کل شئ هالک الا وجهه، يد الله فوق ايديهم" وما جا في الحديث الصحيح ان جهنم يقول يوم القيامة حين يقال لها هل امتلئت فتقول هل من مزيد حتى يضع تعالى قدمه عليها. فتقول قط قط آه. روح البيان وايي تعالى الله علواً کبيراً عما يقول الظالمون من المجسمة وغيرهم چې هغه خدای جسم بولي او هغه ته مکان وايي، او آيات وارده متشابهة او احاديث شريفه پر

ظاهره معنی حمل کوي. شیخ اکبر محي الدین ابن عربي قدس سره د رفتوحات مکیه چنین فرموده که استوا خداوند در قرآنست، ومراد بدین ایمانست. تأویل نجویم که تأویل درین باب طغیانست بظاهر قبول کنیم وبباطن تسلیم که این اعتقاد سفیان است (ای سفیان ثوري رح) اما میدانم که خداوند نه محتاج مکان است ونه عرش بردارنده اوست، که اوست بردارنده مکان (یعني خالق مکان) ونگه دارنده عرش انتهی بنقل روح البیان.

لَهُۥ مَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِى ٱلْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا وَمَا تَحْتَ ٱلثَّرَىٰ ۞

خدای ﷻ لره دي ملکًا وخلقًا چي په اسمانو کي من الملائکة والکواکب والانهار، او چي په مځکه کي من الجبال والانهار والاشجار والحیوانات والمعادن والجن والانس والشیاطین والملائکة والدقائق، او هغه شیان چي لاندي دي تر خاک نمناک. بغوي رح وایي قال الضحاک رح یعني ماورا الثری من شئ. حسین کاشفي رح وایي زمین بردوش فرشته است وقدمین فرشته بر صخره ایست، وصخره برشاخ گاوی وقوائم گاو بریشت ماهی از حوض کوثر وماهي ثابت است بر بحر، وبحر بر جهنم، وجهنم بر ریح، وریح بر حجابي از ظلمت وآن حجاب بر ثری. وعلم اهل اسمان وزمین تا ثری بیش نرسد، وما تحت الثری جز حق سبحانه تعالی نداند.

**درویش وایي:** چي ومثل هذا البیان انما یدرک بالنقل ولیس للعقل الیه سبیل.

**درویش وایي:** چي نژدې و بیان ته د کاشفي چي مظهري او روح البیان دواړه راوړی دی چي منقول له ابن عباس رضي الله عنهما څخه دی، دی وایي چي مځکي تولي پر شا د ماهي دي او ماهی پر یو دریاب دی، چي سر د ماهي ولکی د ماهي لاندي تر عرش سره جفتیږي او دریاب پر صخره دی خضرا. او شین والی ددغي صخري څخه دی او دا هغه صخره ده چي په سورة لقمان کي خدای ﷻ ذکر کړی فتکن في صخرة والصخرة علی قرن ثور" د غوایي پر ښکر او غوایي پر ثری ولاړ دی، ولایعلم تحت الثری الا الله ﷻ وذالک الثور فاتح فاه" نو هغه وخت چي خدای پاک گرده دریابونه سره یو دریاب وگرځوي دا ټول د غوایي په نس کي تنوی سي، نو

مځکه وچه پاته سي، درویش وايي ولا یعلم جنود ربک الا هو.

**وَإِن تَجْهَرْ بِالْقَوْلِ فَإِنَّهُ يَعْلَمُ السِّرَّ وَأَخْفَى ⑦**

**پوه سه:** چي قاضي بیضاوي ددې آیت داسي ترجمه کړې ده که ته یا محمد ﷺ او یا "کل من یصلح للخطاب فاعلم انه غني عن جهرک فانه یعلم السر واخفی" ددې معنی داده چي اصل جزاً د ان محذوفه ده وهو قوله فاعلم آه، او "فانه یعلم آه دلیل د محذوفي جزاً دی په ځای کي یې د جزاً راوړی دی.

**درویش وايي:** چي مراد له جهر څخه په آیت کي جهر په ذکر د خدای ﷻ دی یا په دعاً سره.

**پوه سه:** چي حسن بصري په نقل د بغوي رحمه الله وايي چي مراد د سر دادی چي یو سړی بل ته پټه خبره وکړي او اخفی داده چي په خپل زړه کي یې ساتلې وي، او د صوفیه په اصطلاح خصوصاً د نقشبندیه په اصطلاح سره ذکر خفي دی په ژبه سره او اخفی ذکر د لطائفه دی چي ژبه دخل نه پکښي لري صرف او صرف په تصور سره الله یا لا اله الا الله پر لطائفو وايي. چنانچه شاه نقشبند رحمه الله وايي:

لب به بند وچشم بند وگوش بند ..... گر نه دیدی سر حق بر ما بخند

وتفصیل هذا الذکر واللطائف في کتب النقشبندیة رحمه الله، او ابن عباس رضي الله عنهما او سعید بن جبیر رحمه الله وايي السر ماتسر في نفسک واخفی من السر ما یلقی الله في قلبک من بعد ولا تعلم انه سیحدث به لانک تعلم ماتسر به الیوم ولا تعلم ماتسر به غداً والله یعلم ما اسرت به الیوم وما تسر به غداً. او مجاهد رحمه الله وايي السر ماتسرون به من الناس واخفی الوسوسة. او علي بن طلحة رحمه الله وايي ما اسر به ابن آدم في نفسه. واخفی ما خفي علیه مما هو فاعله قبل ان یعمله. وقیل السر العزیمة علی الفعل واخفی ما یخطر علی القلب قبل العزیمة وقیل غیر ذالک.

**پوښتنه:** "یعلم" خو مضارع ده. نو ددې معنی داده چي خدای ﷻ پر حالي او استقبالي شیانو علم لري فقط او که څرنګه؟

**ځواب:** په محاوراتو کي د عربو داسي وايي فلان یحسن الی الفقرا او مراد ددې نه حال وي او نه استقبال، بلکي مراد ددوی وجود الاحسان منه في جمیع

الازمنة، ومنه قوله تعالى "يعلم السر واخفى" والمراد ان علم السر واخفى دائم مستمر، ولي چي علم د خداى ﷻ منزه دى د تقييد په زمانه پوري لانه تعالى عالم في الازل بجميع الاشياء، فالتغير عند اهل السنة والجماعة في المعلوم بالماضي والحال والاستقبال لا على علمه تعالى عن الحدوث في الذات والصفات فافهم.

ٱللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۖ لَهُ ٱلْأَسْمَآءُ ٱلْحُسْنَىٰ ﴿٨﴾

نسته شايان او مستحق د عبادت بيله ده (لفظ "الله" مبتدا دى "لا اله الا هو" يې خبر دى) ده لره دي ښائسته او زيبا نومان چي پر تولو اسماؤ كي په حسن كي بالا دي لدلالتها على المعاني هي اشرف المعاني وافضلها واعتبار حسن اللفظ بحسن المعاني.

**پوه سه:** چي حسنى تانيث د احسن دى، قال الامام الرازي رح في التفسير الكبير چي علما وايي چي د خداى پاک څلور زره نومان دي درې زره د هغو لايعلمها الا الله والانبيا. پاته نو زر (۱۰۰۰) سوه، هغه درې سوه (۳۰۰) په تورات كي دي او درې سوه (۳۰۰) په انجيل كي دي او درې سوه (۳۰۰) په زبور كي دي او سل (۱۰۰) نومان يې په قرآن عظيم الشان كي دي چي نهه نيوي يې ښكاره او معلوم دي او يو نوم چي اسم اعظم دى په حجاب كي د استتار دى "من احصاها" كه چا دا نهه نيوي نومان په ورځ كي ورد وګرځول دخل الجنة انتهى قول الامام رح.

**درويش وايي:** چي معاني ددې اسما الحسنى امام همام الغزالي قدس سره په شرح كي د اسما الحسنى د ېر ښه بيان كړې ده.

**مسئله:** بايد مسلمان پر خپلو اولادو باندي ښه ښه نومان ايږدي وفي الحديث اذا بعثتم الي رجلا فابعثوا احسن الوجه وحسن الاسم، وفي الحديث اطلبوا الحوائج عند حسان الوجوه" ولي كه حاجت ستا پر ځاى كړي په ښه ورين تندي يې پر ځاى كوي، او كه حاجت مو نه كړي اجرا يه ښه قول جواب دركوي، په يوه روايت كي راغلي دي چي يو صالح عالم او حكيم ته دوه كسه ورغله چي موږ ته وصيت وكړه يو حسن الوجه او بل قبيح الوجه و، حكيم اول حسن الوجه ته وويل چي ته

حسن يې قبيح کار مه کوه، او قبيح ته يې وويل که ته قبيح کار وکړې لا به دې قبح زياته سي. درويش وايي چې حکيم په حقيقت کې دواړو ته په نصيحت وکړی.

وَهَلْ أَتَىٰكَ حَدِيثُ مُوسَىٰٓ ﴿٩﴾

آيا تا ته يا محمد (ﷺ) رسېدلې ده قصه د موسی. دا استفهام لپاره د تقرير يعني قد اتاک تلک القصة.

**پوه سه**: چې دا بيان د قصې د موسی عطف دی پر ماقبل بيان د نبوت د عليه الصلوة والسلام يعني ما انزلنا عليک القرآن آه من عطف القصة، په دې قصه کې عليه الصلوة والسلام باعثه کول دي پر صبر کولو په سخت حالاتو کې د نبوت لکه موسی ﷺ چې تحمل کړی ؤ.

**تنبيه**: په صحيح رواياتو کې په ثبوت رسېدلې ده چې څه وخت چې موسی د خپل خسر شعيب عليه السلام څخه رخصت اخستی يعنې د رخصت وخت يې نژدې سو، نو موسی عليه السلام خپلې کورولا ته چې د شعيب عليه السلام لور وه داسې وويل چې ته دې خپل پلار ته وواېه چې مور ته يو څو پسونه او مېږې راکړه او شپانه هم راسره کړي چې زمونږ دا پسونه پيايي. چونکه د شعيب عليه السلام لور اميدواره هم وه نو موسی عليه السلام ورته وويل چې پلار ته دې وواېه چې يوه خادمه هم در کړي يعنې د دې لپاره که چېرې د لارې په اوږدو کې د زېږېدو واقعه پيښه سي هغه به ستا خدمت وکړي د وضع الحمل په سخت حال کې. د موسی عليه السلام کورولا هم خپل دا خواهشات پلار ته بيان کړه، نو پلار يې هغه غوښتنې ورپوره کړې. نو عدد د سفر کونکو موسی عليه السلام کورولا، شپانه او خادمه دغه څلور نفره.

**پوه سه**: شعيب عليه السلام څو لس کاله په موسی عليه السلام پسونه وپيول او تر موسی دمخه د د لوړو د پسو پيول پر غاړه درلوده، اوس شعيب عليه السلام په خپله وعده وفا وکړه، نو موسی او دده کورولا يې سره يو ځای کړه يعنې واده يې ورکړی تر هغه وروسته پينځه کاله نور موسی عليه السلام د شعيب عليه السلام په کور کې پاته سو چې مدد د عمر يې څلوېښت کاله ته ورسېده رخصت يې ځندي واخستی، نو د موسی عليه السلام د اول ورتګ څخه پينځلس کاله تېر سوه، شعيب عليه السلام څو دمخه لا

مالداري درلوده، نو د پينځلسو کالو په دوران کي خدای ﷻ ده ته لوی مالي قدرت ورکړی حتی چي د لور سره يې مذکوره کومک وکړی، او دا احتمال هم سته چي شعيب علیه السلام په لوړو شپني کوله زامن يې درلوده لکن کوچني وه. اوس چي پينځلس کاله تېر سوه زامن يې ځواتان سوه له شعيب علیه السلام ځخه يې بيا رد کور ساتنې او د پسو د څرېدلو له اوږو ځخه واوښتي.

إِذْ رَأَىٰ نَارًا فَقَالَ لِأَهْلِهِ امْكُثُوا إِنِّي آنَسْتُ نَارًا

وه يې ويل و اهل ته خپل چي تاسي دلې اوسېږئ په ماپسي مه راځئ، ما په سترګو وليدی اور.

**درويش وايي:** چي په شرح المشارق کي وايي چي الاهل يفسر بالازواج والاولاد والاقارب والعبيد والاماً والاصحاب، مظهري رح وايي لامرئته والرفقة آه، دا اشاره اجمالي وه تفصيل چي فقير بيان کړی.

**درويش وايي:** چي په هغه تفصيل او قصه چي ما بيان کړه دا سوال دفع سو چي دده سره خو يوه ماينه ورسره وه، نو امر د "امکثوا" چي جمع ده و چاته دی؟ بايد امکثي يې ويلی وای فافهم.

لَعَلِّي آتِيكُمْ مِنْهَا بِقَبَسٍ أَوْ أَجِدُ عَلَى النَّارِ هُدًى ⑩

شايد چي زه راوړم تاسي ته يوه شغله د لرګي په سر کي (د اور سکروټه) چي د لوی اور ځخه به يې راواخلم، او يا به زه پيدا کړم پر اور باندي په راتول سوو خلګو کي لارښوونکی د لاري، راوي د قصې وايي چي د موسی علیه السلام ځخه لار هم ورکه سوې وه، او کلمه د "او" په ظن کي د موسی لپاره د منع الخلود ده، ولي جمع خو يې روا ده.

**درويش وايي:** چي په بل ځای کي د قرآن عزيز داسي راغلي دي "لعلکم تصتطلون" شايد چي تاسي به ځانونه په تاوده کړئ، يعني هغه شعله چي زه يې راوړم نور بتي به پر واچوو تاسي به ځانونه په تاوده کړئ، راوي وايي چي په دغه شپه ډېر يخ و.

**فائده:** موسی علیه السلام ولې لعلي ووايه. داسې يې نه وويل آتيكم. لـه دې سببه چې دده يقين نه ؤ پر وفا بالعهد سره. وهذا شان الانبياء عليهم السلام.

# فَلَمَّآ أَتَىٰهَا نُودِيَ يَٰمُوسَىٰٓ ﴿١١﴾

چې ورغلی موسی (علیه السلام) د اور و ځای ته، نعره وکړل سوه يا موسی، بغوي رح وايي چې موسی علیه السلام چې هغه ځای ته ورغلی يوه شنه درخته ولاړه وه شاوخوا اور پر راتاؤ سوی ؤ لكه يو نادر روښانه شی چې نه شين والی د درختي د اور وه رڼا ته تاوان رسوي او نه ضوء د اور درختې ته تاوان رساوه. راوي وايي چې موسی علیه السلام د تعجب په درياب كې حيران سو او لاسونه يې پر ستر گو ونيول.

**يوه سه:** چې اكثره مفسرين وايي چې موسی علیه السلام چې رڼا وليدل هغه اور نه ؤ بلكې نور ؤ صرف دده گمان د اور پر كېدی او دوی وايي چې دا نور د رب جل وعلى ؤ وهو قول ابن عباس وعكرمه رضي الله عنهما وغيرهما. او سعيد بن جبير رح وايي هي النار بعينها وهي احد عجائب قدرته تعالى كمامر من قول البغوي آنفًا. موسی علیه السلام د اور پر شاوخوا هيڅ بني آدم ونه ليدی لكه دده چې گمان ؤ چې وه يې ويل او اجد على النار هدًى.

# إِنِّيٓ أَنَا۠ رَبُّكَ

په تحقيق زه ستا خدای جل جلاله يم. بغوي رح وايي چې وهب بن منبه رح وايي "نودي من الشجرة يا موسى" فاجاب سريعًا زه نه پوهېږم څوک ماته نارې وهي او داسې يې وويل چې اواز دې اورم ولا ادري مكانك فاين انت؟ قال انا فوقك ومعك وامامك وخلفك واقرب اليك من نفسك. نو موسی علیه السلام پوه سو چې داسې هيئت نه ښايي مگر د خدای جل جلاله سره. نو يې يقين سو چې خبري كونكي خدای جل جلاله دی. او موسی علیه السلام دا خبري د شپږو جهتو څخه اورېدلې او په ټولو اندامو نه يوازي په غوږو. دا بل دليل سو و موسی علیه السلام ته چې خبري كونكی رب عزوجل دی. نو هغه وسوسه د ابليس هم له ده څخه دفعه سوه چې شايد خبري كونكی به شيطان وي كما وسوس اليه قاله البيضاوي رح.

## فَاخْلَعْ نَعْلَيْكَ

وکاره چوتي دي، بين المفسرون رحمهم الله دا امر د خلع نعلين لپاره د دا ذيل سببو ؤ (۱) بعض لکه بغوي رح د ابن مسعود رض څخه يې روايت کړی دی چې د موسی ع چوتي د خره د پوست وې غير مدبوغ انتهى. نو خطاب پر دې تقدير د تأديب دی. لکن حسين کاشفي رح وايي اصح آن است که نعلين از پوست بقر بوده طاهر تين آه (۲) بعض مفسرين رح وايي چې لڅې پښې ادب او تواضع په لوی دربار کې لکه د مناجات د رب العالمين. څکه بشر الحافي رح او نور صالحان به لڅې پښې ګرځېدل ...... بيت:

ګنجی که زمين و اسمان طالب اوست ... چون درنګری برهنه پايان دارند

(۴) مجاهد او عکرمه رح وايي چې ددې سببه په خلع النعلين موسی عليه السلام امر کړی چې دده په پښو پوري خاوري د ارض مقدسه وموښلې فتناله برکتها په هر صورت موسی عليه السلام چوتي وکښلې او د شپلې هغه خوا ته يې وغورځولې.

## إِنَّكَ بِالْوَادِ الْمُقَدَّسِ طُوًى ﴿١٢﴾

په تحقيق ته په پاکه شپله کې يې چې طوی يې نوم دی. نو طوی عطف بيان دی د واد المقدس روح البيان. او په قاموس کې وايي چې مطلق وادي هغه خلاص فارغه ځای دی په منځ کې د غرو يا د غونډيو. او طوی د يو شپلې نوم دی په شام کې، نو که يې څوک په تنوين وايي. نو منصرف دی په تأويل د مکان. او که يې څوک بې تنوينه وايي. نو په تأويل البقعة دی غيرُ منصرف للعلمية والتانيث.

**قانون:** په نومانو کې د بلدانو او د قريو انصراف او عدم انصراف دواړه روا دي بالجهتين المذکورتين فافهم.

## وَأَنَا اخْتَرْتُكَ فَاسْتَمِعْ لِمَا يُوحَىٰ ﴿١٣﴾

او ته ما برګزيده کړې يعني للنبوة والرسالة. نو غوږ ونسه هغه څه ته چې تاته يې وحي کړل کېږي يعني زما له خوا څخه يعني من الامر والنهي.

**پوه سه:** چي كلمه د لام متعلق ده په فاستمع پوري او لام زائد دى په مفعول كي لان استمع متعدي بنفسه كما في ردف لكم، او مظهري رح وايي چي متعلق دى په دواړو مفعولو پوري يعني اخترتک واستمع على التنازع آه ولا يخفى مافيه فتامل.

## إِنَّنِيٓ أَنَا ٱللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّآ أَنَا۠ فَٱعۡبُدۡنِي وَأَقِمِ ٱلصَّلَوٰةَ لِذِكۡرِيٓ ﴿١٤﴾

په تحقيق سره زه خداى يم نشته مستحق د عبادت بيله ما. دا بيان د اصل الاصول دى چي توحيد دى. او زما عبادت كوه خاصةً لاغيري دا كمال د عمل دى يعني د يوه خداى ﷻ عبادت كول.

**پوه سه:** چي دا آيت بيان دى د مايوحى "واقم الصلوة" او سم كوه لمونځ.

**پوښتنه:** په "فاعبدني" كي خو لمونځ هم داخل وُ، نو د جلا راوړلو يې څه فائده؟

**ځواب:** تخصيص بعد التعميم لكمال الاهتمام بها وعلو منزلتها في سائر العبادات. قال رسول الله ﷺ "الصلوة عماد الدين" لمونځ ستن او ميل دى د دين. رواه ابو نعيم والبيهقي، وفي رواية فمن اقامها فقد امام الدين ومن هدمها فقد هدم الدين. وفي رواية عن علي رضی الله عنه الصلوة عماد الايمان، وفي رواية عن انس رض الصلوة نور الايمان، وروى البخاري ومسلم عن ابن مسعود رض ده وويل چي ما سوال وكړى د آن حضرت ﷺ څخه اى الاعمال احب الى الله قال الصلوة. او مسلم له جابر رض څخه روايت كړى دى چي رسول الله ﷺ وويل بين العبد والكفر ترک الصلوة. او احمد، بيهقي او دارمي له عبد الله بن عمرو ابن العاص رض روايت كړى دى چي عليه الصلوة والسلام يوه ورځ د لمانځه بيان كاوه او وه يې ويل من حافظ عليها (كې دوام وكړى پر لمانځه) كانت له نوراً او برهاناً ونجاةً يوم القيامة ومن لم يحافظ عليها لم يكن له نور والبرهان ولانجاة يوم القيامة وكان يوم القيامة مع قارون وفرعون وهامان وابي بن خلف.

**درويش وايي:** چي دا حديث يا محمول دى چي تهاوناً لمونځ نه كوي يا محمول دى پر غايت زجر پر ترک د لمانځه. والى ظاهر هذه الاحاديث ذهب احمد بن حنبل رح ان من ترک الصلوة متعمداً فقد كفر. او بل تخصيص د لمانځه په ذكر

سره دادی چې فقهـا علیهم الرحمة وايـي چې لمونځ حسـن لذاتـه دی بخلاف اکثر العبادات فان الصوم حسن لاجل قهر النفس الامارة بالسوء، او زکوة لپاره د دفع د حاجت د فقیر. او حج لتعظیم بیت الله الشریف ونحو ذالک.

"لذکري" لپاره د ذکر زما. ولې چې د لمانځه ټولـه اجزا ذکر د خدای تعالی دي او شغل دی د خدای جل جلاله په زړه کې چې حضور قلبي پر ځای کوي، او پـه ژبه سره چې قرائت د قرآن دی او تسبیحات د رکوع او سجدې او پـه قعده کې التحیات ویل دي او په اعضاؤ سره یعني قیام، کوع او سجده ده.

**درویش وایـي:** چې لمونځ پـر شرائطو او ارکـانو او سنتو او مستحباتو مشتمل وي او په حضور قلبي وي، د داسې لمانځه په باره کې خدای پاک وايي "ان الصلوة تنهی عن الفحشاً والمنکر الآیة" او بعض یې داسې ترجمه کوي لان اذکرک بالرحمة والثنا. روی البخاري و مسلم عن ابي هریرة رضي الله عنه قال رسول الله صلی الله علیه وسلم چې خدای جل جلاله وايي "انا عند ظن عبدي بي وانا معه اذا ذکرني فان ذکرني في نفسه ذکرته في نفسي وان ذکرني في ملأ ذکرته في ملأ خیر منه" ژباړه: علیه الصلوة والسلام وویل چې خدای جل جلاله وايي چې زه پر ظن د بنده یم پر ما باندې او زه ده سره ملګری یم یعني بلا کیف او یا په علم سره پر حال د ده چې دی ما ذکر کوي. نو که یې زه ذکر کړم په زړه کې یا معنی دا چې ده یوازې زما ذکر کاوه زه به یې هم په نفس کې ذکر کړم.

**درویش وایي:** چې اطلاق د نفس پر خدای جل جلاله باندې مشاکلة دی لقوله في نفسه آه. مثل جزا سیئة سیئة بمثلها. یا معنی داده چې زه به یې هم تنها ذکر کړم یعني ببله جماعته د ملکو کمایدل علیه مابعده. یعني کـه یې زه ذکر کړم په جماعت کې د خلګو زه به هغه سری ذکر کړم په داسې جماعت کې چې د هغه تر جماعت به ښه وي یعني في جماعة الملائکة الکرام.

**درویش وایـي:** چې روح البیـان فقـط اولـه معنـی راوړې ده. او مظهـري او روح المعاني دا معنی هم راوړې ده چې "لذکری" بیان د علت د اقیم الصلوة نه دی بلکې قید دی د "اقیم الصلوة" لپاره. والمعنی لمونځ کوه خاص الخاص زما

د ذکر لپاره، ریا مه په کړه او غیر له ما څخه بل شی مه پکښې یادوه.

**درویش وایي:** چې فرضي لمونځونه چې څوک کوي په نفس کولو کې خو یې ریا نسته. اما په هیئت کې یې د ریا امکان شته. یعني د خلګو په حضور کې په ښه طمانیت او مراعات د تعدیل الارکان لمونځ کوي او چې یوازې وي چابک چابک بېله مراعات د تعدیل الارکان لمونځ کوي. نو دې سړي لره د خلګو په حضور د لمانځه د هیئت ثواب خو نسته البته د اصل لمانځه غاړې یې خلاصې سوې. لکن په نوافلو لمونځو کې هم په اصل کې او هم په هیئت کې یې ریا کاري مهم ځای لري فتدبر. او بعض مفسرانو حذف د مضاف مختاره کړی یعني "اقم الصلوة لذکر صلوتي" یعني که د سړي لمونځ هېر ؤ هر وخت چې یې ور پیاد سي ودې ګذاري لکه په حدیث کې د بخاري او مسلم چې راغلي دي په روایت د انس بن مالک قال رسول الله ﷺ من نسي صلوةً او نام عنها فکفارتها ان یصلیها اذا ذکرها" وفي روایة لاکفارة لها الا ذالک ثم اورد علیه الصلوة والسلام دا آیت په دلیل کې قال الله تعالی "اقم الصلوة لذکري" ویؤیده ماجا في قرائة لهذه الآیة "للذکری" فافهم یعني بدون الاضافة.

## اِنَّ السَّاعَةَ اٰتِيَةٌ اَكَادُ اُخْفِيْهَا

په تحقیق قیامت راتلونکی دی.

**پوه سه:** چې "ان الساعة آتیة" یا تعلیل د امر بالعبارة فالمعنی چې تاسي عبادت کوئ ولې چې ورځ د قیامت راتلونکې ده او د عبادت ثواب به هورې درکړل سي، او یا جمله مستأنفه د بیان فوائد العبادة "اکاد اخفیها" اخفش یې داسې ترجمه کړې ده ارید اخفیها ای اخفی وقتها یعني ترجمه اکاد یې په ارید سره کړې ده، او بغوي وایي چې لفظ د "اکاد" زائد دی ومعنی الآیة اخفی وقتها آه. وفیه مافیه فتامل، وفي الجلالین استرها للتعظیم والتهویل د لفظ اکاد صله انتهی ای زائدة.

**درویش وایي:** چې فائده د اخفی یې داده چې خلګ هر وخت په حذر کې وي له قیامت څخه. لکه لفظ د عسی په بل آیت کې "قل عسی انیکون قریباً"

لِتُجْزٰى كُلُّ نَفْسٍۭ بِمَا تَسْعٰى ﴿۱۵﴾

تاچي جزا ورکړه يعني په هغه ورځ کي د قيامت وه هر نفس ته يعني هر سړي ته جزا د ما تسعی (په حذف د مضاف) يعني چي د عمل کړی وي په دنيا کي "ايماناً وطاعةً او کفراً ومعصيةً" والجزا اما الجنة واما النار.

**يوه سه:** چي حرف جر متعلق په آتية پوري دی وما بينهما جمله معترضه ده او کلمه د ما يا مصدريه ده ای بسببها او يا موصوله بحذف العائد ای بعمل سعی فيه.

فَلَا يَصُدَّنَّكَ عَنْهَا مَنْ لَّا يُؤْمِنُ بِهَا

نو تا دي منع نه کړي له ملاقات څخه د خدای ﷻ يا له ايمان څخه د اتيان الساعة يا عن اقامة الصلوة يا عمل للساعة) وعلى جميع الوجوه الضمير المونث راجع الى الساعة فافهم) هغه څوک چي ايمان نه لري پر ساعت.

**فائده:** ضمير مخاطب يصدنك راجع دی و موسی ته، او کلمه د "من آء" فاعل د فعل دی، نو ظاهر د آيت على ماقال روح البيان وروح المعاني والمظهري والبيضاوي، نهی د کافر دی له صد څخه د موسی عليه السلام له ايمان څخه پر قيامت، او نهي په معنی کي د موسی عليه السلام دی ته قبول د قول د مانع عن الايمان بالساعة مه کوه. ددې مثال داسي دی لکه يو سړی چي ﷺ ته ووايي لا ارينک هٰهنا چي په دې قول کي ظاهراً نهي د ځان دی له رؤيت څخه د مخاطب او په حقيقت کي نهي د مخاطب دي چي ته په ما ځان نه وينه فافهم.

**يوه سه:** چي مراد من لا يؤمن آه څخه کفار دي لکه فرعون وقومه القبط كما سيئاتي عنقريب.

وَاتَّبَعَ هَوٰىهُ فَتَرْدٰى ﴿۱۶﴾

"واتبع هواه" عطف دی پر "لا يؤمن" او متابعت کوي د خپلو خواهشاتو نفسيه وو او لذات فانيه وُ او په عاقبت کي فکر نه وهي او پر جزا د ورځي د قيامت ايمان نه لري "فتردی" او که يي فرضاً ته انصداد په صد سره وکړې نو ته

په هلاک سي "فتر دی" ځواب د نهي دی.

## وَمَا تِلْكَ

**پوه سه:** چي کلمه د "ما" مرفوع محلاً ده مبتدأ ده او "تلک" په محل کي د رفع یې خبر دی، او کلمه د "تلک" په معنی د هذه ده او استفهام لپاره د تقریر دی یعني چي موسی علیه السلام په لکړه وهلو سره وروسته عجائب د قدرت وویني چي مار سي نو دا به یې یقین سي چي دا معجزه ده په مقابل کي د منکر.

**پوښتنه:** که خدای جل جلاله پاک ورته ویلي وای چي د کافرانو سره د مقابلې په وخت کي دا لکړه غورځوه مار کېږي به، څه استحاله به لازمه سوې وای؟

**ځواب:** چي موسی علیه السلام دلته په کوه طور کي یعني وادی المقدس کي د لکړي مار والی او بیرته د موسی علیه السلام را اخستل نه وای تجربه سوی، نو په وخت کي د مقابلې که مار سوی وای. موسی علیه السلام په خپله لاس نه سوای وروړلای یعني بېرېدی به.

## بِيَمِينِكَ يَٰمُوسَىٰ ﴿١٧﴾

ای کائنة بیمینک" نو دا لفظ حال دی او عامل یې معنوي دی یعني معنی د اسم اشارة چي اشبه ده "مثل ما جا في القرآن العزیز هذا بعلي شیخاً" فلا یرد ان الحال ما یبین حال الفاعل او المفعول به کما تقرر في النحو، که څه هم ندا په لفظ د یٰموسیٰ په سر کي د قصې تېره سوې وه لکن دلته چي مکرر راوړی د پاره د استیناس د ده.

**پوه سه:** چي تخصیص د یمین چي وکړی او داسې نه وویل سول "ما یدک مع انه اخصر لاحتمال انیکون في یده الیسری شیئاً آخر کالخاتم فیستبه الحال علی موسی علیه السلام.

## قَالَ هِيَ عَصَايَ

موسی علیه السلام وویل چي دا زما لکړه ده حسین کاشفي رحمه الله وایې "ان عصا از چوب بهشت بود وسر آن دوشاخه بود ودر زیر او سنان آهن بود طول او ده گز

بزراع موسی نامش علیق بود یا بتحه آدم ﷺ از بهشت آورده قرنا بعد قرن میراث بشعیب ﷺ رسیده بود و ازو بموسی ﷺ انتهی او بعض مفسرین وایي چي طول یې (۱۲) زراع وو بزراع موسی استودعها ملک من الملائکة بصورة انسان عند شعیب ﷺ انتهی.

**أَتَوَكَّؤُا عَلَيْهَا وَأَهُشُّ بِهَا عَلَىٰ غَنَمِي وَلِيَ فِيهَا مَآرِبُ أُخْرَىٰ ﴿١٨﴾**

زه تکیه کوم پر دې لکړه یعني چي ستړی سم، او یا تر لوی لښتي غوړځم او یا پسونه چي یو ځای په وښو کي ایله کړم زه پر دې تکیه وکړم ورته ولاړ یم. او زه بلګونه د درختو رارژوم په دې لکړه د پسو دپاره یعني د درختي ښاخ په ووهم خزان بلګونه یې توی سي پسونه یې وخوري. او ماله په دې لکړه کي نور مقاصد هم سته.

**پوه سه:** چي "أخری" صفت د مآرب دی مفرد چي راوړی او سره د دې چي مآرب خو جمع ده نو قیاس چي اخر ویل سوی وای چي جمع ده. لکن مآرب یې تأویل د جماعت کړی چي مفرد سي او د آیاتو پایونه به سره برابر سي چي په عربي یې رؤس الآی بولي د نورو مآرب د موسی ﷺ څه مراد وه (۱) پر اوږه یې ونسم په سر پوري یې مشکوله دابو یا زاد السفر وځړوم (۲) پر دوه ښاخه د لکړي پټو واچوم پر ځان سایه جوړه کړم لکه سایوان (۳) د یو ځا څخه چي او به را کاږم که تناو لنډ وو دلکړي مچک په کښي بند کړم اوبه په راوکاږم (۴) که یو درنده مي په پسو ګډ سي په دغه لکړه مقابله او جنګ ورسره کوم (۵) روح البیان وایي چي د شپې به دغه دوو سرو دلکړي لکه څراغان رڼرا بې کوله (٦) او دې لکړي به د ده خبري هم کولې انتهی والله اعلم.

**پوښتنه:** خدای ﷻ خو د موسی علیه السلام څخه پوښتنه وکړه "وما تلک" اه نو د دې سوال د جواب خو فقط "هي عصاي" کافي وو نو موسی علیه السلام دا نور بیان ولي په جواب کي راوړی؟

**ځواب:** اهل عشق وایي چي موسی علیه السلام چي پر قدر د جواب بالا بود وکړی یعني تر عصای او نور بسط یې کلام ته ورکړی "التذاذ بکلام المحبوب" لکن

مجملاً يې په آخير كې دا وويل "ولي فيها مآرب اخرى" هغه يې كړه "ادباً مع الله عز وجل وخوفاً من تطويل الكلام" قاضي بيضاوي رحمه الله وايي چې د موسى عليه السلام دا خيال سو چې مقصود په سوال كې د رب العزة جل جلاله پوښتنه د ماهيت د ما في اليمين او بيان د منافعو د لكړي دى نو ځكه يې منافع د لكړې تفصيلاً او مجملاً ورته بيان كړه تا چې وروسته دا لكړه مار وګرځيدى په پوه چې دا امر خارق العادة ده او معجزه بې وګڼري.

## قَالَ اَلْقِهَا يٰمُوْسٰى ﴿١٩﴾

خداى پاك ورته وويل لكړه دې پر ځمكه واچوه يعني د تكيې شى دې ايسته كړه چې د انبيا عليهم السلام تكيه پر خداى جل جلاله بايد وي او بل دا چې عجائب د قدرت د خداى جل جلاله به پكښې ويني چې په زړه كې به تصور هم وو "والالقا والطرح والنبذ بمعنى واحد.

## فَاَلْقٰىهَا فَاِذَا هِيَ حَيَّةٌ تَسْعٰى ﴿٢٠﴾

نو موسى عليه السلام بلا تراخ لكړه پر ځمكه وغورځول نو ناببره هغه لكړه مار سوه چې چابك چابك پر ننس روانه وه.

**پوه سه:** چې خداى جل جلاله د قرآن په بل ځاى كې داسي ويلي دي "كانها جان" جان سپك مار ته وايې چې په بدن كښنى وي چې په پښتو يې كوچه مار بولي او په بل ځاى كې "فاذا هي ثعبان" ثعبان هغه لوى مار ته په نوع كې د مارانو وايي چې په پښتو يې افعي مار بولي.

**پوه سه:** چې "حية" مشترك لفظ دى په مابين كې د صغير چې جان يې بولي او به مابين كې د لوى چې ثعبان يې بولي "والجمع بين الجان والثعبان" په دوو وجهو مفسرينو كړې ده چې لكړه په ابتدايي حالت كې لكه د لكړې جسم چې د نري مار جان به سوه وروسته كرار كرار پرسېدله چې په انتهائي حالت كې به ثعبان ځندي جوړ سو او بعض مفسرين رحمهم الله وايي چې په ابتدايي حالت كې په جسم كې د ثعبان وه او چابك تګ يې د جان وو.

**درويش وايي:** چې دا توجيه موافق د ظاهر د عباراتو سره د قرآن حيث قال

کانها جان ولم یقل فاذا هي جان کما قال فاذا هي ثعبان فتدبر هداک الله.

ابن اسحاق وایي چي لکره چي ثعبان سوه چي په مخه به هر شی ورتی که ذبره وای که لرگی هغه بې تیراواه او سترگي لکه اور بربښېدې او د غاښوڅخه یې رغ پورته کیدی او چي خوله بې وازه کړه (۴۰) څلوېښت گزه یې د دوو کرغښیو تر مابین فاصله وه موسی علیه السلام تُنْدي وېرېدی "ولم یعقب" ولي چي بېره طبع بشري ده وروسته یې د خدایه څخه حیاً په زړه کي پیدا سوه ودرېدی.

**پوښتنه:** موسی علیه السلام خو هم نبي وو نو ولي د مار څخه وېرېدی کما حکی الله تعالی "ولّی مدبراً ولم یعقب" او ابراهیم علیه السلام د اوره د نمرود نه بېرېدی حتی چي دی یې په لاسونو په منجنیق نمرودیانو وغورځاوه او ورته نارسیده جبرئیل ورته راغلی په امر د خدای عز وجل امتحاناً جبرئیل ورته وویل "بل لک من حاجة قال ابراهیم علیه السلام اما الیک فلا" جبرئیل ورته وویل خدای جل جلاله ته سوال د نجات وکړه ابراهیم علیه السلام ورته وویل حسبي من سؤالي علمه بحالي الی آخیر القصة؟

**ځواب:** د موسی علیه السلام ابتدائي حالت د نبوة او د ابراهیم علیه السلام انتهائي حالت وو د رسالت "وفرق عظیم بین الابتداً والانتهاً للرسل والانبیاً علیهم السلام ته نه گوري چي علیه الصلوة والسلام ته چي جبرئیل په صورت بشري ځان ورښکاره کړی چي علیه الصلوة والسلام د جبل حرا څخه د کور خواته را روان وو او علیه الصلوة والسلام یې په څیگر پوري تینگ ونیوی، نو ورېرېدې دی او کورته راغلی چي ابتدائي حالات وو نبوت د ده حتی رفته رفته خدای جل جلاله دونه استعداد کامل ورکړی په انتهائي حالتو کي چي جبرئیل پر خپل صورت اصلي ولیدی په لیلة المعراج کي کما قال الله "ولقد رآه نزلة اخری عند سدرة المنتهی.

## قَالَ خُذْهَا وَلَا تَخَفْ سَنُعِيدُهَا سِيرَتَهَا الْأُولَىٰ ﴿٢١﴾

خدای پاک ورته وویل "یموسی" مخ پر را واړوه او واخله دا مار یعني بېرته په راسته لاس او بېرېږه مه ځندي (لقوله تعالی لا یخاف لدی المرسلون) ژر دی چي موږ به را وگرځو دغه ستا لکړه (چي اوس د مار په شکل ده) وهیئت او حالت ته چي د مخه وُ یعني بیرته به د لرگي لکړه سي.

**یوه سه:** چي روح المعاني، روح البیان او مظهري رحمهم الله وايي چي "سيرت" پر وزن د فعلة دی مشتق من السير چي تګ ته وايي دلته مجازاً په معنی د طريقې او هيئت دی.

**فائده:** "سيرتها" منصوب دی په نزع د حرف جر ای الی سيرتها الاولی بعد الاخذ" بغوي رحمه الله وايي چي موسی علیه السلام يو پټو در لودی د وريو نو څه وخت چي خدای ﷻ د ته وويل "خذها" ده پټو پر لاس ويېچی "فامره ان يكشف يده" چي لاس دي لڅ کړه ده لاس لڅ کړی د مار وخولې ته يې ور حمله کړه "فاذا هي عصاكانت" او د ده لاس په هغه ځای کي وو چي د به يې خو اپر لګړه تکیه کوله لاس بې پر دغه ځای ایښوو ی يعني مابين الشعبتين. قال المفسرون رحمهم الله اراد الله ان يری موسی ما اعطاه من الآية التي لا يقدر عليه مخلوق لئلا يفزع منها اذا القاها عند فرعون.

**درويش وايي:** چي په پښتو ژبه د دغه عبارت عربي بيان د مخه تير سو.

وَاضْمُمْ يَدَكَ إِلَىٰ جَنَاحِكَ

او جوت کړه لاس خپل (فقير وايي که څه هم لاس يو اندام دی تر اوږې پوري لکن مراد ځندي دلته کف يمنی دی).

**یوه سه:** چي د انسان دوه جناحان دي چي په پښتو يې بغلونه بولي دلته مراد ځندي چپه بغل دی. يعني کف يمنی دي په چپه بغل کي ونسه. بيضاوي وايي چي دوو بغلو ته دانسان جناحان وايي استعارة من جناحي الطائر يعني د مرغه دوه وزره په قاموس کي وايي چي جناح يد او عضد او ابطا ته وايي آه. مراد ځندي دلته ابط دی يعني تخرګ.

تَخْرُجْ بَيْضَاءَ مِنْ غَيْرِ سُوٓءٍ ءَايَةً أُخْرَىٰ ﴿٢٢﴾

را وبه وزي مجزوم دی جواب د امر دی والتقدير اضمم آه واخرج تخرج، سپين چي ځلېږي به حال دی من الضمير المستكن په تخرج کي بېله عيبه او بد اسېدو چي دا کنايه ده له پس څخه. ولي چي طبائع د خلګو له پيسه څخه نفرت کوي، بغوي رحمه الله وايي چي قال ابن عباس رضي الله عنهما كان ليدموسی علیه السلام نور ساطع يضئ بالليل والنهار كضوء الشمس والقمر آه.

**درویش وایي**: چي د دې حدیث دا معنا نه ده چي موسی علیه السلام چي به يو وار لاس داخل تحت البغل. نو د همېشه د پاره د ورځي د پاره به لکه لمر پرېښې دی او د شپې لکه سپوږمی. "لانه لم يقل احد من المفسرين رحمهم الله بلکه مراد دا دی چي د تر بغل به لاس لاندي کړی چي راوبې استی لکه لمر يا سپوږمی پرېښېدی به حتی يری الناس چي بېرته بې تر بغل لاندي کړی پر خپل اصلي رنګ به را ووت "آية اخرى" دابله معجزه د ستا پر صدق په دعوی کي د نبوت ولي چي دا هم خرق العادة کار دی کما هو معنى المعجزة لانها امر خارق للعادة الالهية اظهره الله على يد مدعى النبوة تصديقا له" د اخري معنا دا ده چي غير د عصا څخه.

**پوه سه**: چي آية حال ثاني د ضمير څخه د تخرج او من الضمير في بيضا" او چا چي ويلي دي آية مفعول به په اضمار د خذ آه تکلف مستغني عنه.

لِنُرِيَكَ مِنْ اٰيٰتِنَا الْكُبْرٰى ﴿۲۳﴾

**پوه سه**: چي کلمه لام تعليل د فعل مقدر ای فعلنا ما فعلنا يعني عصا مو مار کړه او يد مو بيضا کړی چي په تا وويښو بعض آياتو څخه چي دا بعض لوی مهجزې دي ستا دال پر صدق د دعوې د نبوة ستا.

**درويش وايي**: چي د دې عبارت معنٰی دا ده چي نوري معجزې به هم وي لکن دا دوې لوري معجزې دی" کما جا في قوله تعالى "ولقد أتينا موسٰى تسع أيات بينات"

اِذْهَبْ اِلٰى فِرْعَوْنَ اِنَّهٗ طَغٰى ﴿۲۴﴾

ولاړ سه وفرعون يعني د مصر سره د دغو معجزو او د ته دعوت ورکړه د توحيد د معبود بالحق او دغه رنګه و عبادت ته د هغه. فرعون تر حد تجاوز کړی دی په ګمراهي کي حتی چي د الوهيت دعوه يې کړې ده.

**پوه سه**: چي دا جمله تعليل دی لقوله "اذهب".

**پوه سه**: چي فرعون طاغي اکبر وو په دنيا کي حتی قال "انا ربكم الاعلى"

قَالَ رَبِّ اشْرَحْ لِيْ صَدْرِيْ ﴿۲۵﴾

موسٰی علیه السلام وويل يا ربه فراخه کړې زما سينه يعني زړه چي يو معارف حقه

پکښې ځای سي چي په عقل سره يې ادراک نه کېږي او بل دا چي ما ته حق اليقين په زړه پيدا کړي چي نفع رسول او ضرر رسول صرف او صرف د خدای د خوا دی حتی چي د فرعون او د ده جنودو څخه مي په زړه کي بېره پيدا نسي وانما قال موسٰی ذالک لانه کان موسٰی يخاف من فرعون لشدة شوکته وکثرة جنوده کما سيئاتي ان شآ الله تعالٰی.

## وَيَسِّرْ لِيٓ أَمْرِي ۝

او ما ته اسانه کي کار زما . يعني ما يجب علی چي پر ما واجب دي چي رسول دي د رسالت وفرعون او قبط ته او ما ته په زړه لذة پيدا کړې په تحمل کي د شدائدو د رسالت، او اسباب د تبليغ الرسالة را ته مهيا کړې او موانع د تبليغ دفع کړې الی غير ذالک من التسهيلات.

## وَاحْلُلْ عُقْدَةً مِّن لِّسَانِي ۝

او خلاصه کړې غتېه د بنديدو زما د ژبې څخه يعني په وخت کي د خبرو بغوي رحمه الله وايې چي موسٰی عليه السلام په غېږ کي د فرعون ناست يعني په طفوليت کي نو فرعون يې په چپلاخه وواهه او ږېرې ته يې ور حمله کړه چي فرعون ملغلرې او جواهرات پورې څړولي وه هغه يې ورشکول. نو فرعون و خپلې مايني آسيه ته وويل "ان هذا عدوي واراد ان يقتله" اسيه ورته وويل چي دا خو کشنی دی نه عقل لري او نه تميز لري "وفي رواية ان ام موسٰی لما فطمته (د تي پرېکړې) ردته الی فرعون لانه وآسيته زوجته اخذا موسٰی بالبنوة. نو موسٰی تر تربيې د فرعون او د ده مايني نشو او نما کوله نو يوه ورځ موسٰی عليه السلام بازې کولې په حضور کي د فرعون آسيه ته وويل دغه دی زما دښمن چي ما په خوب ليدلی وو او اراده يې وکړه چي قتل يې کړي. آسية ورته وويل "ايها الملک انه صبي لا يعقل" تجربه يې کړه که دي خوښ وي باره فرعون مايني ته وويل چي ورسه په غاب کي د اور سرې سکروټې راوړه او په بل غاب کي سره جواهر ورته راوړه چي دی يې په فرق پوهېږي او که نه مايني هم داغسې وکړه د موسٰی عليه السلام په مخ کي چي دواړه کېښېښول موسٰی عليه السلام خو جواهرو ته ځان جوړاوه خو



Scanned by CamScanner

جبرئیل علیه السلام راغلی د موسٰی علیه السلام لاس یې پر سکروټو ورکښېښوده یوه سکروټه واخستل په خوله کې واچول ژبه یې وسوه او په ژبه کې عقده پیدا سوه.

**پوښتنه**: دموسٰی علیه السلام لاس ولي ونه سو چې سکروټه یې خوله ته وړه؟

**ځواب**: دا د کراماتو څخه د موسٰی علیه السلام وو په وخت د طفل وایې چې خدای جل جلاله د دښمن فرعون څخه په دغه سبب خلاص کړی او فرعون د ماینې د مخه ډېر شرمنده سو والله علی کل شیئ قدیر.

## يَفْقَهُوا قَوْلِي ﴿٢٨﴾

چې دوی زما په خبرو پوه سي علماً وایې "انما یحسن التبلیغ من البلیغ" یعنې ښه خوند کوي تبلیغ ددین او او نصیحت د بلیغ یعنې په ژبه کې خلاص او ژبیاړي سړي څخه په دې کې اختلاف دی چې عقدة د ژبې د موسٰی علیه السلام کامل خلاصه سوه او که څرنگه هغه علماً او مفسرین چې د ده ژبې عقده مکمله خلاصه سوه په دې آیت سره دلیل وایې چې عنقریب به راسي قال "قد اوتیت سؤلک" او هغه څوک چې وایې چې عقده یې نه ده خلاصه سوې بقوله تعالٰی "هو افصح لساناً مني (یعني هارون علیه السلام تر ما په ژبه کې خلاص دی) وبقوله تعالٰی حکایت عن فرعون "ام انا من هذا الذي هو مهین ولا یکاد یبین" والجمع بین الدلائل والانصاب چې موسٰی علیه السلام خواښت دعقده د حل کاملاً نه وکړی دونه قدر حل یې غوښتی وو چې خلگ زما په خبره پوه سي، او روح البیان په نقل د اسئلة مقحمه چې د یو کتاب نوم دی وایې چې د عقده یکلخته خلاصه سوې وه کما یدل علیه قوله تعالٰی "قد اوتیت سؤلک".

**سوال**: نو ولي وویل واخي هارون افصح مني لساناً؟

**ځواب**: موږ وینو چې د دوکسانو په ژبه کې عقده نه وي ومع ذالک یکون واحداً منهما افصح من الآخر کما یدل علیه تجارب اشعار بلغاً العرب وفصاحة قصائدهم من عامة العرب مع عدم العقدة فی السنة العامة فافهم.

**سوال**: فرعون ولي وویل ولا یکاد یبین؟

**ځواب**: فرعون تحقیرا لموسٰی وعنادا دا خبره وکړه لکه یو معاند د فصیح

سري چي و هغه ته وايي لاندري ما تقول حتى چي مشركانو دقوم د شعيب عليه السلام ده ته وويل لا نفقه كثيراً مما تقول. او هود عليه السلام ته قوم وويل ما جئتنا ببينة يعني ببيان واضح او انحضرت ﷺ ته به مشركانو ويل "قلوبنا في اكنة" انتهى، والى هذا ذهب المولى ابو السعود في كتابه الارشاد فتدبر خذما صفا ودع ما كدر والله الموفق والى الله ترجع الامور.

## وَاجْعَل لِّي وَزِيرًا مِّنْ أَهْلِي ﴿٢٩﴾

ماته راكړې يو كومك كونكى زما د قريبانو څخه جار ومجرور صفت دى د وزيراً.

**درويش وايي**: چي په قاموس كي وايي چي وزير جليس ته د سلطان وايي او خاص سرى د ده او چي كومك د سلطانه سره په خپل راې سره كولاى سي لانه مشتق من الوز بمعنى الثقل لان الوزير يحمل الثقل من اميره او يا مشتق د وزر بالحركات څخه دى چي د هغه معنى ملجا ده لان الامير يعتصم براى الوزير ويلجا اليه كذا قال روح البيان ورح المعاني والمظهري.

## هَارُونَ أَخِي ﴿٣٠﴾ اشْدُدْ بِهِ أَزْرِي ﴿٣١﴾

چي هارون يعني زما ورو چي تر موسى عليه السلام دوه كاله مشر وو.

**پوه سه**: چي لفظ "هارون" مفعول اول دى د "اجعل" او "وزيراً" يې مفعول ثاني دى. مفعول ثاني چي يې دمخه كړى لپاره د اهتمام په وزارت سره. او لفظ د "لي" صله د "اجعل" ده. او داسي هم روا ده چي "لي" دي مفعول ثاني وي او "وزيراً" دي مفعول اول وي او "هارون" دي عطف بيان وي د "وزيراً" "اخي" بدل دى من هارون "ازري" په قاموس كي وايي چي شاته وايي او قوت ته وايي او ضعف ته هم فالمعنى على الاول قوبه ظهري، والمعنى على الثاني اشدد به قوتي وعلى الثالث قوى به ضعفي "ژباړه" ته محكمه كړه په ده زما ملا، او ته قوي كړه په ده سره زما قوت، او ته قوي كړه په ده زما ضعف.

## وَأَشْرِكْهُ فِي أَمْرِي ﴿٣٢﴾

او ته شريک يا الله هارون زما په وظيفه كړې يعني نبوة وتبليغ الرسالة

غرض د ده دا وو چي مطلق معاون نه غواړم.

كَيْ نُسَبِّحَكَ كَثِيرًا ﴿۳۳﴾

چي موږ تسبيح ووايو ډېره کلبي وايي چي مراد څخندي لمونځ دی ولي چي اجتماع پر کار د خير رغبت پيدا كوي په انسانانو کي.

وَّنَذْكُرَكَ كَثِيرًا ﴿۳۴﴾

او موږ ستا ذكر وكړو ډېر.

**پوه سه:** چي كثيراً دواړه ځايه مفعول مطلق دی بحذف الموصوف ای تسبيحقا كثيراً وذكراً كثراً.

إِنَّكَ كُنتَ بِنَا بَصِيرًا ﴿۳۵﴾

ته ای خدايه خبر يې زموږ په ټولو حالتو او په دې هم خبر يې چي هارون ښه معاون دی زما په تبليغ کي د رسالت يعني فرعون او قبط ته.

قَالَ قَدْ أُوتِيتَ سُؤْلَكَ يَا مُوسَىٰ ﴿۳۶﴾

خدای پاک وويل درکړه سوه تاته ټوله امور مسؤله ستا ای موسیٰ.

**پوه سه:** چي سؤل بالضم وزن يې فُعل دی په معنیٰ دمفعول ای المسؤل كالخبز بمعنیٰ المخبوز.

**فائده:** په حديث کي راغلي دي چي خدای چي يو بادشاه ته اراده د خير ولري نو يو وزير صالح ورکړي كه دملک يو شی هېر سي دی يې ور په ياده وي او كه ملک د خير اراده وكړي دی كومک ورسره كوي او كه ملک د شر اراده وكړي وزير يې منع كوي او عليه الصلوة والسلام هم وزيران درلوده كما جاً في الحديث الصحيح "لي وزيرين في الارض ابوبكر وعمر ﷺ ووزيرين في السما جبرئيل عليه السلام واسرافيل عليه السلام.

**سوال:** موسیٰ عليه السلام څرنګه د نبوت د هٰرون سوال وكړی او سره د دې چي رسالت خو د خدای جل جلاله په اختيار کي دی كماقال الله "الله اعلم حيث يجعل رسالته"؟

**ځواب:** خدای جل جلاله چي د ده دغه خواست قبول كړی دا معلومه سوه چي

خواست د موسیٰ علیہ السلام د رسالت د وړور په اراده او الهام د خدای جل جلاله وو.

وَلَقَدْ مَنَنَّا عَلَيْكَ مَرَّةً أُخْرَىٰ

ای والله خو لام موطئه د قسم محذوف دی او قد د پاره د تحقیق دی احسان او انعام کړی دی مونږ پر تا یا موسیٰ علیہ السلام بل وخت یعني تر دې وخت د مخه.

إِذْ أَوْحَيْنَا إِلَىٰ أُمِّكَ مَا يُوحَىٰ

چي مونږ وحي وکړې ستا مور ته یعني په الهام سره یا په خوب کي یا پر ژبه د یو نبي د هغه وخت یعني اوحی الی امک په ذریعه د یوې ملکي "لا علی وجه النبوة اذ لم یبعث الله نبیاً من النسا بالاجماع".

**یوه سه:** چي کلمة د اذ تعلیل لقوله "مننا"

**درویش وایي:** چي وحي او نبوة مختص بالانبیا علیہم السلام وهم الرجال فقط او داسي وحي او نبوة ختم سو پر سید المرسلین خاتم النبیین ﷺ باندي، او هر چي وحي دي د الهام یا منام یعني د پاره د تبلیغ وچاته نوي هغه نه دي قطع او خاص په انبیاؤو سره هم دي بل الاولیا ایضاً.

**یوه سه:** چي مظهري په خپل تفسیر کي د شیخ ابن العربي قدس سره اقوال رانقل کړي دي چي د دې تفسیر ایوبي د متعلمان فهم څخه قاصر دی د دې سببه فقیر نقل نه کړی، په روح المعاني کي وایي چي خدای جل جلاله وایي "انا رادوه الیک وجاعلوه من المرسلین" دا خو په الهام سره نه معلومېږي بیا د جواب ورکړی دی لان ام موسیٰ قد شاهدت منه علیه السلام ما یدل علی نبوة وانه تعالی لا یضیعه والهام الانفس القدسي مثل ذالک لابعد فیه فانه نوع من الکشف راوي وایي د عبد المطلب لمسی محمد ﷺ چي پیدا سو (یعني پلار عبد الله یې په وخت کي د حمل وفات سوی وو او نیکه یې ژوندی وو) نو عبد المطلب مذکور نوم د (محمد) پر کښېښو، نو چا ورته وویل چي دا دی څرنګه بیګانه او غیر متعارف نوم پر کښېښو ده ورته وویل "رجوت ان یحمد في السما والارض" لکن دا خو په الهام کي د ده نه وو داخل، او روح المعاني د ابو

حيان رحمه الله څخه نقل کړی چي ام موسیٰ ته دي خدای ملک را استولي وه لا علی جهة النبوة هغې ملکي دا خبري ودې ته کړې وې کما بعث الی مریم چي جبرئیل ورته راغلی "وتمثل بشرا سويا" کما مر. روح المعاني وايي چي د موسی علیه السلام د مور په نامه کي اختلاف دی قیل یوحانذ. وقیل بازختو قیل بارخا وقیل محيانه. دی وایي چي هغه خبره چي په خلګو کي مشهوره ده چي د موسیٰ علیه السلام د مور په نامه قلفان خلاصیږي مور هیڅ اثر په کتابو کي د اهل علم نه دی لیدلی بلکه دا د خرافاتو د قسمه خبره ده انتهیٰ قول روح المعاني.

**پوه سه**: چي مراد د "ما یوحیٰ" څخه ما سیئاتي دی من وضعه في التابوت وقذفه في اليم اولاً یې مبهم راوړي تفخيماً لشان ما یوحیٰ، وتعظيماً لشان موسیٰ علیه السلام بیا یې وروسته تفسیر وکړی چي په زړه کي ښه قرار ونسي، قال عارف جامي رح:

چي خوش باشد که بعد از انتظاری..... باميد رسد امید واری.

## اَنِ اقْذِفِيْهِ فِى التَّابُوْتِ فَاقْذِفِيْهِ فِى الْيَمِّ فَلْيُلْقِهِ الْيَمُّ بِالسَّاحِلِ

**پوه سه**: چي ان اه تفسیر دی د "ما یوحیٰ" المجمل اولاً ته موسیٰ علیه السلام واچوه په تابوت کي یعني په صندوق کي او تابوت واچوه په رود نیل کي چي لوی رورد د مصر وو. ساحل په معنیٰ د جانب دی.

**سوال**: لفظ د "فليلقه" خو صيغه د امر بالام ده نو دریاب څرنګه په امر سو؟

**جواب**: مقصود دلته اخبار دی ای یلقیه اليم بالساحل لکن لفظاً چي صيغه د امر راوړه لمناسبة اقذ فيه آه چي هغه امر وو.

## يَأْخُذْهُ عَدُوٌّ لِّي وَعَدُوٌّ لَّهُ

وايه خلي موسیٰ علیه السلام دښمن زما او دښمن د ده. یعني فرعون د خدای دښمن خو په دې وو چي دعویٰ د الوهية یې کړې او د ده دښمن موسی په دې دی چي فرعون خوب لیدلی وو چي دبيت المقدس څخه یو اور را ووتی او پر مصر یې احاطه وکړه او قبطیان یې تموله وسول او بني اسرائیل څندي خلاص سوه، نو ده چي دا خوب و کاهنانو ته ووايه هغو ورته وویل چي په بني اسرائیلو کي به

داسې یو سړی پیدا سي چې ستا د مملکت د زوال سبب به وګرځي، نو فرعون په طلب کې د موسیٰ علیه السلام په زږونو پیدا نران د بني اسرائیلو ووژل وقد مرت القصة بالتفصیل، نو فرعون د تقدیر سره د خدای ﷻ تدبیر پر کار واچاوه، پښتانه وایې چې تقدیر په تدبیر پوري خاندي.

**فائده:** دښمني د فرعون د خدای سره خو بالفعل وو او د موسیٰ علیه السلام دښمني په اعتبار د مایؤل الیه یعني عاقبة الامر به دښمن ګرځي کما في قوله تعالیٰ "رئیت اعصر خمرا ای عنباً"

**درویش وایي:** چې محققان د صوفیه کرامو وایې چې امر د "فلیلقه" پر حقیقت محمول علی الظاهر یعنی امر.

**سوال:** امر خو ذوی العقول ته وي دریاب د ذوی العقول څخه نه دی؟

**ځواب:** دا خو امر تکویني دی امر تکلیفي نه دی "والامر التکویني لا یشرط له التعقل لهم" علا ان الصوفیة الکرام رح وایې چې جمادات که څه هم لا تعقل ولا تفهم بالنسبة الینا ولا یجوز الینا مخاطبتها لکنها دغه جمادات عاقلة مطیعة لامر الله عزوجل کذا ورد به النصوص قال الله تعالیٰ "واذنت لربها وحقت" وقال الله تعالیٰ "قالتا آتینا طائعین" وقال رسول الله ﷺ ان الجبل ینادي الجبل ای فلان هل مر بک احد بذکر الله، قال الله تعالیٰ "یا نار کوني برداً وسلاما علی ابراهیم" الی غیر ذالک من الآیات والاحادیث. قال الفاضل الرومي رح في المثنوي

خاک وباد واتش بنده اند..... پیش تو مرده وباحق زنده اند

بیضاوي رح د عقل پر لار توجیه د امر و دریاب ته داسې کړې ده "ولما کان القا البحر ایاه ای موسیٰ الی الساحل امراً واجباً لتعلق ارادته تعالیٰ به جعل البحر کانه ذو تمیز مطلع علی امر الله تعالیٰ بذالک واخرج الجواب مخرج جواب الامر.

**فائده:** بغوي رح وایې چې د موسیٰ علیه السلام مور یو تابوت د لرګي جوړ کړی او شنلي پنبه یې پکښې اوار کړه او موسیٰ علیه السلام یې پکښې کېښېښو، او د تابوت چاکونه یې په پنبه وو بند کړه و رود نیل ته وغورځاوه د رود نیل څخه یو د لویه واله وسرای ته د فرعون روانه وه، نو تابوت په هغه واله کې د بحر څخه را جلا

سو، نو فرعون سره د آسيه ناست وو چي تابوت يې ولېدى چي اوبو راوړى نو پر خپلو مريانو او مينځيانو يې امر وکړى چي هغه تابوت را وکاږي "فاخرجوا وفتحوا رأسه فاذا رأى فرعون في التابوت صبي من اصبح الناس وجها فلما راه فرعون احبه بحيث لا يتمالك نفسه فذالک قوله تعالى.

## وَأَلْقَيْتُ عَلَيْكَ مَحَبَّةً مِّنِّي وَلِتُصْنَعَ عَلَىٰ عَيْنِي

دا جمله عطف ده على قوله تعالى "ياخذوه عدو آه" او كلمة د "مني" ظرف مستقر ده اى كائنة مني يا ظرف لغو د متعلق په القيت سره ده او تنوين د محبة د پاره د تعظيم اى محبة عظيمة. والمعنى ما واچول پرده پرتا يا موسى يعني پرده د محبت عظيمه په زړو كي د خلگو حتى چي ته محبوب يې په زړو كي د خلگو وګرځېدې، حتى په زړه كي د دښمن ستا چي فرعون وو هم محبوب وګرځېدې، عكرمة وايي ما رئاه احد الا احبه. او قتادة وايي چي په سترګو كي د موسى عليه السلام يو ملاحة وو ماراه احد ال عشقه..... بيت:

ما ه زيبا است ولى روى تو زيبا تر ازو ست

چشم نرگس چه كنم چشم تو رعنا ازوست

"ولتصنع" يعني تر تربيه سې او ستا سره احسان وكړه سي.

**پوه سه:** چي "على عيني" حال دى د ضمير مرفوع د تصنع څخه اى كائنا على حفظي اياک.

**فائده:** خلگ وايي چي فلانى زما په سترګو كي دى يعني زما په حفاظت كي دى نو "عيني" په قرآن كي كنايه له حفاظت څخه دى.

## إِذْ تَمْشِي أُخْتُكَ

**پوه سه:** چي "اذ" ظرف دى د "القيت" لپاره چي ستا خور مريم راروانه وه ستا دخبر اخستلو لپاره، ولي په مصر كي اوازه سوه چي د فرعون په كور كي په تابوت كي يو هلک پيدا سوى دى، نو د موسى عليه السلام مور خو پوه سوه چي هغه زما زوى دى نو خپله لور مريم يې را واستوله چي ته يې حال معلوم كړه چي

فرعون څه اراده ورته لري، راوي وایې چي په قرار د هغه آیت "وحرمنا علیه المراضع کلها" فرعون او آسیة په داسي ښځه پسي ګرځېده چي دې طفل موسی ته تی ورکړي هر څه ښځي چي ورته راوستې موسی علیه السلام یې تی نه رودی فرعون د غایت محبت څخه د موسی علیه السلام په دې باره ډېر مضطرب وو.

## فَتَقُولُ هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَىٰ مَن يَكْفُلُهُ ۖ

نو ستا خور فرعون او آسې ته وویل زه تاسي ښونه وه نه کړم پر داسي ښځه چي د دې طفل د رضاع ذمه داري وکړي فرعون ورته وویل نعم تې راوله که زموږ کشتني د هغې تی قبول کړی ډېر به ښه سي او زموږ اضطراب به دفع سي خور یې ولاړه خپل مور یې ورته راوستل یعني د موسی مور موسی علیه السلام یې بې درنګه تی قبول کړی او په ماره نس یې ورودی.

## فَرَجَعْنَاكَ إِلَىٰ أُمِّكَ كَيْ تَقَرَّ عَيْنُهَا وَلَا تَحْزَنَ ۚ

موږ راجع کړی ته یا موسی وخپلي مور ته په سبب د هغې وعدې چي د دې سره یې کړې وه "انا رادوه الیک" د دې د پاره چي خنکي سي سترګي د دې.

**پوه سه:** چي قرة العین په عربي ژبه کي کنایه د ډېري خوشحالی څخه د دې سببه چي د ډېر غم د سببه د سړې تر سترګو ابنکي بهېږي او د نهایت خوشحالی په وخت کي هم د سړي تر سترګو ابنکي جاري کېږي لکن په تجربه دا ثابته ده چي د غم ابنکي تودې وي او د خوشحالی ابنکي سړې او خنکې وي فصح الکنایة او چي دا غم ونه لري ستا په فراق کي، راویان د قصې د موسی علیه السلام وایې چي موسی چي د خپلې مور تی ورودی او فرعون ورته وویل چي زموږ کشتني ته به ته تی ورکوې دې ورته وویل چي کشتني خو د ورځي او د شپې تی غواړي او زه خپل زوی لرم او د کور کار او خدمت مي هم په زمه کي دی، نو ستا په کور کي خو تی نه سم ورکولای البته که یې په لاس راکوې په خپل کور کی تی ورکولای سم په هفته کي یو وار در ته راولم تاسي به خپله خوشحالي په کوځ ما ښام یې بېرته کور ته بیایم فرعون ورسره ومنل او د ښه

تربیې وصیت ورته وکړی او روزانه یو دینار په دې تنخواه وټاکله.

**سوال**: شرعًا خو مورته پر رضاع د طفل اجرت نه دی روا نو دې څرنګه د فرعون څخه دا اجرت قبلاوه؟

**جواب**: فرعون خو حربي وو د حربي مال روا دی په هر دول چي وي، خیر دا رفت او آمدا او رضاع جاري وه چي موسٰی علیه السلام د دوو کالو سو او مور د تي څخه پرې کړی رایه وستی و فرعون ته یې تسلیم کړی البتـة ګاه ګاه به دا هم د خپل زوی ملاقـات تـه راتلـه موسٰی علیه السلام د فرعـون پـه کـور تربیـه کـې دی حتٰی تر ځوانی پورې او خلګو به ابن فرعون بللی.

## وَقَتَلْتَ نَفْسًا

او تا قتـل کړی یو نفر د قبط د قـوم څخه چي یـو اسرائیلي تاته شکایت وکړی او تا هغه ته زجر ورکاوه په سوکه دې وواهه هغه مړ سو.

**پوښتنه**: انبیاٴ علیهم السلام خو د ګنهو څخه معصوم وي قبل النبوة وبعدها نو موسٰی علیه السلام څرنګه قبطي مړ کړی؟

**ځواب**: دا خو قتل خطاً دی ولي چي موسٰی علیه السلام خو پـه سوکه د تادیب ده پاره وواهه لکن په قضٰی د خدای هغه قبطي مړ سو.

## فَنَجَّيْنَٰكَ مِنَ الْغَمِّ وَفَتَنَّٰكَ فُتُونًا ۚ

مونږ تاته نجاة در کړی د غم څخه د قتل د قبطي "خوفا من الله بالمغفرة لان حسنات الابرار سیئات المقربین" او د فرعون د خوا چي ته به پر قبطي قصاصه ولای خلاص مو کړې بالهجرة الی مدین قریة شعیب علیه السلام.

**پوه سه**: چي "فتـون" مصدر دی لکه قعـود" البغـوي رحمه الله وايي چي ابن عباس رضی الله عنه وایي اختبرناک اختبارا او ضحاک وایي ابتلیناک ابتلاٴ والمال واحد او یا معنٰی دا ده انواعًا من الابتلاٴ نو جمع د فتن ده.

**پوښتنه**: هغه ډیرې فتنې نو څه وې چي موسٰی علیه السلام تـه خدای پـاک وایي تـه مو څنډې خلاص کړې؟

**ځواب:** (۱) موسی علیه السلام په هغه کال کي وزېږدېدی چي فرعون د بني اسرائیلو کشنیان وژله (۲) القائه في البحر في التابوت (۳) منعه من رضاع ثدی غیر امه (۴) ثم اخذه باللحیة فرعون حتی چي فرعون قصد وکړی چي مړ یې کړي کما مر (۵) ثم اخذه الجمرة بدل الدرة کما مر ایضًا (٦) ثم قتله القبطي خروجه الی مدین (۷) هجرته ومفارقته من الاقارب (۸) لځي پښې سفر کول ولې چي چوتې د پښو د کاره ولوېدې (۹) د لاري توښه او نفقه هم نه ورسره (۱۰) د شعیب علیه السلام لس کاله شپني.

## فَلَبِثْتَ سِنِيْنَ

تا درنګ وکړی څو کاله یعني لس (۱۰) کاله د پاره د پوولو د پسو د شعیب علیه السلام په ولور کي د شعیب علیه السلام د لور چي دا لس کاله هغه لویه مده وه که څه هم اصل ولور (۸) کاله وو "کما یدل علیه قول شعیب علیه السلام فان اتممت عشرا فمن عندک".

## فِيْٓ اَهْلِ مَدْيَنَ ۵

په خلګو کي د مدین چي د ښار ګوتې نوم چي مدین بن ابراهیم علیه السلام یې بنا کړې وه چي اته منزله د مصر فرعون څخه لیري وو او د فرعون پر هغه ځای تسلط نه وو.

**درویش وایي:** چي د وهب بن منبه څخه روایت دی چي روح المعاني هم راوړی دی او مظهري هم چي موسی علیه السلام د شعیب علیه السلام سره (۲۸) کاله تېر کړ چي لس کاله یې د صفورا د شعیب علیه السلام د لور ولور وو او (۱۸) کاله وروسته تر واده هوري پاته وو لکن دا روایت د مشهوره روایاتو د قصې د موسی علیه السلام خلاف دی کما مر تفصیلاً والله اعلم.

## ثُمَّ جِئْتَ عَلٰى قَدَرٍ يّٰمُوْسٰى ۴۰

او بیا ته راغلې یعني وادي المقدس ته پر هغه مقدار چي مونږ اندازه کړی وو چي ته به راځې او علی القدر الذي یوحی فیه الانبیا في الاکثر یعني عمر دي (۴۰) کاله

ته ورسېدی لکه عبد الرحمٰن بن کیسان چي وايي وهو قول اکثر المفسرين رحمهم الله.

**پوښتنه**: خدای پاک دڅه حکمت د پاره ذکر موسٰی علیه السلام مکرر راوړی؟

**ځواب**: د پاره د الفت د ده او د محبت د ده.

**درويش وايي**: چي فقير داسي وويل في الاكثر لان عيسٰی علیه السلام چي نبي سو او آسمانو ته خدای جل جلاله پورته کړی عمر يې (٣٣) کاله وو وکذا يوسف علیه السلام نبي سو عمر يې (١٨) کاله وو وکذا يحيٰ علیه السلام فاشتراط (٤٠) سنة في نبوة الانبيا ليس بشيئ كذا في المقاصد الحسنة.

**سوال**: په يو حديث کي راغلي دي مابعث الله نبيا الا على رأس اربعين سنة؟

**ځواب**: دا حديث محد ثينو په موضوعي کي راوړی دی والله اعلم.

## وَاصْطَنَعْتُكَ لِنَفْسِي ﴿٤١﴾

ماته تربيه کړې په ښه تربيه سره د ځان دپاره حسين كاشفي رحمه الله وايي ترا بر گزيدم و خالص ساختيم براى محبت خود. يعني ترا دوست گرفتيم انتهٰی، يعني چي ته ظاهر او باطن نه کې مشغول ماسوی سره زما.

## اِذْهَبْ اَنْتَ وَاَخُوْكَ بِاٰيٰتِيْ وَلَا تَنِيَا فِيْ ذِكْرِيْ ﴿٤٢﴾

ولاړ سه ته او ستا ورو يعني هارون په معجزاتو سره زما ابن عباس رضي الله عنهما وايې چي د موسٰی علیه السلام (٩) معجزې وې يعني دمقابلې په اوږدو کي د فرعون سره لکن عصا او يد بيضاً يې اولين دوې معجزې وې، او تاسي تقصير او سستي مه کوئ په ذکر کي زما يعني په تبليغ کي د رسالت.

**پوه سه**: چي انت تاكيد د ضمير مستتر په اذهب کي ولي چي نحاة وايې عطف پر ضمير متصل نه دی روا بيله تاكيد په ضمير منفصل سره.

**فائده**: دا وحي خو موسٰی علیه السلام ته په طور کي وسوې او هارون هغه وخت په مصر کي وو، نو خدای جل جلاله موسٰی ی چي هارون ته ورسه او هارون ته يې وحي وکړې چي استقبال د ورور موسٰی علیه السلام وکړه، نو يو منزل هارون د موسٰی علیه السلام مخ ته ورغلی وروسته تر ملاقات دواړو ته وويل.

اِذْهَبَآ اِلٰى فِرْعَوْنَ اِنَّهٗ طَغٰى ۝

ولاړ سئ دواړه وفرعون ته چې د تر حدود دبشریت تجاوز کړی او دعوه د الوهیت یې کړې ده کریمه "انا ربکم الاعلی"

فَقُوْلَا لَهٗ قَوْلًا لَّيِّنًا

ووایاست و ده ته قول نرم قال ابن عباس رضی الله عنه تاسي سختي مه کوئ په خبرو کي وده ته او عکرمة رحمه الله او سدي رحمه الله وایې په نامه مه ورته وایاست بلکه په کنیت ورته وایاست د فرعون څلور کنیته وه ابو الولید ابو مصعب ابو العباس، ابو مرة، وروی ذالک عن علي رضی الله عنه.

**درویش وایې:** چي مظهري رح نقلاً وایې چي دوی یې امر کړه په قول لین، ولي چي فرعون پر موسیٰ علیه السلام حق ده تربیة درلودی آه. ورده صاحب روح المعاني ان الامر بتلین القول لیس لحق التربیته لانه لاحق للطاغي علی النبي. او مقاتل وایې چي قول لین هغه دی چي په سورة والنازعات کي راغلی دی "هل لک الی ان تزکی واهدیک الی ربک فتخشی" ولي دا عرض د ایمان دی پر فرعون په صورة کي د مشورې، په هر صورت مطلب د قول لین" دا دی چي په طاغي اعظم فرعون کي غیرت د جاهلیت پیدا نه سي او سمدلاسه امر د قتل د موسیٰ علیه السلام او هارون علیه السلام ونه کړي، او سدي رح وایې چي قول "لین" دادی چي د فرعون سره دي وعده وکړه که ته ایمان راوړې تر مرگ پوري به ځوان یې سپین ږیری کېږې به نه، او ستا تر مرگه به ستا بادشاهي محفوظه وي، او خوند د خوړو او د چیښلو به په تاکي باقي وي او دنکاح قوة د جماع به په تاکي وي تر مرگه پوري، او چي مر سي خدای جل جلاله به دي جنت ته داخل کړي فرعون ته یې خوند ورکړی او رغبت یې وایمان ته پیدا سو، لکن دفرعون یو مشیر خاص چي هامان یې نوم وو غائب وو په دغه وخت کي او فرعون هیڅ کار د هغه بې مشورې نه کاوه هغه چي راغلی فرعون د موسیٰ علیه السلام خبري ورته وکړې هامان ورته وویل چي زما د مخه دا خیال وو چي ته عقل او فکر لرې" وانت في الحال رب" وترید



Scanned by CamScanner

انتکون مربوبا وانت الیوم تعبد (علی صیغة المجهول یعني چي عبادت دي کړه کېږي) وترید ان تعبد (علی صیغة المعلوم یعني چي ته د بل عبادت وکړې) نو هامان د خپلي رایي څخه واړاوه او د عکرمة روایت دی چي قول "لین" لا اله الا الله دی اولین یې دا دی چي پر ژبه سپک دی روح المعاني وایي وهذا ابعد الاقوال انتهٰی تاریخ وایې چي دا آیت په حضور کي د یحیٰ بن معاذ رحمه الله چا ووایه د وژړل او داسي وویل الهي هذا رفقک بمن یقول "انا الله" یعني فرعون فکیف رفقک بمن یقول انت الله.

## لَّعَلَّهُۥ يَتَذَكَّرُ أَوْ يَخْشَىٰ ﴿٤٤﴾

شاید فرعون به پند واخلي او ایمان به راوړي که ستاسي صدق ور معلوم سي، یا کم از کم دومري خو به سي چي وبه بېرېږي که ستاسي صدق ور معلوم نسي، نوهم خو بې په زړه کي پیدا سي.

**پوښتنه**: خدای پاک ته معلومه وه چي فرعون ایمان نه راوړي نو حرف ترجي چي "لعل" دی څرنګه ووایه؟

**ځواب**: دا ترجي او طمع راجع ده موسیٰ علیه السلام او هارون علیه السلام ته "لانهما لا یعلمان غیب امر فرعون من الایمان او الاستمرار علی السوء والطغیان.

## قَالَا رَبَّنَآ إِنَّنَا نَخَافُ أَن يَفْرُطَ عَلَيْنَآ أَوْ أَن يَطْغَىٰ ﴿٤٥﴾

موسیٰ علیه السلام او هارون علیه السلام وویل ای زموږ ربه په تحقیق موږ بېرېږو چي فرعون به موږ قتل کړي قال ابن عباس رضی الله عنهما چي فرعون به عاجلانه موږ قتل کړي یا به عذاب راکړي د مخه تر اتمام د دعوة او د اظهار د معجزاتو. یا بې طغیان نور زیات سي او د شان ستا به سپکاوی وکي یا بني اسرائیلو ته به نور اذیت زیات کړي.

## قَالَ لَا تَخَافَآ ۖ إِنَّنِى مَعَكُمَآ أَسْمَعُ وَأَرَىٰ ﴿٤٦﴾

خدای جل شانه ورته وویل مه بېرېږئ ولي په تحقیق زه ستاسي معاون یم بالحفظ والنصر دا جمله تعلیل د لاتخافا ده. زه اورم ستاسي دعوت او د فرعون

جواب تاسي ته او زه وینم هغه شی چي فرعون وتاسي ته اراده کوي من القتل والتعذیب یعني زه غافله ستاسي او فرعون د حالاتو څخه نه یم. نو تاسي غم مه کوئ زه په تاسي په هر حال کي وساتم د فرعون څخه او تاسي ته به نصر او د تاسي به دفع د مکروه کوم والحافظ اذا کان قادرا سمیعا بصیرا تم الحفظ.

**پوه سه:** چي سمع او بصر د خدای جل شانه دوه صفته دي لا علی قیاس سمعنا وبصرنا بآلة الاذن او بآلة العین فافهم.

## فَأْتِيَاهُ فَقُولَا إِنَّا رَسُولَا رَبِّكَ

ورسئ فرعون ته او ورته ووایاست چي موږ رسولان د رب ستا یو چي تا ته بي او بني اسرائیلو ته یي راستولي یو "بالتوحید تعریض بالقول اللین بانک لست برب بل انت عبد مربوب"

**فائده:** متعلقة بقوله "لا تخافا" په تاریخ کي راغلي دي چي په زمانه کي د خلافت د هارون الرشید کي یو ځوان عالم وو چي همېشه بې وعظ او تبلیغ کاوه او پر خلاف د هارون الرشید بې تنقید کاوه، نو هارون الرشد دا ځوان په یو خونه کي بندي کړی او تو له منفذونه د خوني بند کړه تا چي نوې هوا ورنسي او مړ سي، څو ورځي وروسته یو چا وهارون ته وویل چي هغه ستا بندي په یو باغ کي ګرځېدی هارون امر وکړی چي ورسئ حاضر یې کړئ چي حاضر کړه سو هارون ورته وویل چي ته چا د بندي خانې څخه راوایستې؟ هغه ورته وویل هغه چا چي زه دې باغ ته راوستم، هارون ورته وویل چي دې باغ ته چا راوستې هغه ورته وویل چي هغه چا چي زه د بندي خانې څخه را وایستم هارون پوه سو چي خدای ﷻ یادوي ده پر تعجب یې وکړی او ده پر یې وژړل او لوی احسان یې ورسره وکړی او عسکرو ته یې امر ورکړی چي دی پر یو آس سپور کړي او د ده په مخ کي اعلان کوي هذا رجل اعزه الله واراد الرشید اهانته فلم یقدر الله یعني تقدیر د خدای ﷻ نه و الا احسانه واحترامه فحق قول من قال "من کان الله معه یحفظه من کل جبار عنید" قال الحافظ الشیرازي رحمه الله:

هزار دشمن اگر میکنند قصد هلاک
گرم تو دوستی از دشمنان ندارم باک

سعدي شيرازي رحمه الله وايي

محالست چون دوست دارد ترا...... كه در دست دشمن گذارد ترا

فَأَرْسِلْ مَعَنَا بَنِيٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ۖ وَلَا تُعَذِّبْهُمْ

واستوه او ازاده كړه زموږ سره بني اسرائيل يعني الى الشام. او ته عذاب مه وركوه په اعمالو شاقه وو سره چي فرعون به بني اسرائيل په تكليفي كارو كي اچولي وه په چا به يې ختې كولې په چا به يې ديوالونه وهله او په چا بې زراعتي كارونه كوله الى غير ذالك.

قَدْ جِئْنَٰكَ بِـَٔايَةٍ مِّن رَّبِّكَ ۖ

موږ راتگ كړى دى تاته په حجت او دليل او معجزه سره چي زموږ پر صدق دلالت كوي په دعوىٰ كي د رسالت.

**سوال:** اولين معجزه د موسىٰ عليه السلام او هارون عليه السلام خو دوې وې يد بيضاً د موسىٰ عليه السلام او عصىٰ د موسىٰ عليه السلام نو لفظ د آيت مفرد څرنگه راوړه سو؟

**جواب:** مراد د دوى اثبات درسالت دى مع قطع النظر عن وحدة الاية وتعددها وعلى هذا نقس قوله "قد جئتكم ببينة" وقوله "فات باية"

وَٱلسَّلَٰمُ عَلَىٰ مَنِ ٱتَّبَعَ ٱلْهُدَىٰٓ ﴿٤٧﴾

دا جمله معترضه ده يعني سلامي وسلام الملئكة وخزنة الجنة پر هغه چا چي متابعت يې كړى وي د هدايت چي د جانبه د خداى ج ورته راغلى وي او السلامة في الدارين "قال الله تعالى فمن اتبع هداى فلا خوف عليهم" الآية.

إِنَّا قَدْ أُوحِىَ إِلَيْنَآ أَنَّ ٱلْعَذَابَ عَلَىٰ مَن كَذَّبَ وَتَوَلَّىٰ ﴿٤٨﴾

او موږ ته وحي كړل سوې دي چي عذاب د دنيا او آخرت پر هغه چا دي چي تكذيب كوي د رسولانو او اعراض روى گرداني كوي د ايمان با الله په توحيد سره او د عبادت څخه د خداى چي په جمله كي د هغو فرعون هم وو ففي هذه الآية تعريض به.

## قَالَ فَمَنْ رَّبُّكُمَا يٰمُوْسٰى ﴿۴۹﴾

وويل فرعون، نو څوک دی ستاسي رب ای موسٰی، دا جواب د دې قول د موسٰی او هارون "انا قد اوحي" آه.

**سوال**: فرعون اول "ربكما" په ضمير د تثنيې ووايه وروسته يې په ندا سره موسٰی خاص کړی؟

**ځواب**: فرعون خو په دې پوه سو چي دعوه د نبوت دواړه کوي بقوله "انا قد اوحي الينا" او موسٰی چي وروسته په ندا خاص کړی د دې سببه چي د ده سر په دې هم خلاص سو چي اصل موسٰی دی او هارون يې معاون او وزير دی. او بل د دې سببه يې موسٰی ؑ خاص کړی چي وروسته بار د تربيې خاص په موسٰی سره دی فافهم.

## قَالَ رَبُّنَا الَّذِيْٓ اَعْطٰى كُلَّ شَيْءٍ خَلْقَهٗ ثُمَّ هَدٰى ﴿۵۰﴾

موسٰی علیه السلام ورته وويل زموږ رب هغه ذات مقتدر دی چي ورکړی يې دی هر شي ته خپل خلق. حسن رح او قتاده رح وايي چي ورکړی يې دی و هر شي ته صلاح د هغه شي او هغه ته يې لار ښوونه کړې ده خپل صلاح،. او مجاهد رح وايي چي ورکړی يې دی هر شي ته خپل صورت التي هو عليها ولم يجعل صورة الانسان التي هي احسن الصور کصورة البهائم ولا صورة البهائم کصورة الانسان ثم هداه الى منافعه من المطعم والمشرب والوطي والجماع للانسان ولجميع البهائم او سعد بن جبير رحمه الله وايي چي د خلقه څخه مراد زوجة من نوعه کالمرئة للرجل والناقة للبعير والاتان للحمار (اتان خره بولي) والرمكة للفرس (رمکه ښځه اسپه بولي) او بيا يې لار ښولې ده وهر چا ته د انسانانو او حيوانانو چي څرنګه به جماع کوي نر د دوی د ښځي سره د دوی. قاضي بيضاوي رحمه الله وايي چي دا جواب دی په نهايت بلاغة سره فانه اخبار عن الموجودات باسرها على مراتبها وايضا بيان لكون الغني القادر المنعم على الاطلاق يعني د ټولو مخلوقاتو هو الله تعالى وان جميع من عداه مفتقر اليه تعالى في ذاته وصفاته وافعاله ولهذا "بهت الذي كفر"

**فائده**: فرعون داسي نه وويل "فمن ربي" او سره د دې چي موسٰی داسي ورته ويلي وه "من ربک" له جهته څخه د غايت تكبر او عتو ولي چي فرعون خو ځان خدای باله.

**درويش وايي**: چي فرعون د جواب د قال "ربنا" عاجز پاته سو ولي دا خو يې نه سواى ويلاى چي "الذي اعطى كل شئ آه" زه يم ولي كه يې داسي ويلي واى د ده د خاله د خور زوى به پر ده د كذب شاهدي ادا كړې واى، نو ځكه ده خپل جواب بلي خواته وړاوه يعني:

قَالَ فَمَا بَالُ الْقُرُونِ الْأُولَىٰ ﴿٥١﴾

فرعون وويل چي نو څه حال دى د اولو قرونو د خلگو يعني عاد وثمود و غيرهم چي دوى عبادت د بتانو كاوه او بعث بعد الموت يې نه مانه يعني وروسته تر مرگ په دوى وسوه.

قَالَ عِلْمُهَا عِندَ رَبِّي فِي كِتَابٍ ۖ لَّا يَضِلُّ رَبِّي وَلَا يَنسَى ﴿٥٢﴾

موسىٰ ﷺ ورته وويل چي علم د هغو محفوظ دى په نبز د خداى زما په كتاب كي يعني اللوح المحفوظ. غرض د موسىٰ ﷺ دا وو چي زه پر غيب شيانو علم نه لرم بلكه كه يې دا قدر را معلوم دى چي علم د هغو محفوظ په لوح محفوظ كي دى، جمله د "لا يضل آه" صفت د كتاب ده يعني هغه كتاب چي نه د خدايه څخه زما وركيږي او نه هېرېږي.

**پوه سه**: چي د ضلال معنىٰ دا ده چي يو شى دخپل ځاى څخه ورك درك يې نه معلومېږي، او نسيان دا ده چي د سړي څخه يو شى بالكلية هېر سي چي په زړه كي نه ورگرځي" وهما محالان على عالم الغيب والشهادة"

**پوښتنه**: خداى جل علمه خو بالذات خبر دى او علم ابتدا او انتها پر هر شي لري، نو كتابت ته د لوح محفوظ څه ضرورت وو؟

**ځواب**: كتابت په لوح محفوظ كي د دې جهته نه دى چي په علم د كائناتو ودې كتاب ته محتاجه دى بلكه دا كتاب و ملكو ته ښكاره كوي تا چي دوى په مطالعه د دې كتاب پوه سي چي پر خداى سهوه او نسيان نسته او په علم اليقين او مشاهده ودوى ته معلوم سي فلا يرد ما يتوهم، سعدي شيرازي قدس سره وايي.

بر و علم يك ذره پوشيده نيست..... كه پيدا و پنهان بنزدش يكى ست

وحاصل جواب موسىٰ ﷺ "ان الله مجازيهم على اعمالهم من خير او شر

الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ مَهْدًا وَسَلَكَ لَكُمْ فِيهَا سُبُلًا

دا موصول صفت دی د ربي دپاره د مزید توضیح دحال د ربي عند فرعون الطاغي" یا مرفوع محلاً دی خبر دمبتدا محذوفي دی ای "هو الذي آه" امام اللغة راغب الاصفهاني وایې چي "مهد" هغه شي ته وایي چي د کشتني د پاره جوړه سوې وي چي په پښتو یې زانګو بولي.

**درویش وایي:** مځکي ته مهد وویل سو استعاره ده فافهم.

**پوه سه:** چي "سلوک" چي مصدر د "سلک" دی دخول ته وایي په لار کي او تګ په لار کي لازمي او متعدي دواړه راغلی دی مثل سلک سلوکا وهذا لازم وسلکت الشيئ ما داخل کړی شي په شي کي دا متعدي دی په آیت کي متعدي دی چي ضمیر د سلک خدای ته راجع دی هغه یې فاعل دی او سبلا یې مفعول به دی اوسبل جمع د سبیل ده ګرځولی دي ستاسي د نفع دپاره یعني پیدا کړی یې دي ډېري لاري .نو تنکیر د سبلا دپاره دتکثیر دی، په مابین کي د غرو او شیلو او صحراوو، چي تاسي د تجاراتو او منافع د پاره تګ په کښې کوی ضمیر د فیها و مځکه ته راجع دی فقیر یې تفسیر په جبال وغیرها سره وکړی، ولي چي د مځکي اجزا دي او په مذکوره لارو کي امتنان د خدای پر خلګو تدبر.

وَأَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً

او خدای ﷻ نازل کړی له اسمان څخه یا له وریځي اوبه د باران.

**پوه سه:** چي د ما تنکیر د پاره د بعضیت ای بعض الما لاکله. بعض مفسرین وایې چي د موسی ﷺ خبري پر دغه آیت پای ته ورسېدی وروسته خبري د خدای دي ده ځان د خوا څخه "تتمیما لما وصفه تعالی موسی به.

فَأَخْرَجْنَا بِهِ أَزْوَاجًا مِّن نَّبَاتٍ شَتَّىٰ

نو مونږ را اېستلي دي په هغو اوبو سره د باران. یعني رقم رقم او صنف صنف شنه کېدونکي شیان متفرق نباتات په صورتو کي او په اغراضو او منافع کي چي بعض یې د انسانانو په نفع دي او بعض د بهائمو خوراکه ده "شتی" جمع د شتیت ده.

كُلُوا وَارْعَوْا أَنْعَامَكُمْ

خوری ایها الناس حاصل بعض النبات لکه غنم جواري وربشي انگور خورما انځر مېنې وغیرها من الثمرات "وارعوا" او بوده، مېږي، بزې وغیرهما په کښې څره وئ په بعض نبات کي کما قال "انعاکم".

**پوهـه:** چي امر دواړه ځایه د اباحت د پاره دي یعني خوراک او څر د حیوانانو دواړه وتاسي ته مباح لا للوجوب کما لایخفی آه.

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّأُولِي النُّهَىٰ

"ذالک" په تاویل د مذکور ای جعل الارض "مهدا" وانزال الما من المسا واخراج النبات من الارض لپاره د نفع ستاسي او ستاسي د حیواناتو "الآیات" دلائل د وجود د خالق د وجوبه وقدرته واحاطه علمه بحوائج مخلوقاته وایصال الارزاق وما یحتاجون الیه "لاولی النهی" یعني د ذوی العقول د پاره "نهي" جمع د نهیة ده چي عقل ته وایي والي چي عقل سلیم سړی د منهیاتو څخه منع کوي. سعدي شیرازي رح

برگ درختان سبز در نظر هوشیار... هر ورقي دفتریست معرفت کردگار

مِنْهَا خَلَقْنَاكُمْ

د مځکي څخه پیدا کړي یاست موږ تاسي "اما بخلق آدم من تراب الارض و مواد ابدانکم من الاغذیة وهي من الارض وجمیع النطف من الاغذیة فکلنا من الارض اما بلا واسطة کادم علیه السلام او بواسطة کاولاد آدم الاما شذ وندر کعیسی علیه السلام.

وَفِيهَا نُعِيدُكُمْ وَمِنْهَا نُخْرِجُكُمْ تَارَةً أُخْرَىٰ

او په مځکه کي مو گرځوم یعني في القبور علی عادة اکثر الناس، او د مځکي څخه مو راباسم بل وار یعني "یوم القیامة بعد البعث بجمع الاجزا المتفرقة ورد الارواح الیها" حکیم فردوسي رح وایي:

بخاکت در آرد خداوند پاک.........دگر ره برون آرد از زیر خاک
بدان حال که آیي بخاک اندرون........ بدان گونه از خاک آیي برون

اګر پاک در خاک ګیري مقام ........ بر آيي از و پاک و پاکېزه فام

د ابن عباس ﷺ څخه روايت دی چې جبرائيل ونبي ﷺ ته راغلی فقال چې خدای پاک تا ته سلام وايي او وايي چې ولې مغموم يې؟ قال يا جبرائيل طال تفكري في امر امتي يوم القيامة قال افي امر اهل الكفر ام في امر اهل الاسلام" عليه الصلوة والسلام ورته وويل يا جبرئيل في امر لا اله الا الله محمد رسول الله" نو جبرئيل ﷺ تر لاس ونيوي مقبري ته د بني سلمة يې ورو ستی بيا جبرئيل يو قبر په څپه وزر ووهی "قال قم باذن الله" نو يو سړی را ووتی تور مخ يې وو "ازرق العينين" او هغه سړي دا ناري وهلې "يا حسرتا" ويا ندامتاه" فقال جبرئيل ﷺ عد الى مكانك فعاد" بيا جبرئيل ﷺ بل قبر ته ودرېدی او راسته وزر يې وواهه "وقال قم باذن الله فخرج رجل" سپين مخ يې وو "وهو يقول لا اله الا الله محمد رسول الله فقال جبرئيل عد الى مكانك فعاد" وروسته جبرئيل وه عليه الصلوة والسلام ته وويل على هذا يبعثون يوم القيامة وعند ذالک قال رسول الله ﷺ تموتون كما تعيشون، وتبعثون كما تموتون "كذا في روح البيان.

## وَلَقَدْ أَرَيْنَٰهُ ءَايَٰتِنَا كُلَّهَا فَكَذَّبَ وَأَبَىٰ ﴿٥٦﴾

لام موطئه د قسم محذوف دی يعني قسم په خدای دی موږ په ولهدل يعني په فرعون په ذريعه د موسى ﷺ آيات زموږ يعني دال پر قدرت زموږ وي او معجزې د صدق د موسى وې په دعوى کې د نبوة "كلها" تاكيد دی او اضافت د آياتنا د پاره د عهد دی يعني الآيات التسع بمرور الازمنة "فكذب وابى" نو فرعون تكذيب وکړی د موسى ﷺ من فرط تكبره وعناده او منع يې وکړه د ايمان راوړ څخه.

**فائده:** فرعون د قوم د توهم چې نبايد په دې معجزاتو سره وموسى ﷺ ته او ايمان راوړ ته مائل نسي په دې سره يې وکړه چې موسى يو لوی ساحر دی كما يدل عليه قوله تعالى في شانه.

## قَالَ أَجِئْتَنَا لِتُخْرِجَنَا مِنْ أَرْضِنَا بِسِحْرِكَ يَٰمُوسَىٰ ﴿٥٧﴾

فرعون ورته وويل چې ته راغلی يې موږ ته د دې غرض د پاره چې ته موږ

وباشي د مځکي څخه خپل په سحر سره خپل ای موسیٰ.

**یوه سه**: چي مراد د اخراج څخه فراروول نه دي بلکې مراد اخذ د سلطنت دی د قبط څخه او خپل ځان پر قبط مسلط کول دي په سلطنت سره.

فَلَنَأْتِيَنَّكَ بِسِحْرٍ مِّثْلِهِۦ فَٱجْعَلْ بَيْنَنَا وَبَيْنَكَ مَوْعِدًا

موږ به هم راتګ وکړو وتاته په سحر سره د مثل د سحر ستا یعني بجمع سحرة الملک. نو ته وټاکه او وعده وکړه زموږ تر مابین او ستا تر مابین.

لَّا نُخْلِفُهُۥ نَحْنُ وَلَآ أَنتَ مَكَانًا سُوًى ﴿٥٨﴾

چي موږ به خلاف د هغې وعدې نه کوو "نحن" تاکید دی د ضمیر د متکلم. او نه به ته خلاف کوې.

**فائده**: موږ تفسیر وکړی د موعد په وعده سره اشاره وده ته ده چي موعد مصدر میمي دی ظرف زمان یا ظرف مکان نه دی لان الخلاف انما یکون في الوعد لا في المکان والزمان کما هو الظاهر.

**یوه سه**: چي "مکانا" منصوب دی په هغه فعل سره چي موعدا دلالت پر کوي ای "عد" (وعده وکړه) ده پر ځای "سوی" بالکسر والضم بمعنی العدل چي برابر وي زموږ او ستاسو تر مابین یعني مسافت د دواړو خواوو سره برابر وي او بعض مفسرین وایي چي د "سوی" معنی دا ده چي مځکه به د هغه مستوي وي یعني بعض ځای لوړ او بعض کښته نه وي چي تا چي تو له خلګ ننداره زموږ او ستاسي د مقابلة السحر بالسحر وکړي چي څوک غالبه کیږي او څوک مغلوبه ګرځي.

**تنبیه**: فرعون لعین تعین د وعد وموسیٰ ته وکړی بقوله "فاجعل آه" د دې کبله چي موسیٰ ﷺ دا خیال ونه کړی چي د فرعون زړه ضعیف سو او دا یې ښکاره کړه چي زه وه مقابلې ته تیار یم که لنده موده ایږدې او که اوږده موده ایږدې.

قَالَ مَوْعِدُكُمْ يَوْمُ ٱلزِّينَةِ

موسیٰ ﷺ ورته وویل چي "موعد" ستاسي ورځ ده "زینت" مقاتل او قتادة او السدي رح وایي چي دغه ورځ هر وخت او کال د اختر ورځ ده قبطیانو وه چي دوی

په بنه بنه کالي او نور اسباب د زينت بې برابر لکه بلا تشبيه زموږ اخترونه او په دغه ځای کې به تيوله غند پدل" او بعض مفسرين وايي چې د نو روز ورځ ده کما يفعله المجوس ومن تبعه د موسی ﷺ د دغې ورځې په تعيين کې مطلب دا وو چې فرعون او د ده قوم بر سر عام اولو يه اجتماع کې مغلوبه او شرمنده سي.

**سوال:** د مخه تېره سوه موعد مصدر ميمي دی، نو حمل د يوم الزينة څه رنګه پر روا دی؟

**ځواب:** په دې قرآني عبارت کې حذف سته دوه ځايه "ای مکان موعدكم مكان يوم الزينة" قال المظهري" او بل ځواب دا دی چې موعد دلته ظرف زمان دی، نو حمل د "يوم الزينة" پر صحيح دی او بل ځواب دا دی چې موعدكم پر معنی مصدري باقي دی او د يوم الزينة سره مضاف محذوف دی ای موعدكم موعد يوم الزينة، او روح البيان يې داسې ترجمه کړې ده "ای زمان وعده شما كما قلنا سابقًا فيصح الحمل فافهم.

# وَاَنْ يُّحْشَرَ النَّاسُ ضُحًى ۝

عطف دی علی يوم الزينة او چې سره جمع سي خلګ كما هو معتادهم في كل يوم په وخت کې د پوخ څاښت يعني دا مقابله د حق او د باطل به د ورځې وي جهاراً چې تول خلګ يې ووينې.

**درېش وايي:** چې موسی ﷺ چې تودې او د زړه ډکي خبري کولې له دې کبله چې پر نصر د رب جلت قدرته ډاډه وو او دا ئې سل په سل يقين وو چې حق پر باطل غالب کېږي او فرعون طاغي به شرمنده کېږي.

# فَتَوَلّٰى فِرْعَوْنُ فَجَمَعَ كَيْدَهٗ ثُمَّ اَتٰى ۝

نو فرعون د موسی ﷺ څخه رهي سو او وده ته يې شا کړه او سره جمع يې کړی خپل کيد يعني "ذوی" کيده په حذف د مضاف چې عبارة د ساحرانو څخه د ده مملکت دي د پاره د غلبې پر موسی ﷺ "ثم اتی" بيا راغلی فرعون سره د قوم او د ساحرانو پر وخت مقرر "الی مکان معهود.

## قَالَ لَهُم مُّوسَىٰ وَيْلَكُمْ

وويل دوى ته موسى ﷺ يعني فرعون ومن معه من قومه ومن السحرة بغوي رحمه الله وايي چي ساحران چي فرعون جمع كړي وه (۷۲) دوو اويا ساحران وه او ده هر يوه سره يوه رسى. او يوه لكړه وه او كعب بن مالك وايي چي ساحران (۴۰۰) كسه وه او بعض راويان وايي (۱۲۰۰۰) دوولس زره كس وه وقيل اكثر من ذالك.

**پوه سه**: چي ويل هلاک ته وايي منصوب دى مفعول به د فعل محذوف اى الزمكم الويل" اى الهلاک پر تاسي لازم گرځولى دى هلاک او يا د نصب وجه يي دا ده چي مفعول مطلق دى د فعل محذوف "اى هلكتم هلاكاً" په هر صورت دا تقبيح د حال د دوى ده دمخه تر شروع په خبرو يعني.

## لَا تَفْتَرُوا عَلَى اللَّهِ كَذِبًا فَيُسْحِتَكُم بِعَذَابٍ ۖ وَقَدْ خَابَ مَنِ افْتَرَىٰ ﴿٦١﴾

كذباً مفعول مطلق دى د "لا تفتروا من غير لفظه نحو قعدت جلوساً" دروا غ مه واياست پر خداى ﷻ يعني چي فرعون خداى دى "فيسحتكم" خداى به تاسي هلاک كړي قاله مقاتل والكلبي رح، او قتادة رح وايي خداى به ستاسي استيصال وكړي يعني ټوله به هلاک كړي والمآل واحد "بعذاب" اى بعذاب عظيم كما يدل عليه التنكير او ناكام دى هغه څوک چي پر خداى ﷻ دروا غ وايي.

## فَتَنَازَعُوا أَمْرَهُم بَيْنَهُمْ وَأَسَرُّوا النَّجْوَىٰ ﴿٦٢﴾

سره بحث سو د ساحرانو چي د موسى ﷺ خبري يي واورېدلي او په عين حال كي د ېر درد هم ورغلى و. يعني په خپل كار كي د موسى ﷺ سره څرنګه مقابله بايد وكړه سي.

**پوه سه**: چي نجوى پټو خبرو ته وايي، نو د "اسروا" معنى دا ده چي دوى ډېره مبالغه كوله په پټ مجلس د دې دپاره چي موسى ﷺ په خبر نه سي، نو به دى زموږ د دفعه فلان وسنجوي، او كلبي وايي چي هغه پټه خبره د دوى دا وه چي كه موسى ﷺ پر موږ غالب سو موږ به پر ده ايمان راوړو انتهى.

**درويش وايي:** چي پر دې تقدير د پټو الي ځخه مراد پټ والى د فرعون ځخه دى.

# قَالُوٓا۟ إِنْ هَٰذَٰنِ لَسَٰحِرَٰنِ

دوى سره وويل وروسته تر ډېرو مشورو او د پټو خبرو په خپل مابين كي پر دې قول سره متفق سوه لكه فرعون چي به ويل.

**پوه سه:** چي "ان" مخفف د مثقل دى اسم يې ضمير شان محذوف دى او كلمه د لام په لساحران كي فارق دي په مابين د مخفف او د "ان" نافيه او "هٰذان" مبتدأ ده مشار اليه موسىٰ او هارون دي لساحران يې خبر دى والمعنى په تحقيق شان دا دى چي موسىٰ عليه السلام او هارون عليه السلام جادوگران دي كذا صاحب روح البيان او بعض مفسرين وايي چي "ان" نافيه دى او لام د لساحران په معنىٰ د الا دى والمعنى نه دي دغه دوه كسان يعني موسىٰ او هارون الا ساحران مگر جادو گران دي "وهذا مذهب الكوفيين ويؤيده قرائة مروية عن ابي "ان هٰذان الا ساحران"

**فائدة جليلة:** في اعراب هذه الاية پوه سه چي ابن كثير رحمه الله او حفص رحمه الله كلمه د "ان" مخفف وايي توجيه د دې قرائت هغه دوې خبري دي چي انفا تيري سوي فتدبر، او باقي قرأ سبعة رحمه الله كلمه د "ان" مشدد وايي. نو په دوى كي د ابو عمرو رحمه الله قرائت داسي دى "ان هٰذين لساحران" نو دا قرائت پر اصل د حروف مشبه بالفعل وارد دى چي هذين اسم د "ان" او منصوب په يا سره او "لساحران" يې خبر دى مرفوع دى خبر دى د "ان" عكس عمل الفعل كما تقرر في النحو، او نور قاريان "ان" خو مشدد وايي او وروسته "هٰذان لساحران" وايي دا قرائت ډېر مشكل يعني توجيه يې چي "ان" چي مشدد سي خو د حروف مشبه بالفعل ځخه دى اوسره د دې وروسته دوه مرفوع لفظ دي يعني دوه لفظ تثنيه چي "هٰذان" او "لساحران" چي حالت رفعي د تثنيې خو الف دى كما تقرر في النحو. هشام بن عروة وايي چي دا خطأ د كاتب ده يعني په ځاى كي د "هٰذين" يې "هٰذان" ليكلى دى مظهري وايي چي دا قول خطأ دى خارق للاجماع، او بعض وايي چي دا مبني پر لغت د قبيلې د خثعم او كنانه چي هغه تثنيه په حال كي د رفع او د نصب او د جر په الف وايي چي علامه د تثنيه ده او اعراب يې تقديري

بولي "يقولون اتاني الزيدان" ورئيت الزيدان ومررت بالزيدان.

**درويش وايي**: چي دا وو تحقيق د اعراب د دې آيت "وقلما يوجد مجتمعاً في تفسير ولله الحمد والمنة ومنه التوفيق.

يُرِيدَانِ أَنْ يُخْرِجَاكُمْ مِنْ أَرْضِكُمْ بِسِحْرِهِمَا وَيَذْهَبَا بِطَرِيقَتِكُمُ الْمُثْلَى ﴿٦٣﴾

دوی دوه اراده لري چي دوی دوه وباسي تاسي د مځکي ځخه ستاسي يعني چي مصر دی (پوه سه چي مراد له اخراج ځخه معنٰی حقيقي نه ده بلکه تسلط او حکمراني پر تاسي باندي) په خپل سحر سره، او د مابين ځخه يوسي هغه طريقه ستاسي چي فضلٰی د مثلٰی مؤنث د امثل دی په معنٰی د افضل، او مثلٰی صفت د طريقه دی چي مؤنث دی، ابن عباس رضي الله عنهما وايي چي مراد د طريقتكم ځخه خانان او اشراف د قوم دي "كما يقال هؤلاء طريقة قومهم" اى اشرافهم انتهٰى.

**درويش وايي**: چي د دې ترجمې حاصل دا دی چي سادات او اشراف د قوم به مو دوی يعني موسٰی او هارون يوې په بل پسي دروژني او پر تاسو او غريبانو باندي په خپله حکمراني کوي، او شعبي د علي رضي الله عنه ځخه روايت کړی دی چي دوی رفته رفته د خلگو مخه وخپله خواته راواړه وي، او قتاده رحمه الله وايي چي "طريقتهم المثلٰی" په دغه وخت کي بني اسرائيل وه چي اکثر عدداً او اموالاً وه چي د ده لعين دا مراد وو چي دا قوم به دوی يعني موسٰی او هارون در ځخه بوزي شام او بيت المقدس ته لکه موسٰی چي اول وار فرعون ته ويلي وه "ارسل معنا بني اسرائيل.

**درويش وايي**: چي دا توجيه مخالفه ده مشهور ځخه ده چي بني اسرائيل تو له تر ټرو او تر ښځو په خدمت کي د قبط قوم فرعون ولاړ وه په چا به يې د ختهو کارونه کول او په چا به يې زراعتي کارونه کول "الى غير ذالک" او په ښځو بې د قبطيانو د کورو خدمتونه کول. نو بني اسرائيل که اکثر عدداً وه اکثر مالاً څرنگه دي فتدبر.

او بعض مفسرين وايي چي "طريقتكم المثلٰی" ځخه مراد دا دی چي ستاسي سنت او دين به در بدل کړي لکه په بل ځای کي چي راغلي دي "اني اخاف ان يبدل دينكم"

**سوال:** د قبطيانو دين او سنت څه وو؟

**ځواب:** دا وو چي فرعون خداى دى كما قال "اللعين انا ربكم الاعلى"

فَأَجْمِعُوا كَيْدَكُمْ ثُمَّ ائْتُوا صَفًّا ۚ

تاسي سره جمع كړئ يعني ټينګ قصد وكړي پر هغه چم چي ستاسي زده دى "من السحر والزام موسٰى في السحر حتى يكون مغلوبًا بسحركم، بيا راسئ پر يوه صف باندي" پوه سه چي صف په اصل كي مصدر دى بمعنى جعل الاشياء على خط مستو (ګرځول دي د شيانو پر برابر خط باندي لكه خلګ يا درختي پر يوه خط باندي د دې سببه لمونځ كونكي په جماعت سره صف بولي) لكن دلته صف په معنٰى د فاعل دى يعني آيتو "مطفين" دا يي د دې سببه وويل چي پر صف ولاړ خلګ د ليدونكو په ستر ګو كي هيبت ناكه ښكاريږي تر متفرق خلګو كما يدل عليه التجربة. كذا قال مقاتل والكلبي.

**فائده:** صفًّا" چي په معنٰى د فاعل سي نو حال دى د ضمير څخه د "ايتو" ومنه قول الله تعالٰى "إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِهِ صَفًّا كَأَنَّهُم بُنْيَانٌ مَّرْصُوصٌ ۝".

**سوال:** ساحران خو ټوله په ميدان كي د مقابلې حاضر وه نو د "ائتوا صفًّا" څه ضرورت وو؟

**ځواب:** دوى سره متفرق وه په دې آيت راتګ نه دى بلكه مقصود صف بندي ده "ليكونوا اهيب في قلوب الرائين".

وَقَدْ أَفْلَحَ الْيَوْمَ مَنِ اسْتَعْلَىٰ ۝

دوى سره وويل چي بري به ومومي هغه څوك چي غالب سي. پوه سه چي دا جمله معترضه ده.

قَالُوا يَا مُوسَىٰ إِمَّا أَن تُلْقِيَ وَإِمَّا أَن نَّكُونَ أَوَّلَ مَنْ أَلْقَىٰ ۝

ساحرانو وويل وروسته تر دې چي موعد ته په صف ودريدل بعض وايي چي

دا ورروسته وینا د دوی د پاره د ادب وه د موسی علیه السلام سره، ای موسی یا به ته غورځوي خپله لکړه ومیدان ته او یا به موږ اول کسانو یو چي خپلي لکړي او رسي، میدان ته غورځو.

**درویش وایي:** چي دا بعیده ده چي دوی چي په مقابله کي د موسی علیه السلام ولاړ وه او بیا دی ادب ورسره کوي، والصحیح ما قال بعض المفسرین رحمهم الله چي د دي جهته څخه وو چي دوی ډاډه وه په خپل کامیابی سره که د مخه وي القا د دوی او که وروسته وي.

**اعراب:** پوه سه! چي "ان" سره د مابعد یا منصوب محلاً دی مفعول د فعل محذوف دی ای "اختر اما القائک اولاً واما کوننا اول من القی" او یا مرفوع محلاً دی خبر د محذوفي مبتدا دی والتقدیر "اما القائک اولاً او القائنا اولاً" کذا روح البیان وروح المعاني والمظهري رحمهم الله.

## قَالَ بَلْ أَلْقُوا فَإِذَا حِبَالُهُمْ وَعِصِيُّهُمْ

موسی علیه السلام ورته وویل بلکه تاسي القا اولاً وکړی، بعض مفسرین وایي "مقابلة للادب بالادب آه، وهذا لیس بشيئ لما قلنا انفاً" او بل چي موسی علیه السلام چي نبي وو څرنګه ادب کاوه د ساحرانو د فرعون دمعاونانو که څه وروسته دوی ایمان راوړی بلکه صحیح دا ده چي موسی علیه السلام باک د دوی په سحر سره نه کاوه او یا د دې پاره یې د تقدیم امر ورکړی چي دوی خپل غایت سعي مبذول کي وروسته به غلبه د موسی علیه السلام معلومه سي.

**سوال:** موسی علیه السلام ته خو دا معلومه وه چي دوی سحر کوي او سحر ګناه کبیره ده، نو ده امر ورکړی چي "بل القوا"

**ځواب:** موسی علیه السلام امر د سحر نه دی ورکړی بلکه امر د تقدیم یې ورکړی ولي موسی علیه السلام ته خو دا معلومه وه چي دوی خو فرعون د سحر د پاره را غوښتي دي او حتماً سحر کوي فافهم.

**پوه سه:** چي "حبال" جمع دحبل ده چي په پښتو یې رسی، بولي "وعصي" جمع د عصا ده چي په پښتو یې لکړه بولي اصل د عصی عصوو دی دواړه واوه

یې په دوو یائین سره واړول للاستثقال وکسرت العین والصاد.

**بوه سه:** چې دا کلام بنا دی پر محذوف في النظم "والتقدیر فالقوا احبالهم وعصیهم فاذا حبالهم" آه او کلمه د "اذا" ظرف زمان دی للمفاجات منصوب دی محلاً په فعل مفاجات سره مضاف وجمله اسمیې ته دی، او "حبالهم" وما عطف علیه مبتدأ ده ومابعده "یخیل" آه یې خبر دی فالمعنی فالقوا ففاجا موسٰی وقتًا حبالهم الخ.

**ژباړه:** دوی وغورځولې خپلې رسۍ او لکړې نو ناببره موسٰی ﷺ ولیده هغه وخت چې لکړې او رسۍ د دوی په حرکت کې راغلې.

يُخَيَّلُ إِلَيْهِ مِن سِحْرِهِمْ أَنَّهَا تَسْعَىٰ ﴿٦٦﴾

په خیال کې د موسٰی ﷺ په سبب د سحر د دوی چې دغه رسۍ او لکړې ځغلې یعنې دوی په سحر سره د خلګو د موسٰی ﷺ او د ټوله مجمع چشم بندي یې وکړه، حتی چې د موسٰی ﷺ او قوم دا خیال سو چې ټوله میدان د مارانو ډک سو او په حال کې د حرکت سریعه دې.

**درویش وایې:** چې بعض مفسرین چې وایې چې دوی ټولې رسۍ او لکړې په زیبق چې پاره یې بولې ککښې کړې وې چې لمر پر راتود سو ټوله په حرکت سوې آه دا خبره د نظم څخه د قرآن مخالف ده ولې چې اول دا خبره روح المعاني رد کړې ده او بل دا چې قرآن مبارک وایې "بسحرهم" او د زیبق ککنرول سحر نه دی بلکه اوس هم داسې حیله هرسړی کولای سي ولا تعلق له بکون الشخص ساحر بلکه داسې خلګو ته اصحاب الحیل وایې فتأمل.

**درویش وایې:** چې د سحر زده کړه په تقرب د شیطانانو او د قرآن مبارک د اوراقو په نجاساتو کې اچول او خدای ﷻ او رسولانو ته د خدای ﷻ په بد ویلو سره پای ته رسیږي. د بابل په ښاخ (کوهي) کې چې دوې ملکې د پاره د تعلیم السحر امتحانًا را استولي دي چې قصه یې ذکر اوړده ده. که دې ښاخ ته څوک ورسي د سحر د زده کولو د پاره هغه ملکې د دنه څخه د ښا ورته وایې "انما نحن فتنة فلا تکفر" موږ امتحان یو د خلګو د پاره نو کافر کېږه مه یعنې د

سحر زده کړه کفر دی کافر کېږه مه او بله خبره دا ده چې زیبق ډېر قیمتي شي دی چې د اختلاط څخه د زیبق او سره گوگړ چې په اعماق د مځکې په قدرت دخدای ﷻ سره جمع سي سره زر گرځي نو دونه زیبق د کوم ځایه دوی ته میسر سوه چې دوی دا دونه په زرگونو رسی او لکړې په مالش کړې.

فَأَوْجَسَ فِي نَفْسِهِ خِيفَةً مُّوسَىٰ ﴿٦٧﴾

نو دا صحنه چې موسیٰ علیه السلام ولیده د احساس په زړه کې خیفة یو لږ بېره نو تنوین د پاره د تقلیل دی موسیٰ فاعل د اوجس دی د پاره د مطابقت د رؤس الایات تر مفعول وروسته راوړی دی په قاموس کې وایي "الوجس الخوف والفزع يقع في القلب او السمع من صوت" او غیره علماً وایي چې سبب د خوف د موسیٰ علیه السلام دا وو چې زه که لکړه ورو غورځوم خو هغه به هم یو مار سي د مارانو څخه نو حق او باطل پر خلگو به التباس راسي او د فرعون هغه خبره چې د موسیٰ علیه السلام ته وکړه "فلنأتينك بسحر مثله" خلگو ته به رشتیا په خیال ورسي.

قُلْنَا لَا تَخَفْ إِنَّكَ أَنتَ الْأَعْلَىٰ ﴿٦٨﴾

مونږ ورته وویل په وخت کې د بېرې د ده چې ته مه بېرېږه په دې علت چې ته په تحقیق سره اعلیٰ او غالب یې په دې عبارت کې خدای ﷻ موسیٰ علیه السلام په ډېر تاکید سره ډاډگېرنه ورکړه (۱) جمله مستانفه یې راوړه (۲) حرف التحقیق چې "ان" دی (۳) ضمیر الفصل یې راوړی چې انت دی (۴) لفظ دعلو یې راوړی چې دلالت پر غلبه ظاهره کوي (۵) صیغه د اسم تفضیل یې راوړه چې اعلیٰ ده.

وَأَلْقِ مَا فِي يَمِينِكَ تَلْقَفْ

عطف دی پر لاتخف وروغورځوه هغه شی چې ستا په راسته لاس کې دی.

**سوال:** عصاک یې نه وه وایه حکمت یې څه دی؟

**ځواب:** حکمت یې تحقیر دحبال او عصا د ساحرانو دی یعني لا تبال بکثرة الحبال والعصي" او یا په ابهام کې نکته دا ده چې تعظیم د لکړې د موسیٰ علیه السلام یې وکړی چې ستا لکړه که څه هم په ذات لږگی دی لکن "في الحقيقة شيئ آخر

کما تری من اثارها الغریبة بعد الالقا حیث قال الله تعالی "تلقف" دا قرائت د حفص دی یعني په اسکان د لام او په تخفیف د قاف او نور قرا یې په فتح اللام او تشدید القاف وایي چي اصل یې تتلقف وو د باب د تفعیل او بیا یوه تا ځنې حذف کړه په هر صورت ضمیر مؤنث راجع دی وعصا ته چي مؤنث سماعي ده.

**سوال:** عصا خو په دې ځای کي نه دی ذکر سوی؟

**ځواب:** ما في یمینک خو عبارت د عصا څخه دی فالتانیث باعتبار معنی لفظ ما لا باعتبار لفظه فافهم.

مَا صَنَعُوا اِنَّمَا صَنَعُوا كَيْدُ سٰحِرٍ

والمعنی تبلتع وتاکل" ستا لکړه هغه شیان او لکړي او رسۍ چي په رنګ د مارانو دي په تحقیق هغه ماران چي دوی په سترګو کي د خلګو وروستلي دي هغه کید او چم د ساحر دی والمراد بالساحر الجنس الذي یشمل الکثیر لان السحرة کانوا کثیرون کما مر.

**یوه سه:** چي ساحر پر وزن د فاعل قرائت دی د ډېرو قاریانو او حمزه وکسائي یې سحر بکسر السین بلا الف وایي یعني مصدر یې بولي نو کید مضاف دی وسحر ته په اضافت بیانیه سره او یا مضاف محذوف دی والتقدیر کید ذي سحر فیرجع الی معنی ساحر او یا وساحر ته به سحر مبالغة ویلي دي لکه زید عدل.

وَلَا يُفْلِحُ السّٰحِرُ حَيْثُ اَتٰى ۝

او کامیابي نه سي پیدا کولای ساحر "د حیث اتی معنی بعض مفسران حیث احتال یعني هر ځای چي خپله حیله پر کار واچوي.

**مسئله:** په حدیث کي د ابن ابي حاتم او ترمذي د جندب بن عبد الله ﷺ څخه نقل داسي راغلی دی چي رسول الله ﷺ وویل "اذا وجدتم الساحر فاقتلوه" وروسته ﷺ دا آیت (یعني د دلیل په توګه ووایه) ولا یفلح الساحر حیث اتی" په نصاب الاحتساب کي وایي چي که ساحر توبه وکړي نه تر ګرفتار کولو دمخه توبه یې قبلېږي او که یې وروسته تر ګرفتار کولو توبه وکښل نه قبلېږي او په شرح کي د رمضان افندي پر شرح العقائد وایي "ان الساحر یقتل ذکرا کان او انثی اذا کان سعیه بالافساد

والاهلاک في الارض وان کان سعيه بالکفر فيقتل الذکر دون الانثى انتهى، د فقه په کتابو کي وايي چي ساحره ښځه چي مسلمانه وي نه دي وژني لکن ضرب وکوب دي ورکړي او بندي دي کړي "لانها ارتکبت جريمة عظيمة" او وژني يې ولي نه د دې سببه چي ﷺ د قتل د ښځو مطلقاً منع کړي ده آه "وفي الفتاوى الاشباه والنظائر کي وايي چي هر کافر چي توبه وکاږي توبه يې مقبوله ده في الدنيا والاخرة الا الکافر بسب النبي ﷺ او بسب الشيخين يعني ابوبکر وعمر رضي الله عنهما او احدهما وبالسحر ولو امرئة وبالزندقة اذا اخذ قبل التوبة انتهى.

**پوښتنه:** په خلګو يعني مسلمانانو کي د زنديق لفظ ډېر مستعملېږي معنى د زنديق څه ده؟

**ځواب:** په فتاوى کي د قارئ الهداية وايي چي زنديق وه هغه سړي ته وايي چي زمانه باقي بولي يعني "لا يؤمن بالآخرة" او نه عالم لره خالق وايي، بلکه وايي "ما يهلکنا الا الدهر ويعتقد ان الاموال والحرم (يعني ښځي شريکي دي انتهى.

**درويش وايي:** چي دا څو مسائل معترضه وې اوس بېرته د تفسير القرآن پر لور، هغه چي موسى عليه السلام خپله د لرګي لکړه ميدان ته د ساحرانو د مصنوعي او سحري مارانو ته ورو وغورځول هغه لکړه لوى ثعبانسوله او هغه د ساحرانو مصنوعي ماران يې يو په بل پسي تيروله چي ميدان يې تپوله صفا کړی او چي موسى عليه السلام هغه لوى مار د لکړي را واخستى هغه وچه کلکه ده لرګي لکړه وه نو ساحرانو وويل چي دا د سحر کار نه دی بلکه دا يوه معجزه د معجزاتو څخه د خداى جلت قدرته ده چي د موسى عليه السلام پر رسالت من جانب الله دلالت وکړي.

فَأُلْقِيَ السَّحَرَةُ سُجَّدًا قَالُوٓا ءَامَنَّا بِرَبِّ هَٰرُونَ وَمُوسَىٰ ﴿٧٠﴾

نو پرېتول ساحران يعني په هيئت اجتماعي پر سجده لله تعالى، د پاره د توبې له ما صنعوا څخه، او يا د پاره د تعظيم د مارڼا من آيات الله. مونږ ايمان راوړی دی پر رب د هارون او موسى عليهما السلام.

**پوښتنه:** "القوا" خو مجهوله صيغه ده نو فاعل يې څه شی دی؟

**ځواب:** بعض مفسران وايي چي فاعل يې دامعرفة د حق وو چي دوی ته

معلوم سو، او بعض مفسران وايي چي دوی داسي په تلوار سجده وکړي ګويا بل چا پر سجده پر بستله "ففيه مبالغة في الاسراع في السجدة.

**پوښتنه**: په دې آيت کي يې هارون تر موسىٰ عليه السلام د مخه کړی او سره د دې چي په سورة اعراف او په سورة شعرا کي داسي راغلي دي "آمنا برب العالمين رب موسىٰ وهارون؟

**ځواب**: کلمه د واو د پاره د مطلق جمع دی، يعني ترتيب نه غواړي لکه فاء عاطفه او نه تراخي غواړي لکه کلمه د ثم عاطفه. دلته چي هارون د مخه کړی دی د مراعات د رؤس الايات.

**سوال**: تا ډېر ځايونه لفظ د رؤس الايات ويلی دی، او سره د دې چي د اخر او اخر د آياتو دي؟

**ځواب**: لکه د انسان تکميل چي په سر پوري اړه لري، دغه رنګه اتمام د آيت د قرآن کريم په پای سره د آيت معلومېږي، ولي بعض آيتونه ډېر لوی دي لکه آيت المداينة في القرآن او بعض آيتونه ډېر کښتني وي لکه "الٓمٓ" في مواضعه او بعض ميانه نو د دې کبله د اواخرو ته د آيتو مفسرين رؤس الآی وايي فافهم فانه سانح عزيز.

**پوښتنه**: اضافت د رب وهارون او موسىٰ ته په دې آيت کي د څه حکمت د پاره وکړه سو او سره د دې چي خدای ﷻ د ټوله عالم المخلوقات رب دی؟

**ځواب**: حکمت يې دا دی چي هارون او موسىٰ ورب ته بلونکي دي او د دې دوو په تبليغ کرامت سره دوی ته حاصل سو، يعني د ايمان کرامت ځکه په بل ځای کي د قرآن کريم داسي راغلي دي "آمنا برب العالمين رب موسىٰ وهارون فتدبر.

قَالَ اٰمَنۡتُمۡ لَهٗ قَبۡلَ اَنۡ اٰذَنَ لَكُمۡ

"قال" يعني فرعون وويل وساحرانو ته، آيا تاسي ايمان راوړئ د ده په قول سره "وهمزة الاستفهام للانكار عليهم بمعنى لا ينبغي لكم ذالک، د مخه تر دې چي ما تاسي ته اجازه د ايمان ورکړې وای.

**پوه سه**: چي اصل د دې عبارت "أءمنتم" وو يو همزه يې په الف بدل کړی

**درویش وايي**: چي فرعون چي په را غونډولو کي د ساحرانو لپاره د مقابلې د موسیٰ ﷺ ناکام سو نو عناداً او تکبراً عن الایمان او د پاره د دفع د خجالت د ځان څخه او د منع کولو د قبط د ایمان بموسیٰ څخه بل مخ یې پر کښېښو، یعني قال اللعین.

## إِنَّهُۥ لَكَبِيرُكُمُ ٱلَّذِى عَلَّمَكُمُ ٱلسِّحْرَ

دی یعني موسیٰ ﷺ مشر او استاذ دی په سحر کي نو ددې سببه پر تاس غالبه سو یعني لا لانه رسول، هغه کبیر دی چي تاسي ته یې تعلیم او ښوونه د سحر کړې وه، او تاسي او ده پر موجوده کارونو اتفاق سره کړی وو.

**متل**: پشي تر یوختنه پوري د زمري څخه ځغلي، لیکن که د تېښتي ځای نسو پاته د زمري پر سترګو حمله کوي. نو فرعون چي غار تنګی او ملامت سو د تابعانو د موسیٰ ﷺ چي ساحران وه او ایمان یې راوړی داسي حمله وکړه او داسي دهمکي یې ورکړه.

## فَلَأُقَطِّعَنَّ أَيْدِيَكُمْ وَأَرْجُلَكُم مِّنْ خِلَٰفٍ

کلمة الفا للتفريع علی ما قبل هر آینه او خامخا به زه در پریکم لاسونه ستاسي او پښې ستاسي پر جهت مخالف یعني "الید الیمنی والرجل الیسریٰ"

**یوه سه**: چي کلمه د من ابتدائیه ده او متعلق په "لاقطعن" پوري ده "کان القطع ابتداً في مخالفة العضو العضو" کذا قال روح البیان والمظهري وروح المعاني مع تطویل البحث فیه.

## وَلَأُصَلِّبَنَّكُمْ فِى جُذُوعِ ٱلنَّخْلِ

**یوه سه**: چي مفسرین تول په یوه خوله وايي چي کلمه او في په معنیٰ د علی ده في ظرفي راوړه په ځای کي د علی وجه یې دا ده چي د ډېره زمانه به په صلب باقي یاست لکه مظروف په ظرف کي چي باقي وي.

**یوه سه**: چي صلب په لغت کي ځړول دي د انسان په یو شي پوري د پاره د قتل، وقیل هو شد الصلب علی خشب وبالفارسية کما قال الکاشفي رح وهر آئینه بر اویزم شما را در تن خرما که دراز ترین درختان است تا همه خلق را به بینند وعبرت گیرند.

تاريخ پوهان وايي چې فرعون اول سړی دی چې صلب يې رواج کړی.

وَلَتَعْلَمُنَّ أَيُّنَا أَشَدُّ عَذَابًا وَأَبْقَىٰ ﴿٧١﴾

او تاسي به پوه سئ چې کوم يو زموږ يعني زه پر ايمان راوړو ستاسي او پا رب د موسی چې تاسي ايمان نه پر راوړی سخت دی په عذاب ورکولو کې او ابقی معنی دوام داره دی د چا عذاب زما او که د رب د موسی ﷺ.

قَالُوا لَن نُّؤْثِرَكَ عَلَىٰ مَا جَاءَنَا مِنَ الْبَيِّنَاتِ

ساحرانو ورته وويل موږ تا نه مختار کوو يا فرعون عائد محذوف دی ای به والفاعل هو موسی ؑ "البينٰت" ای المعجزات الظاهرات چې عصا او يد بضا دی، او بعض مفسرين وايي چې د بيناتو معنی دلائل د قدرت الٰهي هغه دا چې د موسی ؑ لکړي چې تولي رسئ او لکړي د دوی وخوړلي. نو دوی يو د بله سره وويل که د موسی سحر وای نو هغه زموږ رسئ او لکړي څه سوي، او بغوي ؒ وايي چې دوی چې پر سجده پريوته دوی سرونه نه کړه را پورته چې خدای په دوی جنت او دوږخ وليدی، او ثواب د اهل جنت او خپل ځايونه په جنت کې هم وليدله نو د بيناتو څخه مراد دغه موجبات د خوشحالی د دوی دي ولهذا قالوا لن نوثرک علی ما جائنا من البينات.

وَالَّذِي فَطَرَنَا

عطف دی علی "ما جائنا" او تا نه مختار کوو پر هغه چا چې موږ يې پيدا کړو بلکه ټوله مخلوقات چې مراد څندي خدای ﷻ دی يعني تا ته د ربوبية نسبت نه کوو لکه په خوا بلکه هغه چا ته يې کوو چې موږ يې د عدم د ظلمت څخه ونور ته د جود را ايستلي يو.

**درويش وايي:** چې د لاوړو ساحرانو چې په ايمان مشرف سوي وه د فرعون لعين د تهديد او پيش رو جواب يې په دي الفاظو ورکړی.

فَاقْضِ مَا أَنتَ قَاضٍ ۖ إِنَّمَا تَقْضِي هَٰذِهِ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا ﴿٧٢﴾

ته وکړه هر څه چې ته کوي يعني په موږ سره فالموصول مع صلته مفعول به دی د "اقض" او عائد د موصول ته محذوف ای قاضيه. "انما تقضی آه" ای انما تصنع ما تهواه.

**پوه سه:** چي هذه الحيوة الخ منصوب محلاً دى ظرف زمان دى بحذف المضاف يعني انما تصنع زمان هذه الحيوة الدنيا" ليكن ستا سلطنت او حكمراني به ژر تيره سي يعني موږ ستا د صلب ځخه نه بيريږو.

إِنَّآ ءَامَنَّا بِرَبِّنَا لِيَغْفِرَ لَنَا خَطَٰيَٰنَا وَمَآ أَكْرَهْتَنَا عَلَيْهِ مِنَ ٱلسِّحْرِ

موږ ايمان راوړی دی پر رب زموږ چي موږ ته را وبخښي گناهونه زموږ "من الكفر والمعاصي، لان الاسلام يجب ماقبله كما ورد في حديث النبي ﷺ "وما اكرهتنا آه" عطف دی پر "خطايانا" او من السحر بيان دی د ما او هغه شی موږ ته را وبخښئ چي هغه شی تا په زور په موږ وکړی چي هغه سحر دی.

**سوال:** دوی څرنگه وويل چي تا موږ مجبوره کړو پر سحر او سره ددي چي دوی ابتداً قسمونه اخيسته بعزة فرعون "انا نحن الغالبون"؟

**ځواب:** بغوي وايي په روايت د الحسن ځخه چي فرعون د مخ تر دې واقعې بعض خلگ مجبوره کړي وه پر زده کړه د سحر تا چي د سحر اصل ورک نه سي چي د هغو په جمله کي دغه ساحران هم وه او عبد العزيز بن ابان وايي چي ساحرانو فرعون ته وويل چي ته موسى ﷺ په موږ بيده وينه نو فرعون كوشش وكړی موسى ﷺ يې په دوی بيده ولېدی او لکړې د مار په شکل پېره پر كول نو ساحرانو فرعون ته وويل چي دا لکړه مار کېدل په وخت د نوم کي د موسى سحر نه دی ولي چي ساحر بيده سي سحر يې باطلېږي نو دوی منع وکړه چي د دې سرې سره موږ مقابله نه کوو فرعون دوی مجبور کړه چي حتماً به مقابله د موسى ﷺ په سحر سره کوي "وهذا معنا قولهم وما اكرهتنا الخ" او مقاتل وايي چي فرعون جبراً (۷۲) کسان چي دوه يې قبط او (۷۰) د بني اسرائيلو ځخه وه پر پر زده کړه د سحر اماده کړي وه په وخت د مقابلې د موسى ﷺ يې هم دغه (۷۲) کسان حاضر کړه د مختلفو ښارو ځخه را وغوښتل كما مر في قوله تعالى "وارسل في المدائن حاشرين" الاية په وخت کي د مقابلې د موسى ﷺ چي هغه د بني اسرائيلو د قوم ځخه وو ساحرانو د بني اسرائيلو چي (۷۰) کسه وه پر قومي سطح له مقابلې ځخه د موسى ﷺ

دي. وکړه فرعون هغه مجبوره کړه پر مقابلې د موسی ﷺ او تهدید د قتل یې
ورکړی "ان لم یفعلوا ذالک فذالک قول سحرة بني اسرائیل وما اکرهتنا علیه من
السحر" والله اعلم بحقیقة الحال.

وَاللّٰهُ خَيْرٌ وَّ اَبْقٰى ﴿۷۳﴾

سحرة وو فرعون ته وویل چي خدای ﷻ خیر دی تر تا بلکه تر جمیع
مخلوقاتو یعني از روی اجرة والثواب. لمن یاتیه مؤمنا وقد عمل الصالحات
"وابقی" یا معنی دا ده چي خدای ﷻ ادوم دی عذاباً لمن جائه مجرما بالکفر
والمعاصي" دا قول د محمد اسحٰق او د محمد بن کعب دی نو دا گویا جواب د
هغه قول د فرعون کما مر فعلی هذا تاکید لما قبله یعني خیر.

اِنَّهٗ مَنْ يَّاْتِ رَبَّهٗ مُجْرِمًا فَاِنَّ لَهٗ جَهَنَّمَ ۚ لَا يَمُوْتُ فِيْهَا وَلَا يَحْيٰى ﴿۷۴﴾

په تحقیق شان دا دی چي څوک چي ورسي ورب ته د ده یعني په ورځ د قیامت
مجرم په کفر او معاصي سره "بان مات علی کفره ومعاصیه" هغه لره دوزخ دی چي
په کښي مري تاچي د عذابه په استراحت سي او نه ژوندی حیوة مستریح سره.

وَمَنْ يَّاْتِهٖ مُؤْمِنًا قَدْ عَمِلَ الصّٰلِحٰتِ فَاُولٰٓئِكَ لَهُمُ الدَّرَجٰتُ الْعُلٰى ﴿۷۵﴾

او هغه څوک چي ورسي خدای تعالی یعني "في یوم القیامة" په داسي حال
کي چي مؤمن وي او عمل د صالحاتو یې هم کړی وي نو دغو کسانو لره دي
درجې بلندي یعني په جنت کي.

**پوه سه:** چي "علی" جمع د علیا ده چي مؤنث د اعلی دی والمراد المنازل الرفیعة.

جَنّٰتُ عَدْنٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۭ

جنتونه دي د اقامت "دا بدل یا عطف بیان دی د "الدرجات العلی" چي
بهیږي به لاندي تر قصورو د دوی ولې، یعني عسل، شیدې، اوبه او شراب،
چي دوی به اباد الاباد بلا موت ولا مرض په دغو جنتو کي وي.

**پوه سه:** چي "خالدین" حال دی د ضمیر مجرور څخه په لهم کي عامل معنی
د اشاري په اولئک کي چي دې ته په نحو کي عامل معنوي وایي.

# وَذٰلِكَ جَزٰٓؤُا مَنۡ تَزَكّٰى ﴿٧٦﴾

په تاویل د مذکور دغه جنات عدن الموصوفة باوصافها المذکورة، جزاً او ثواب دی د هغه چا چي ځان يې د کفر او معاصیو څخه پاک ساتلی وي د ابو سعید الخدري ﷺ او د جابر بن سمرة ﷺ او د ابي هریرة ﷺ په صحیح اسانیدو د احمد او ترمذي او ابن ماجة او ابن حبان او طبراني راغلي دي دوی ټوله وايي قال رسول الله ﷺ ان اهل الدرجات العلی لیراهم من هو اسفل منهم کما ترون الکوکب الطالع في افق السما" په يو بل حدیث کي راغلي چي اصحابو کرامو ﷺ وويل يا رسول الله تلک منازل الانبیاً لا یبلغها غیرهم. علیه الصلوة والسلام وويل بلی يعني نور هم ور رسيدلای سي "رجال آمنوا بالله وصدقوا الرسل" د رجال په تنکیر کي اشارة و بعضیت ته ده بعض مفسرين وايي چي دا د کلامه څخه د سحرة وو نه دی بلکي ابتداً د کلام د خدای دی د پاره د تصدیق د قول د سحره وو، او بعض مفسرين وايي چي دا اخیري کلام دی د سحره وو چي بیان د علت دی لقولهم والله خیر وابقی والله اعلم بالصواب.

**درویش وايي:** چي د موسی ﷺ (۹) معجزې په اوږدو کي د کلو يعني شل کاله فرعون او قبط ولېدلي بيا يې هم سرونه ايمان راوړلو ته نه کړه کنبته. او خجالت سپکاوی د مقابلې دساحرانو چي ده راغونډ کړي وه هم پر ورغلی بيا يې عبرت وانه خستی او د ظلم او د تکبر له کبله يې بې وزلي او بيچاره ساحران چي ايمان يې راوړی په بې زړه سوی قتل او دار ته پورته کړه او د رب العزت امهال هم پای ته ورسېدی او د غضب الهي درياب په جوش راغلی او د بني اسرائیلو د خلاصون د دې ظالم قوم څخه نوبت ورسيدی او د خدای جلت قدرته نيتيه ورسېده د عذاب دنيوي ودې لوی طاغي ته نو يې موسی ﷺ ته ويل داسي.

# وَلَقَدۡ اَوۡحَيۡنَاۤ اِلٰى مُوۡسٰٓى ۙ اَنۡ اَسۡرِ بِعِبَادِىۡ

لام موطئه د قسم محذوف دی ای والله په تحقیق موږ وحي وکړې و موسی ﷺ ته چي د شپې وباسه له مصر څخه زما بندګان يعني بني اسرائیل.

**پوه سه**: چي د لقد آه جمله عطف پر ولقد مننا علیک مرة اخرئ" او د علیک د خطاب څخه وموسی ﷺ ته یې نقل کړي عبارت وغیبت ته یعني الی موسی ﷺ چي اسم ظاهر دی.

**فَاضْرِبْ لَهُمْ طَرِيقًا فِي الْبَحْرِ يَبَسًا لَّا تَخَافُ دَرَكًا وَلَا تَخْشَىٰ** ﴿۷۷﴾

نو ته ورګوځوي دوی ته یعني "فاضرب بعصاک البحر یکن طریقًا، لار په دریاب کي وچه" یعني خلاف العادة ولي اوبه چي د یو ځای څخه ایسته سي هغه ځای حو لندې ختي پاتېږي لکن دا لار به په قدرت د خدای وچه کلکه به وي، او نه به ته بېرېږي د غرق څخه.

**پوه سه**: چي "یبسًا" مصدر دی وصف به الطریق مبالغة فلا یرد ان الطریق مونث سماعي فکیف وصفت بالمذکر یعني یبسًا وجه د دفع یې دا ده چي په مصدر کي مذکر او مونث برابر دي کما تقرر في النحو.

**فائده**: بحر هر فراخه ځای ته وایي چي ډېري اوبه په کښې وي، روح البیان وایې چي مراد دې څخه بحر القلزم دی په قاموس کي وایې چي قلزم د یو ښار نوم دی چي په مابین کي د مکة المکرمة او مصر دی قریب وطورته او اضافت د بحر وقلزم ښارته ددې سببه کوي چي دغه ښار پر یو طرف د دغه بحر دی او بعض وایې مراد دې بحر څخه رود نیل دی چي د مصر رود دی.

**پوه سه**: چي اکثر قرا "لاتخاف" په رفع سره وایي پر صیغه د اخبار یعني ته به نه بېرېږي د "درکا" معنی دا ده چي د رسیدو څخه د دښمن چي فرعون وقومه وه او حمزه "لاتخف" په جزم سره وایې یانهي دي او یاجواب د امر دی یعني فاضرب او جمله د "لاتخاف" مرفوع محلاً حال د فاعل څخه د اضرب او یا دوهم صفت دی د طریق، واو یا استینافي دي او یا دا جمله عطف ده پر "لاتخاف" باندي پوه سه: چي موسی ﷺ هم داغسي وکړه چي ټوله بني اسرائیل نر او ښځي او کشتیان یې ټوله چي حساب یې شپږ لکه وو تخمینًا د شپې د مخه د مصر څخه وایستل او دریاب یې په لکړه ووا هه قال الله تعالی في موضع آخر "فانفلق فکان فرق کالطود العظیم" یعني لکه لوی غر او وچه کړه خدای په خپل قدرت سره نو بني اسرائیلو تر رود پوري وته.

## فَأَتْبَعَهُمْ فِرْعَوْنُ بِجُنُودِهِ

نو فرعون چي خبر سو چي بني اسرائيل سره د موسی او هارون علیهما السلام د شپې د مصره وتلي دي نو فرعون سره د لښکر خپل پسې ووتی، نو کله چې پر مقدمة الجيش يې هامان قوماندان کړی چي شپږ لکه خلگ يې ورسره روان کړه تاسي اندازه ولگوئ چي د فرعون سره به څومره اندازه قبطيان ملگري وه پښتانه وايې د مرچو د قراره څخه اټکل ورته وکړه.

## فَغَشِيَهُم مِّنَ الْيَمِّ مَا غَشِيَهُمْ ﴿٧٨﴾

نو دوی ټوله ډوب او پټ کړه من اليم ای من ما اليم ای البحر.

**پوه سه:** چي کلمه د من د پاره د بيان ده او احتمال د تبعيض هم سته يعني بعض "ما اليم لاكله" او په ما غشيهم کي لويه مبالغه ده يعني دومره اوبه وې چي اندازه يې خدای ﷻ ته معلومه ده چي څو گزه يا ميله اوبه پر دوی سرپېره سوې او ضمير منصوب دواړه ځايه وفرعون او وجنوده ته راجع دی او من اليم حال دی د ما غشيهم څخه.

**درويش وايې:** چي دا قصه په بل ځای کي ډېره مفصله راغلې ده او په هغه ځای کي داسي راغلي دي چي موسی ﷺ (۱۲) ځايه درياب په لکړه وواهه چي (۱۲) کوڅې پکښي پيدا سوې بعدد اسباط بني اسرائيل چي د دوی قومونه هم (۱۲) وه او په هغه ځای کي دا هم راغلي دي چي مځکه د مصر خدای ﷻ په ميراث ورکړه بني اسرائيلو ته.

## وَأَضَلَّ فِرْعَوْنُ قَوْمَهُ وَمَا هَدَىٰ ﴿٧٩﴾

او گمراه کړي وه فرعون خپل قوم قبط او راه راست يې نه وه ورښولی په دي آيت کي تکذيب دی د قول د فرعون چي ده قوم ته قبط کاوه "وما اهديكم الا سبيل الرشاد"

**درويش وايې:** چي پښتانه يوه ډېره معقوله او د منقول سره هم برابره خبره کوي دوی وايې ساتنه د خدای ﷻ ښه ده لکه په دې قصه کي د موسی او فرعون

چي دا حقیقت پوره توضیح سوه هم په دې مناسبت یوه صحیح قصه واورئ.

عبد الله الثقفي رحمه الله وایې چي حجاج بن یوسف (چي اظلم الناس په عربي نړۍ کي چي قصنې د ظلم یې اشهر واظهر من الشمس دي) انس بن مالک رضي الله عنه "خادم رسول الله ﷺ (۱۰) کاله" را وغوښتی ورته وه یې ویل چي ما اراده کړې ده چي تا قتل کړم په بد قتل سره، انس رضي الله عنه ورته وویل چي که زما یقین سي چي ته ما وژلای سي ما به ستا عبادت کولای من دون الله حجاج ورته وویل ولې، انس رضي الله عنه وویل له دې سببه چي علیه الصلوة والسلام ماته یوه دعا را ښولې ده او علیه الصلوة والسلام وویل "من دعا به في کل صباح لم یکن لاحد علیه سبیل" ما هغه دعا نن سهار کړې ده حجاج ورته وویل چي هغه دعا ماته را وښیه انس رضي الله عنه ورته وویل معاذ الله چي زه یې چاته ښیم چي ته ژوندی یې راوي وایې چي د حجاج مخ ژړ سو و عسکرو ته یې وویل خلوا سبیله یعني انس رضي الله عنه رخصت کړئ، انس رضي الله عنه خو ولاړی لکن حاضران د مجلس د حجاج حیران سوه چي حجاج وکوره او دونه حلم لکه انس رضي الله عنه ته چي یې وکړی او سره ددې چي انس رضي الله عنه هم شوه نه ورته راوړه، نو داهل مجلس څخه چا پوښتنه د حجاج څخه وکړه چي انس رضي الله عنه دې څرنګه ژر معاف کړی او ستا مخ ولې ژړ سو؟ حجاج ورته وویل چي انس رضي الله عنه چي خپلې خبرې تمامې کړې پر داورو اوږو یې دوه غټ غټ زمریان را پورته سوه خولې یې وازې نیولې وې، نو زه وبېرېدم که زه پر انس رضي الله عنه تعرض وکړم زمریان به را پکښې سپاره سي.

راوي وایې چي د انس رضي الله عنه دوفات وخت چي را نژدې سو خپل خادم ته یې وویل چي ته پر ما حق د خدمت لرې نو هغه دعا یې وروښول قال له قل "بسم الله خیر الاسما بسم الله رب الارض ورب السما بسم الله الذي لا یضر مع اسمه شئ في الارض ولا في السما"

**درویش وایې:** چي د دې دعا خو په دنیا کي دغه تاثیر وو چي تاسي په قصه کي د حجاج او انس رضي الله عنه واورېدی نو که دغه دعا علی الصباح څوک ورد وګرځوي په آخیرت به د دې دعا په برکت به په قیامت کي به د عذاب النار څخه خلاصون

مومي وما ذالک علی الله بعزیز علما گفته اند "کی خداوند عالم کسي را به بها نمي بخشد" وبيهانه مي بخشد" اللهم اغفر لي ذنوبي كلها باي وجه كان آمين.

فذلكة: درویش وايي چي هغه بيان چي وړاندي تېر سو چي موسى ﷺ چي اراده د سفر ومصر ته وکړه سره د کور ودانې صفورا او موسى ﷺ صفورا ته وویل چي پلار ته دي ووايه چي موږ ته ځو مېږي پسونه راکړي الخ. دا قصه مظهري ﷫ په خپل تفسير کي هم په هغه ځای کي کړې ده، نو اوس دا پوښتنه د خلګو په زړو کي ورګرځي چي موسى ﷺ چي سره د پسو او يو شپانه او صفورا په يوه شپه د کوه طور محاذات ته راغله او يخ هم وو او لار هم ځندي ورکه وه او د طور په جانب کي اور ولېدی او ملګري هوري پرېښول او دا يې ورته وويل "لعلي آتيكم بقبس آه" كمامر تفصيلا او موسى ﷺ چي د اور ځای ته ورغلی هوري خبري ورسره وکړې و رسالت يې ورکړی كما مر مفصلا موسى ﷺ بيرته د سفر ملګرو ته راغلی که څرنګه؟

روح البيان په (٥ جلد ص ٣٨٧) کي وايي چي موسى ﷺ ته چي خدای رسالت ورکړی او د ده سوالونه قبول کړه (يعني کمامر في هذا التفسير) موسى ﷺ د هغه ځايه څخه د مصر پر خوا روان سو، د فرعون د پيغام آلهي د رسولو د پاره "وشيعته الملائكة يصافحونه وخلف اهله في الموضع الذي تركهم فيه" او پرېښول اهل خپل يعني صفورا سره د پسو وغيره کما مر مفصلا در تيسير آمده که کسان موسى "يعني ملګري د موسى" شب انتظار بردند موسى نيامد "وروز نيز ازو خبري نيافتند در صحرا متحير ماندند آه، فلم يزالو مقيمين فيه حتى مر بهم راع من اهل مدين فعرفهم، نو دوی همه وهمه د شعيب ﷺ کورته وروستنه هوري وه حتى بلغهم خبر موسى بعد ما جاوز بني اسرائيل البحر وغرق فرعون وقومه. نو شعيب ﷺ خپل لور صفورا سره د زوی د موسى ﷺ مصر ته ور واستول.

**درويش وايي:** چي د پسو او خادمه او د شپانه ضرورت د دفع سوی وو په غلبه د موسى پر مصر فرعون باندي انتهى قول روح البيان مع زيادة من الفقير.

**درویش وایي:** چي وهذا السوال والجواب ینفع لکل من المتعلم والمعلم الغیر الحاسد والمتکبر ...... بیت:

د فقیر تفسیر به هغه چاته فائده وکړي
چي په سر کي تکبر او په زړه کي عناد نه وي

هم یحسدونني وشر الناس کلهم ... من عاش في الناس یومًا غیر محسود

## یٰبَنِیٓ اِسۡرَآءِیۡلَ

**درویش وایي:** چي هغه مفسر چي وایي چي دا خطاب دی وهغو بني اسرائیلو ته چي په عصر نبوي ﷺ کي وو په هغه فعل سره چي د دوی د آباوو سره خدای یعني الانجا من العدو وغیره کړی وو دا تفسیر غلط دی ولي چي داسورة خو مکي دی بالاتفاق. او په مکة کي خو مخاطبة د بني اسرائیلو نه وه بلکه ټوله مخاطبه په مکة کي د قریشو سره وه. نو صحیح داده چي دا مخاطبه دهغو بني اسرائیلو ته ده چي تر دریاب خدای ﷻ واپستله او دا خطاب وروسته دی تر هلاک د فرعون لکن داخطاب په تقدیر د قلنا دی یعني قلنا یا بني اسرائیل او دا جمله استیناف بیاني دی "في جواب من قال فما ذا فعل بهم کذا في المظهري وروح البیان وروح المعاني فافهم.

## قَدۡ اَنۡجَیۡنٰکُمۡ مِّنۡ عَدُوِّکُمۡ

په تحقیق نجات در کړی مونږ تاسي ته د دښمن ځنې ستاسي چي فرعون و هغه مو غرق کړی، یعني د قوم سره چي قبط وو.

**درویش وایي:** چي دا نجات لوی نعمت وو د هغې زماني پر بني اسرائیلو حیث کان فرعون وقومه "یذبحون ابنائکم ویستحیون نسائکم" او ډیر خدمات شاقه په تاسي کوله.

## وَوٰعَدۡنٰکُمۡ جَانِبَ الطُّوۡرِ الۡاَیۡمَنَ

او وعده وکړه مونږ د تاسي سره دطرفه د کوه طور "الایمن" صفت دی د جانب یعني چي د موسی علیه السلام پر راسته جانب وو "اذ لا یمین للجبل فالاضافة

لادنى ملابسة" او لفظ د جانب منصوب دى على الظرفية او دا وعده د موسى عليه السلام سره د پاره د مناجات او اعطا التورات وه.

**سوال:** واعدنا" خو باب د مفاعلې دى چي دو جانبه فعل غواړي دلته خو وعده يو ازي د خداى ﷻ د خوا څخه وه؟

**ځواب:** قبول د موسى ؑ د وعدې د خداى ؑ لکه وعده د موسى ؑ شمار کړل.

**سوال:** وعده خو يو ازي د موسى عليه السلام سره وه نو "واعدناكم" خطاب څرنګه دى؟

**ځواب:** د موسى عليه السلام سره وعده د دوى سره وعده ده لانه نبيهم، نو موسى عليه السلام د قوم څخه (۷۰) کسان ورسره بو تله يعني د پاره د شهادت پر اعطا التورات.

## وَنَزَّلْنَا عَلَيْكُمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوٰى ﴿٨٠﴾

او مو ر نازل کړي وه يعني د اسمان د جانبه څخه من چي ترنجبين يې بولي او د تاروګانو ياکرکانو يخې برياني يې په غوړو کي غوښې دا هغه وخت وو چي دوى په دښت کي د تيه وه. او بعض مفسرين وايې چي دا مرغان به دوى ذبح كول.

**پوه سه:** چي ترنجبين د سپېدو څخه تر لمر ختو پورې پر وربېده يوه صاع به هره سړي ته رسېدله او جنوبي باد به سلوى ورته راوړه، يا پاخه يا به دوى ذبح كول.

**درويش وايي:** چي تفصيل د قصه د تيه په سورة مائدة كي دى.

## كُلُوا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ وَلَا تَطْغَوْا فِيهِ

بتقدير القول اى قلنا لكم كلوا" خوراک کوئ د خوندورو خوړو څخه ياحلالات خوړو څخه دا هغه څه دي چي ما په رزق درکړي وه تاسي ته. او سر کښي مه کوئ يعني چي شکريې ته وایاست او تجاوز تر د غو حلالاتو شيانو مه کوئ وحرام ته او كبر هم مه كوئ.

## فَيَحِلَّ عَلَيْكُمْ غَضَبِيْ ۚ وَمَنْ يَّحْلِلْ عَلَيْهِ غَضَبِيْ فَقَدْ هَوٰى ﴿٨١﴾

نو كه تاسي طغيان وكړئ نو پر تاسي به نازل او لازم سي غضب زما چي كنايه د عذاب د دنيا دى او هغه څوک چي پر ده نازل سي زما غضب هغه هلاکېږي په دنيا كي او په اور كي د دوږخ په آخرت كي.

وَإِنِّي لَغَفَّارٌ لِّمَن تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا ثُمَّ اهْتَدَىٰ ﴿۸۲﴾

او په تحقیق زه بخښونکی یم وهغه چاته چي توبه وکاږي د شرک او طغیان څخه، او ایمان راوړئ بما جا به رسله، او عمل صالح وکړئ چي د کتاب سره د خدای ﷻ برابر وي، او بیا پر هغه هدایت ثبات وکي، ابن عباس رضي الله عنهما وایې چي په دې پوه سئ چي داتوبه او عمل صالح په توفیق د خدای ﷻ دی، او قتاده او سفیان ثوري وایي "لزم الاسلام حتی مات علیه. او شعبي او مقاتل او کلبي رحمهم الله وایي علم ان لک ثوابا او مظهري رح وایې چي په طلب کي قرب الی الله وي بلا کیف وي جامي قدس سره وایي:

دارم جهان جهان گنه ای شرم روی من ... چون ازین جهان بجهانی دیگرروم
یاران دواسپه عازم ملک یقین شدند ... تاکی عنان عقل بدست گمان دهم
با خلق لاف توبه و دل بر گنه مصر ... کس پی نمیبرد که بدین گونه گمرهم

**درویش وایې**: چي حاصل د دې ابیاتو د جامي رحمه الله دا دی چي مراتبې د قرب الی الله صرف د خولې په خبرو نه دی بلکه په اخلاص قلبي بدون الریا پوري مربوط دی......... بیت:

بر زبانت یا صمد پیدا و در دل یا صنم
ای بباطن کافر وظاهر مسلمانی چي سود

بروی وریا خرقه سهل است دوخت ..... وگر با خدا د ر فروشی نکوست
انانکه ذره وار بصورت محقر اند..... فرد از خیال وناز بفردوس ننگرند

وَمَا أَعْجَلَكَ عَن قَوْمِكَ يَا مُوسَىٰ ﴿۸۳﴾

دا جمله عطف ده پر هغه جمله "قد انجیناکم" دا خطاب دی و موسی علیه السلام ته او د مخه جمله خطاب وو بني اسرائیلو ته، بغوي رح وایې چي څه شي ته ژر راوستی منفرد دقوم څخه ستا ای موسٰی حسین کاشفي رح په تفسیر حسیني کي وایي، آورده اند که بني اسرائیل بعد از هلاک فرعون از موسٰی علیه السلام استدعاً نمودند که از برای ما قواعد شریعتي واحکام آن بین ساز موسٰی در آن باب با

رب الارباب مناجات کرد خطاب رسید که باجمعي از اشراف بني اسرائیل بکوه طور بیائید تا کتابي که جامع احکام شرع باشد بتو دهم موسیٰ هارون بجای خود داشت یعني بگذاشت برای تعلیم بني اسرائیل ونهی آنان از معاصي وباوجود قوم که هفتاد تن بودند متوجه طور شدند، وقوم خود را وعده داد که چهل روز دیگر میابم وکتاب مي آورم وچون بنزدیک طور رسیدند موسیٰ علیه السلام قوم یعني (۷۰) که همراه بودند پر اپس ماندندوخود از غایت اشتیاق که به کلام وپیام الٰهي داشت زود تر بالای کوه بر آمد خطاب الٰهي رسید وما اعجلک آه.

**درویش وایي**: چي په دې پوښتنه کي د رب المعزت حکمت دا وو چي موسیٰ علیه السلام اقرار وکړي په خپل شوق سره وکلام ته د خدای لکن باوجود استفهام تقریر ضمناً انکار هم وو پر ده چي ولي دی ملګري تر شیا پرېښول موسیٰ علیه السلام دواړه جواب ورکړي اول د انکار ولي چي دا جواب اهم وو.

# قَالَ هُمْ أُولَآءِ عَلَىٰٓ أَثَرِى وَعَجِلْتُ إِلَيْكَ رَبِّ لِتَرْضَىٰ ﴿٨٤﴾

موسیٰ علیه السلام وویل چي ملګري دغه دی نژدې را پسې دي یعني ډېر لیري مي نه دي پرېښي بلکه دونه لیري دي چي اشاره ورته صحیح ده "وعجلت" معطوف دی پر دې قول هم اولا ٔ یاحال دی په تقدیر د قد کما هو الشرط في وقوع الماضي حالا علی مابین في النحو "الیک" چونکه خدای ﷻ لره مکان نشته نو ددې لفظ ترجمه دا ده الی مکان وعدتني لاعطا ٔ التورات في ذالک المکان وشوقا الی کلامک معي "رب لترضی" ای زما رب چي ته د ماسره راضي وګرځې لان الشوق والمحبة یکون من الجانبین یعني من جانب العبد المسارعة الی امتثال الامر ومن الله الرضي بذلک.

# قَالَ فَإِنَّا قَدْ فَتَنَّا قَوْمَكَ

خدای پاک ورته وویل چي موږ په تحقیق په فتنه واقع کړه قوم ستا د فتنې څخه مراد یا امتحان دی یعني چي ګلګې پر لاس د سامري ورته جوړ کړی چي دوی یې عبادت کوی که نه. یا معنی یې اضلال دی ای اضللنا هم بعبادة العجل.

**پوه سه:** چي مراد د قوم څخه هغه کسان دي چي موسی ﷺ هغوی ته هارون لاړ ښود پر ښود چي تعداد یې شپږ لکه وو لکن ددې فتنې څخه خلاصون صرف (۱۲۰۰۰) بني اسرائیو پیدا کړی نور ټول په عبادة العجل اخته سوه.

**درویش وایي:** چي لله الحمد والمنة چي امت نبوي سید البشر خاتم النبیین ﷺ په حیوة کي د انحضرت ﷺ او نه هم وروسته په دونه دست جمعي داسلام څخه برګشته په مرګ اخته تر الی یومنا هذا پوري نه دي پیدا سوي البته په حیوة نبوي کي اسود عنسی او مسیلمة کذاب دعوه دنبوة کړې وه لکن مسلمانان دهغو دوو ملعونانو په دام کي نه دی لویدلي. د افراد ارتداد نعوذ بالله منه ګاه بیګاه واقع سوی دی او اوس هم جاري دي لکن دومره جمع واري د تاریخ په پاڼو کي نه لیدل کیږي اللهم احفظ امة محمد ﷺ من اضلال المضلین آمین.

**درویش وایي:** چي مظهري رحمه الله په دې مقام کي سوال داسي کړی دی چي "انا قد فتنا آه" مرتب دی پر دې قول د موسی ﷺ عجلت الیک آوهذا یدل علی کون العجلة سببا للفتنه اذا الفا سببیة او بیا مظهري رحمه الله په دقیق تصوفي جواب جواب ور کړی دی چي تر فهم د متعلمینو د تفسیر ایوبي ډېر لوړ دی او قول د مجدد الف ثاني رحمه الله راوړي دي چي طالبان خو څه که یې بلکه هغه علما چي مرتاض د تصوف سره نه وي او په مکتوبات د امام رباني مجدد الف ثاني رحمه الله کامل نه پوهیږي هم په دې جواب نه پوهیږي فلذالک ترکنا ایراده من شا فلیرجع الی التفسیر المظهري رحمه الله والصحیح ما اشار الیه صاحب روح البیان اجمالا بقوله في تفسیر قوله "قال فانا فتنا آه" استیناف بیاني وصاحب روح المعاني تفصیلا بقوله استیناف مبنی عن سوال نشا م اعتذار موسی ﷺ کانه قیل من جانب السامعین فما ذا قال له ربه حینئذ فقیل في الجواب "فانافتنا قومک آه" ای اخبرناهم بما فعل السامري من بعدک ای بعد فراقک منهم وذهابک منهم آه. نو د دې معنی دا ده چي کلمه د فا د پاره د سبب نه ده لکه مظهري چي ویل حتی چي د ده سوال وارد سي بلکه دپاره د مطلق تعقیب دی او روح البیان هم تفسیر داسي کړی بعد خروجک عنهم فتدبر.



Scanned by CamScanner

مِنۢ بَعۡدِكَ وَأَضَلَّهُمُ ٱلسَّامِرِيُّ

وروسته تر تگ ستا الى جبل الطور او گمراه کړه دوی سامري

**پوه سه:** چي نسبت د اضلال وسامري ته وکړی په سبب د دې چي دی کاسب د گلگي وو او بني اسرائيلو ته ده دعوت ورکړی چي هذا الهکم واله موسى او د فتني نسبت خدای وځان ته وکړی يعني قد فتنا آه. لانه تعالى خلق الفتنة فيهم لانه تعالى خالق کل شئ قانون کلي اسناد ده تولو کارو که بنه وي او که بد واسباب ظاهره ووته کبري بالنسبة الى الظاهر او خالق قادر متعال ته کبري په اعتبار د خلق او اراده وهذا مذهب اهل السنة والجماعة ومتوسط بين مذهب الجبرية لانهم يقولون العبد مجبور محض ومذهب القدرية حيث يقولون ان العبد خالق لافعاله لا مدخل له تعالى في خلقها فافهم.

**پوه سه:** چي سامري په نيز د اکثرو علماؤ لکه زجاج چي وايي يو سړی وو د اشرافو څخه د بني اسرائيلو دقبيلې چي نوم يې سامره وو، او داقبيله تر اوسه پوري په شام کي مشهوره په سامرين سره ده، او بعض علماً وايي چي د موسى ﷺ دخاله زوی وو او بعض وايي د عمه زوی يې وو. او بعض وايي چي د يو مريې نوم دی د کرمان د وطن او بعض وايي د اهل څخه د باجرما وو وهي قرية قريبة من مصر. او بعض وايي د قبط د قبيلې څخه وو وخرج مع موسى ﷺ مظهر الايمان او د موسى ﷺ همسايه وو او بعض وايي چي سامري عابد البقر وو وقع في مصر فدخل في بني اسرائيل ظاهرا ونفاقًا او په زړه محبت د عبادة البقر وو (وهذا هو المناسب لصنع العجل وامر بني اسرائيل بعبادته) او نوم يې بعض علماً وايي موسى بن ظفر وو وهو الاشهر وقيل غير ذالک. ابن جرير د ابن عباس ﷺ څخه روايت کړی چي د دغه سامري مور چي دی وزېږاوه دا ېرېدل چي فرعون بې قتل کړي په يوه غار کي پټ کړی او نوم يې موسى پر کېښېښود ودروازي ته د غار يې ډبره کېښېښول جبرئيل په ورته د ده گوتي په خوله ورکولي د يوې گوتي څخه شيدې را وتلې دبلې گوتي څخه به عسل حتى چي لويه دی.

**درویش وایي** : چې ددې روایت څخه د ابن عباس رضي الله عنه دا معلومه سوه. چې سامري اسرائیلي وٌ، ولي چې فرعون خو د بني اسرائیلو زامن وژل، او بیا ددې دو بیتو هم پر دغه روایت دی

اذالمرء لم یخلق سعیدا تحیرت........ عقول مربیه و خاب مؤمل

فموسی الذي رباه جبرئیل کافر........ وموسی رباه فرعون مرسل

والحاصل السامري عند الجمهور کان منافقا یظهر الایمان و یبطن الکفر.

**درویش وایي**: چې تفصیل مذکور ددغو تفاسیرو څخه منقول دی د روح المعاني، روح البیان او تفسیر القرطبي او تفسیر مظهري رح.

**درویش وایي** : چې موسی علیه السلام چې طور ته تلی د څلویښتو ورځو تېرولو وعده یې بني اسرائیلو ته ورکړې وه، نو سامري به بني اسرائیلو ته شپه او ورځ جلا جلا حسابله چې په شل ورځې یې څلویښت ورځې ور پوره کړې، نو یې عجل ورته جوړ کړی، او د "الٰه موسی" نوم یې پر کښېښود.

## فَرَجَعَ مُوسٰىٓ اِلٰى قَوْمِهٖ غَضْبَانَ اَسِفًا ۚ

نو رجوع وکړه و قوم ته یعني وروسته تر څلویښت ورځو د میعاد پوره کولو، په داسې حال کې چې په غضب وو، دوئ ته یعني پر عبادة العجل باندې او اسف یعني ډېر غمجن وو، له سببه د مافعلوا. نو "غضبانا اسفًا" حال دی له "موسی" څخه.

## قَالَ يٰقَوْمِ اَلَمْ يَعِدْكُمْ رَبُّكُمْ وَعْدًا حَسَنًا ؕ

وویل موسی چې قوم یې ولېدل چې په عبادة العجل سره غونډ وه، ای قوم زما ایا وعده نه ده درسره کړې رب ستاسې سره وعده یعني څلویښت ورځې میقات یعني زما پر ژبه "حسنًا" یعني هغه وعده یعني تورات به درکوم په دغه میعاد کې یاد "حسنًا" معنی "صادقًا" ده.

**پوه سه**: چې همزه د پاره د استفهام انکاري ده، او نفي د نفي اثبات دی، یعني وعده درسره کړې ده او وعده منصوبه ده مفعول مطلق دی.

## اَفَطَالَ عَلَيْكُمُ الْعَهْدُ

آيا اوږده شوه پر تاسو وعده. الاستفهام للانكار يعني تر مقرر ميعاد خو نه ده بالا شوي.

قانون: په علم نحو کي وايي چي وروسته تر همزه د استفهام كه واو راسي يا فا يا ثم د حروف عاطفه څخه راسي پر ماقبل تر همزه خو نسي عطف کېداى لفوات صدارت حرف الاستفهام نو موافق د هر مقامه سره وروسته تر همزه فعل مقدر غواړي دپاره ددې چي مذکوره فعل پر عطف سي. او صدارت د همزه پر خپل ځاى پاته سي. " والتقدير "اوعدكم ربكم فطال عليكم" زمان انجاز الوعد او زمان مفارقتي منكم.

**درويش وايي**: چي بعض مفسرينو تر مذكور معطوف مقدر معطوف عليه دوچنده بالا راوړي دي.

## اَمْ اَرَدْتُّمْ اَنْ يَّحِلَّ عَلَيْكُمْ غَضَبٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ فَاَخْلَفْتُمْ مَّوْعِدِيْ

او كه ستاسي په دې كار كولو يعني عبادة العجل اراده دا وه چي پر تاسي دي لازم او واجب وګرځي غضب د رب ستاسي. نو تاسي خلاف وكړل د وعدې څخه زما.

**پوه سه**: چي موعد من قبيل اضافة المصدر الى المفعول" يعني چي تاسي زما سره وعده كړې وه چي موږ به پر ايمان بالتوحيد محكم ژوند كوو يعني وقت البيعة.

## قَالُوْا مَآ اَخْلَفْنَا مَوْعِدَكَ بِمَلْكِنَا وَلٰكِنَّا حُمِّلْنَآ اَوْزَارًا

قوم ورته وويل چي موږ مخالفت ستا ده عدې څخه نه دى كړى.

**پوه سه**: چي ملك قدرة او اختيار ته وايي يعني په خپل اختيار سره بلكه پر موږ غالب سو تسويل او فريب د سامري چي موږ عبادة العجل مختاره كړى. ولي چي اختيار يعني امتحان او فتنه چي دخداى جل جلاله خوا راسي هغه مسلوب الاختيار ګرځي.

**پوه سه**: چي "اوزار" جمع د وزر ده بمعنى الحمل الثقيل. او "حملنا" په صيغه د مجهول ده. اى موږ مكلف كړل سوي وو په هغه دراته بار سره.

# مِّن زِينَةِ الْقَوْمِ

له زيوراتو څخه د ښځو دقوم قبط "من زينة القوم" صفت دی. د "اوزار". دا هغه وخت و چي موسی او بني اسرائيل د مصر څخه ووتل نو ښځو دبني اسرائيلو چي د قبطيانو د کورو خدمت بې کاوه دقبطيانو ښځو څخه ددوئ زيوارت استعارة غوښتي وه، چي زموږ په بني اسرائيلو کي واده دی. "هذا ماروي عن ابن عباس رضي الله عنهما".

**درويش وايي:** چي اوزار گنهونو ته هم وايي بغوي رح وايي چي اوزار په معنی د گنهو دي ولي چي دوئ خو عارية د فرعونيانو د ښځو څخه اخستي وه. او بېرته يې ور نه کړه نو دوئ گناه وکړه انتهى روح المعاني. اول ده تسميه ددغو حلي و په اوزار سره په معنی د گنهو داسي کړې ده" وهذا عبارته و لعلهم اطلقو على تلك الحلي الاوزار بمعني الاثام من حيث ان الحلي سبب الاثام غالبا كانها يلبث غالبا و في الاكثر للفخر والخيلاً والترفع على الفقرا و قيل من حيث انهم اثموا بسبب تلك الحل و عبدوا العجل المصنوع منه.

لکن روح المعاني څو کرخ وروسته ويلي دي، چي موسی عليه السلام دوي په دغه استعارة د حلي امر کړي وه. حتى قيل ان فاعل التحميل هو موسى" يعني في قوله حملنا على صيغة المجهول. او موسی عليه السلام دغه زيورات ددوی په لاسو کي پرېښول بعد هلاک اصحابها. اقرهم على استعمالها فاذا لم يكن حلالاً فيكف يقربهم اى مع علم موسى عليه السلام بذالک" خو ليکن وروسته يې ويلي دي" وقد يقال ان اموال القبط مطلقا بعد هلاكهم كانت حلالا لبني اسرائيل كما يقتضيه ظاهر قوله تعالى "كم تركوا من جنات وعيون وكنوز ومقام كريم كذالك و اورثناها بني اسرائيل".

اوبل دليل: حل ددغو زيوارتو روح المعاني دا راوړی دی چي خدای پاک جل جلاله اضافت دحلي وو وقوم ته دموسی کړی دی. في قوله تعالى " واتخذ قوم موسى من بعده من حليهم عجلا جسدا" آه. و ذالک بظاهر يدل على ان الحلي ملک لهم.

**درويش وايي:** چي دا وو نقل د عبارت د روح المعاني من موضع الحاجة او روح المعاني نوري درازي خبري هم كړي دي.

**فائده:** قوله تعالى "لكنا آه" اعتذار دى د قوم د موسى و ده ته في عبادة العجل ببيان منشأ خطائهم في ذالک کما سيأتي في الاية.

## فَقَذَفْنٰهَا فَكَذٰلِكَ اَلْقَى السَّامِرِيُّ ۝

موږ هغه زر او زېور چې د قبطيانو د ښځو ګخه په عاريت زموږ ښځو راوړي وه، واموچول يعني په کنده کي، چي دلته جوړ سوى د سامري له خوا، او دغه رنګه سامري هم خپل زر په كندي کي واچول لکه موږ چي واچول: په تفسير کاشفي کي وايي" وقتيکه موسى بطور رفت سامري نزد هارون آمد و گفت قدري پيرايه که از قبطيان باما است و ما را بي اجازه موسى تصرف روا نيست ومى بينم که بني اسرئيل که انرا ميخرند و ميفروشند حکم فرماي تا همه جمع نمايد بسوزند" هارون امر فرمود که تمام پيرايه ها بياريد، مردم چنين کردند، و دحفره ريختند و آتش زدند. وسامري زرگر چالاک بود همين که آن بگداخت وى قالبي ساخته بود شکل گوساله خورد آن زر گداخته در آن ريخت و شکل گوساله بيرون اورد و قدري از خاک زسم فرس جبرئيل که فرس الحيوة ميگفتند در درون وى ريخت في الحال زنده شد، و در او آواز آمد.

**درويش وايي:** چي بعض مفسران وايي چي پردې ګوساله غوښي او پوست پر ده پيدا سوه، لکه نور ګوساله او بعض مفسران وايي چي هغه د زرو ګوساله وو لکن ناري د عجل يعني ګلګي يې وهلې.

او مختاره دويمه رايه ده ولي چي د پوست او غوښو ګوساله خو ډېر وه نو بني اسرائيلو ولي سجده ورته کولې او ولي يې دسامري داخبره منله. هذا الهکم واله موسى "البتة د زرو ګوساله يو نادر شي وو چي آواز يې هم کاوه ده ګوساله.

کاشفي رح دواړي نظريې راوړي دي چي وايي في الحال زنده شد وگوشت و پوست بر او پيدا شد و باواز درآمد و گويند زنده نشد ليکن بآن وضع ريخته بود لکن بانگ گوساله ميزد انتهى.

## فَأَخْرَجَ لَهُمْ عِجْلًا جَسَدًا لَّهُ خُوَارٌ

را وایستی سامري بني اسرائیلو ته "عجلاً" گوساله "جسداً" بدل دی له عجلاً څخه "له خوار" صفت دی د عجلاً یعني صورت بقر.

**درویش وایي:** چي روح البیان هم دواړي ترجمې کړي دي حیث قال جثة ذادم و لحم او جسداً من ذهب و لا روح له آه.

## فَقَالُوا هَٰذَا إِلَٰهُكُمْ وَإِلَٰهُ مُوسَىٰ فَنَسِيَ

نو وویل سامري او تابعینو دده اول مارده، چي دادی خدای ستاسي او خدای د موسی علیه السلام، روح البیان ددې آیت په تفسیر کي وایي ای غفل عنه موسی و ذهب یطلبه في الطور او بعض مفسرین وایي "ترک السامري ما کان علیه من الایمان ظاهراً و کفر بالله ظاهراً و باطناً.

## أَفَلَا يَرَوْنَ

استفهام او انکار دی د خدای ﷻ له خوا څخه پر دغو عبادت کوونکو باندي او پر قائلانو ددي قول هذا الهکم و اله موسی فنسی کما مر.

**پوهه:** چي جمله "فلا یرون" معطوف ده پر مقدر کما هو القانون النحوي وقد مر ذالک القانون في هذا التفسیر غیر مرة و التقدیر آه. لاینظرون فلا یعلمون، نو رؤیت علمي دی ایا علم نه لري هولاً الحمقی.

## أَلَّا يَرْجِعُ إِلَيْهِمْ قَوْلًا

"الا" ان مخفف د مثقل دی، و اسمه ضمیر الشان محذوف دی والتقدیر شان دادی چي نسي ردولای دغه عجل الیهم قولاً (دوی ته خبره یعني د دوی ته خبره نسي کولای. او نه دوی د خبري جواب ور کولای سي نو دا گوساله خو تر دوی عابدینو ده ادون حالا دی ولي خو دوی خبره کولای سي او د خبرو جواب هم ور کولای سي. نو څرنگه دوی دغه بېزبانه شی معبود وگرځاوه، معبود خو لازمه ده چي تر عابد به اعلی شانه وي.

وَلَا يَمْلِكُ لَهُمْ ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا ۝

او مالک نه دی یعني په طاقت یې نه ده پوره ددې گوساله دفع د ضرر دډوئ څخه او نه هم جلب د نفع یې ده وسه پوره وي. فکیف یستحق لعبادتهم لان المعبود یجب ان یکون دافع الضر عن العابد و جالب النفع الیه و ما هو الا الله القادر علی کل شئ.

بغوي رح وايي نقلاً عن غیره چې هارون ؑ تېرېدی پر سامري چې ده گوساله جوړه وی. هارون ؑ پوښتنه ځنې وکړه، چې دا ته څه شی جوړه وې؟ ده ورته وویل چې "اصنع ما ینفع و لایضر" ماته دعا وکړه چې زه کامیابه سم. هارون ورته وویل "اللهم اعطه ما سال علی ما في نفسه "نو سامري هغه خاورې د پښو د جبرئیل د آس په خوله کې ور واچولې "فقال کن فکان کذالک" هارون ؑ څو اول په حقیقت نه و خبر چې دا یو فتنه وه "ابتلی الله بها بني اسرائیل.

**درویش وايي:** چې هارون چې وروسته تر دې چې سامري خلګ عبادة العجل ته دعوت کړه. او اکثر بني اسرائیل په عبادت اخته سوه، په دې پوه سو چې سامري تاته چم وکړی او هغه وینا دده چې دا مصنوع دده ما ینفع دی و لایضر دی کاذب ورته معلومه سوه، ولې چې دا مصنوع د سامري نفع هم نه لري او ضرر یې بېشماره دی چې اکثره بني اسرائیل یې په مصیبت د شرک اخته کړه خدای پاک دده د قول حکایت داسې کړی دی.

وَلَقَدْ قَالَ لَهُمْ هٰرُوْنُ مِنْ قَبْلُ يٰقَوْمِ اِنَّمَا فُتِنْتُمْ بِهٖ ۚ

لام جواب د قسم محذوف دی. او دا جمله عطف ده علی قوله تعالی " ولقد اوحینا الی موسی الایة یعني قسم په خدای دی چې په تحقیق هرون ویلي وه بني اسرائیلو ته د مخ تر راتګ د موسی ؑ "یقوم آه" ای قوم پر تاسې امتحان راغلی او په امتحان کې واقع سواست یعني چې تاسې پر توحید د خدای پاتېږې او که پ شرک سره گمراهان کېږې.

وَاِنَّ رَبَّكُمُ الرَّحْمٰنُ فَاتَّبِعُوْنِيْ وَاَطِيْعُوْٓا اَمْرِيْ ۝

او ستاسې د عبادت ور هغه څوک دی چې د رحمت څښتن دی او گوساله د

رحمت کولو څخه بلکه دامکان څخه د رحمت بعید بمراحل، نو زما متابعت وکړئ په اثبات پر توحید او استقامت علی عبادة الرحمن بلاشائبة الشرک لان الشرک بمعزل عن الدین السماوي، او اطاعت زما د امر وکړئ

قَالُوا لَن نَّبْرَحَ عَلَيْهِ عَاكِفِينَ حَتَّىٰ يَرْجِعَ إِلَيْنَا مُوسَىٰ ﴿٩١﴾

موږ نه منع کېږو له عجل او له عبادت څخه د هغه ستا په خوله. یعني مقیمین او ثابت قدم به یو، تر هغو پورې چې رجوع کوي موږ ته موسی. راوي وايي چې هرون سره (۱۲۰۰۰) دولس زره بني اسرائیلو چې عبادت د عجل یې نه وو کړی په مجموع بني اسرائیلو کې چې تعداد یې شپږ لکه (۶۰۰۰۰۰) وو جلا سو. راوي وايي چې موسی چې راغلی او نارې، غزلي او رقص یې پر شاوخواد گوساله واورېدی هغه اوویا کسه چې دده سره طور ته تللي وه، وه هغوئ ته یې وویل "هذا صوت الفتنة" موسی علیه السلام چې راغلی د غضب في الله له کبله یې هارون په رسته لاس د سر تر ویښتانو او په چپه لاس تر ږیره ونیوی.

**یوه سه:** چې هرون ډېر بلیغ او په زړه پورې وعظ وقوم ته وکړی. اول یې دوئ زجر کړه د باطلي لارې څخه بقوله (انما فتنتم) بیا یې دعوت ورکړی و معرفت ته د خدای (بقوله وان ربکم الرحمن) ولې چې معرفت د خدای ﷻ اصل الاصول دی بیا یې معرفت ته د نبوت را جلب کړه. بقوله (فاتبعوني) او بیا یې وه شرائع ته د دین را جلب کړه. بقوله (واطیعوا امري) او په دې نصیحت هارون ؑ شفقت پر ځان وکړی او هم د بني اسرائیلو پر حال یې دا شفقت وکړی چې دی خو نبي وو. مامور من عند الله بالامر بالمعروف والنهي عن المنکر او د ورور موسی ؑ له خوا هم مامور و. بقول موسی "واخلفني في قومي واصلح و لاتتبع سبیل المفسدین" نو که چېرې هارون امر بالمعروف او نهي عن المنکر نه وای کړی، نو دی به مخالف وای د امر څخه د خدای او د امر څخه د موسی علیه السلام او دونه مخالفت خو د نبي د شان سره شایان نه دی، او بیا هرون ډېر دلاوری وکړه چې د گوساله فرستانو په غایت کثرت کې ده باک نه وکړی "بل صرح بالحق و لم یخف عن کثرتهم و هذا عادت الانبیاء علیهم السلام لا

يخافون في اظهار الحق من لومة لائم" سعدي شيرازي رح وايي:
بگوی آنچه دانی سخن سود مند ........ و گر هیچ کس رانیاید پسند

قَالَ يٰهٰرُوْنُ مَا مَنَعَكَ اِذْ رَاَيْتَهُمْ ضَلُّوْٓا ﴿۹۲﴾ اَلَّا تَتَّبِعَنِ ؕ

**پوه سه**: چي جمله "قال" استيناف بياني ده يعني جواب دی ددې پوښتني چي موسی عليه السلام چي دا صحنه وليدل نو هارون ته يې څه وويل فاجيب قال يعني موسی وويل.

**پوه سه**: چي جمهور مفسرين وايي چي كلمه د لا زائدة ده، ای هارون ته څه شي منع كړې چي زما متابعت دي ونه كړی او زما وصيت دي قبول نه كړی چي دعوة د بني اسرائيلو دي و توحيد ته كړی وای او د شرک څخه دي په ژبه او جنگ منع كړي وای، او بعض مفسرين وايي مامنعک من ان تاتي عقبی" يعني په ما پسي به راغلی او ماته به دې خبر راكړی وای، نو دا ستا راتگ په ماپسي به د دوئ زجر گرځېدلی وای، او بعض مفسرين وايي چي منع په معنی د د عا ده مجازاً، يعني څه شي تاته دعوت دركړی د عدم متابعت زما څخه.

**پوښتنه**: ددې دو خبرو چي يا لا زائده دی يا منع په معنی د دعا دی مجازا، څه ضرورت دی؟

**ځواب**: ضرورت دادی چي كه عبارت قرآني پر خپل ظاهر پاته سي نو معنی يې داسي كيږي، چي ته څه شي منع كړې د عدم متابعت څخه نو منع د عدم متابعت څخه خو متابعت دی، "ولم يكن ذالک" ددې ايت مثال هغه آيت دی چي ابليس و آدم د سجده ونه كړه، خدای پاک داسي ورته وويل ما منعک ان لاتسجد في الوجهين المذكورين فتدبر، هداک الله.

اَفَعَصَيْتَ اَمْرِيْ ﴿۹۳﴾

آيا تا عصيان وكړی زما د امر څخه.

**پوه سه**: چي استفهام د پاره د انكار دی، او په قرار د قانون نحوي كما مر غير مرة معطوف پر مقدر فعل دی، ای ارضيت بما فعلوا و اقمت فيهم فعصيت امري ای خالفت امري.

قَالَ يَبْنَؤُمَّ لَا تَأْخُذْ بِلِحْيَتِي وَلَا بِرَأْسِي

هارون ؑ ورته وويل اى د مور زويه. ته مانيسه تر ږيره اود سر تر ويښتانو. نو راوي وايي چي هارون كثير الشعر و، او موسى دى تر ږيره او د سر تر ويښتانو ونيوى و ځان ته يې راكش كړى، په سبب د ډېر غضب في الله.

**سوال:** موسى او هارون علیهما السلام په مور او پلار دواړو كي شريكان وه، نو هارون ولي يوازي مور ذكر كړه؟.

**جواب:** د پاره د رقت د زړه د موسى ولي چي د مور شفقت ډېر دى. ځكه ښتانه وايي: چي نه دي وي د موره هغه ته مه وايه چي وروره.

إِنِّي خَشِيتُ أَن تَقُولَ فَرَّقْتَ بَيْنَ بَنِي إِسْرَاءِيلَ وَلَمْ تَرْقُبْ قَوْلِي ﴿٩٤﴾

زه ېېرېدم (يعني كه ما نهي د دوئ كړى واى په جنګ سره نو خو دوئ ډلي به ګرځېدلي واى بني اسرائيل او جنګ به يې سره كولاى يعني يوه ډله به حزب الله واى او بله ډله به حزب السامري واى) يعني ددي ځخه ېېرېدلم كه ما داغسي كړى واي نو تا به ويلاى وماته، چي تا ډله ډله وګرځول بني اسرائيل، او زما په قول او نصيحت دي عمل ونه كړى چي ما تاته ويلي وه، اخلفني في قومي واصلح. ولي دا قول خو دلالت پر دې كاوه چي ته نرمي كوه والاصلاح خير من اراقة الدم بيا موسى علیه السلام مخ راواړوه پر سامري.

قَالَ فَمَا خَطْبُكَ يَسَامِرِيُّ ﴿٩٥﴾

**پوه سه:** چي خطب مصدر دى په معنى د طلب كما قال البيضاوي دلته په معنى د مطلوب دى يعني ستا څه مطلوب وو په دغه كار كي چي تا وكړى او په قاموس كي واي " الخطب الشان والامر العظيم ته وايي او نهاية والا واي "ماشانك و ما حالك".

قَالَ بَصُرْتُ بِمَا لَمْ يَبْصُرُوا بِهِ

سامري په جواب دموسى ووېل چي ما يوشئ ولېدى چي خلګو نه لېدى.

**پوښتنه:** هغه نو څه شى وو چي سامري ولېدى او خلګو و نه لېدى؟

**جواب:** هغه دا وو چي فرعون چي غرق سو سره د قوم، نو د موسیٰ ؑ یو څوک ملګري سو په صورت د انسان پر آس سپور په حقیقت کي جبرئیل ؑ و، سامري وروسته په پسي وو، آس چي جبرئیل پر سپور وو چي پښه به یې پورته کړه پر هغه مځکه به وابنه راشنه سوه، نو سامري د ځان سره فکر وواهه چي دا خاوره یو شان لري.

فَقَبَضْتُ قَبْضَةً مِّنْ أَثَرِ الرَّسُولِ فَنَبَذْتُهَا

نو ما يوه لپه خاوري را واخستې "قبضة فعلة" په معنی د مرة دی. لیکن دلته ځنديي مراد مقبوض دی "من اثر الرسول" بحذف المضافات ای من تراب اثر حاف فرس الرسول "فنبذتها" ای القیتها في فم العجل المصنوع من حلي قوم فرعون" هغه ګلګی په نارو سو.

**درویش وايي:** چي د مضافاتو تحقيق ما په حاشیه کي د مرح الارواح کړی دی فارجع هناک.

**فائده:** ده ولي نه جبرئیل او نه روح القدس ووايه لانه لم یعرفه انه جبرئیل، او هغه څوک چي وايي چي سامري چي نوم يې موسیٰ ؤ چي مور يې په يو غار کي پرې ایښی ؤ، چي فرعون قتل نه کړی ولي خو دی د بني اسرائیل د قوم څخه وو نو جبرئیل به ورته راتلی دی به یې تربیه کاوه، کما مر تفصیل، نو سامري چي دلته جبرئیل ولیدی پر آس سپور ده وپیژندی.

**درویش وايي:** هذا ندا من بعید فافهم.

وَكَذَٰلِكَ سَوَّلَتْ لِي نَفْسِي ﴿٩٦﴾

او داغسي چي ما دا عجل جوړ کړی او خلګ مي په عبادت سره امر کړه ما ته ښائسته او ښه کار وګرځاوه زما نفس یعني زما په شقاوت سره، "والتسویل تزیین النفس الامر القبیح بصورت الحسن حاصل یې دادی چي زه خپل نفس شوم خطأ ایستلمه. و هذا اقرار من السامري بقبح فعله.

قَالَ فَاذْهَبْ فَإِنَّ لَكَ فِي الْحَيَاةِ أَن تَقُولَ لَا مِسَاسَ

موسیٰ سامري ته وویل چي تا اضلال د خلګو وکړی نو ولاړ سه زما له حضور

څخه، چي په تحقيق چي په ژوند کي د دنيا چي ته ژوندی يې دا خو عقوبت دی
د خدای ﷻ د خوا څخه پر ما فعلت "ان تقول" چي ته به وايي هرچاته چي ته يې
وينې "لامساس" چي ماته لاس مه راوړه، بعض مفسرين وايي دده په زړه کي به
خدای ج وحشت او دهشت پيدا کړي د انسانانو څخه لکه وحشي حيوانات د غرو
چي د هيڅ چا سره انس او الفت په زړو کي نه وي. او بعض مفسرين وايي چي که
چا سامري ته لاس ور وړی يا به سامري وچاته لاس ور وړی دواړو ته به تبه سوه. نو
سامري چي به څوک ولېدی دا بې ورته ويل لامساس يعني ماته لاس مه راوړئ. نو
سامري به دښتو صحراو کي يوازي ګرځېدی حتی چي آخر عند الاجل مړ سو.

**سوال**: موسی ولي نه واژه؟

**جواب**: د قتل عذاب خو يو ګړی وي او عذاب د وحشت او ده لا مساس عذاب خو تر تولـه عمره پوري دده دائم وو، "و هذالک العذاب اشد من عذاب القتل كما لايخفى".

## وَإِنَّ لَكَ مَوْعِدًا لَّن تُخْلَفَهُۥ

په تحقيق تا لره ای سامري وخت د وعدې د عذاب سته، يعني د آخرت په ورځ په سبب د کفر او د اضلال د بني اسرائيلو په عبادت سره د عجل "لن تخلفه" چي ته نه سې غائب کېدای د هغه عذاب څخه او نه ځای د تېښتي لرې بلکه تا ته به کامل هغه عذاب درکول کېږي. لکه نورو رئيسانو د کفر او اضلال.

## وَانظُرْ إِلَىٰٓ إِلَٰهِكَ ٱلَّذِى ظَلْتَ عَلَيْهِ عَاكِفًا

و ګوره ای سامري ستا و خدای ته، يعني چي کاذبانه د معبود نوم دي پرې ايښي وو، او خلګ دي په عبادت امر کول، هغه خدای چي ته همېشه د هغه پر عبادت مقيم وې.

## لَّنُحَرِّقَنَّهُۥ ثُمَّ لَنَنسِفَنَّهُۥ فِى ٱلْيَمِّ نَسْفًا

موږ بې وسوځو په اور سره او بعض مفسرين وايي چي په سوهان بې ريزه ريزه کړو. بيا يې په هرې يا د سوان په ريزې باد کو په درياب کي "نسفا" مفعول

مطلق دی تاهیځ اثر د هغه پر مخکه پاته نه سي، او موسی هم هغه سي وکړه د پاره د اظهار د غباوت د اهل عبادت د عجل. حافظ شیرازي رح وایي"

سحر با معجزه پهلو نزند ایمن باش
سامري کیست که دست ازید بیضا ببرد

إِنَّمَآ إِلَٰهُكُمُ ٱللَّهُ ٱلَّذِى لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۚ وَسِعَ كُلَّ شَىْءٍ عِلْمًا ﴿۹۸﴾

یعني مستحق د عبادت ستاسي الله دی هغه الله چي نسته بل حق بېله ده، او فراخه دی خدای ﷻ از روی علم.

**پوه سه:** چي علماً تمیز د نسبت څخه "وسع" و ضمیر ته د الله نحات وایي چي تمیز د نسبت څخه و فاعل ته په معنی کي د فعل دی. فالتقدیر وسع علمه تعالی کل شی" یعني عجل مصنوع السامري مستحق د عبادت نه دی، ولي د غوایي ذات چي ژوندی هم وي ضرب مثل دی په غباوت کي " فکیف عبدوه وهم عقلا.

كَذَٰلِكَ نَقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ أَنۢبَآءِ مَا قَدْ سَبَقَ ۚ

او دغه رنګه لکه ده موسی علیه السلام او هرون علیه السلام د فرعون سره او موسی او سامري قصه چي مو تاته وکړه موږ نوري تاته کوو د اخبارو څخه د امورو سابقه وو او له اخبارو څخه د امم ماضیه و، د دوی د انبیاً وو سره حکمت ددې قصو دادی چي په علم کي د آنحضرت ﷺ به زیاتوالی راسي، "لان کثرة المعلومات موجوب لکثرة العلم بها" او بل دا چي هره قصه ته کوي هغه ستا معجزه ده" لانک نبي امي "او ددغو قصو څخه به ستا د دور کافران او مسلمانان عبرت او پند واخلي، سعدي شیرازي رح وایي:

پند گیراز مصائب دیگران...... تانه گیرند دیگران ز تو پند
نرود مرغ سوی دانه فراز ...... چون دیگر مرغ بینند اندر بند

**فائده:** کذالک صفة دی دمفعول د نقص والتقدیر علیک اقتصاصا مثل اقتصاص قصة موسی علیه السلام.

وَقَدْ اٰتَيْنٰكَ مِنْ لَّدُنَّا ذِكْرًا ﴿٩٩﴾

او په تحقیق مونږ درکړی تاته یا محمد ﷺ د خپل جانبه څخه ذکر یعني قرآنا چي هغه کتاب او قرآن تاته دا قصص بیانه وي.

**فائده:** تنکیر دی د "ذکرا" دپاره د تعظیم دی ای قرآنا عظیم الشان ولي چي هر سورت د قرآن عزیز معجزه ده د "کر الازمان و مر الدهور ولیس شان الکتب المنزلة الاخرذالک کریمة" وان کنتم في ریب ممانزلنا علی عبدنا" فأتو بسورة من مثله (الایة).

او بعض مفسرین وایي چي ستا ذکر مو بلند کړځولی دی چي جوت دی د ذکر سره په آذان او اقامت او په تشهد کي د لمانځه.

**فائده:** وقد اتیناک حال دی د فاعل څخه د نقص فافهم.

مَنْ اَعْرَضَ عَنْهُ فَاِنَّهٗ يَحْمِلُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وِزْرًا ﴿١٠٠﴾

که څوک روی ګرداني د قران څخه یعني ایمان بکونه من عندالله نه پر راوړي، او عمل بما فیه ونه کړي، او یا ضمیر راجع و خدای ته او یا ضمیر راجع و ذکر ته دي یعني ستا ذکر مقرون دی، یعني ستا ذکر مقرون بذکر الله نه منې او اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمد عبده و رسوله الی غیر ذالک نه وایي.

نو دی به وړي په ورځ د قامت کي درووند بار من الکفر والمعاصي.

**پوه سه:** چي دا کفر او ګنهو ته یې وزر ووایه تشبیها في ثقلها علی الکافر المعذب لکه حسي درووند بار چي د چا په شا وي هذا رای روح البیان.

او مظهري په دې باره کي یو حدیث په روایت د ابن ابي حاتم عن عمرو بن قیس الملائي نقل کړی دی چي د کافر سره عمل قبیح دده په ډېر بد جسم او جثه او ډېر بد بوي بې هم ځې، دا بد شکل سړی و کافر ته ووایي ایا ته مانه پېژنې کافر ورته ووایي لا" الا ان الله قبح صورتک و انتن ریحک" ( دا قدر پوهېږم چي خدای ﷻ تاته ډېر بد صورت درکړی او بد بوي درکړی دی هغه سړی ورته ووایي کذالک کنت في الدنیا ( یعني ته په دنیا کي هم دغه بد شکل

او بد بويه وي، يعني په معنى او په حقيقت كي لا بحسب الظاهر فافهم) انا عملك السيء (زه ستا بد عمل يم چي خداى ﷻ په جسم درته مصور كړم) ظالما ركبتني و انا اركبك اليوم' او راوي دا ايت ددې حديث په تائيد كي راوري يعني قوله تعالى عز وجل و هم يحملون اوزارهم على ظهورهم.

**درويش وايي:** چي ددغه حديث په مقتضى دا موجوده ايت پر خپل ظاهر حمل دى' والله يعلم غيب السموات والارض.

**خٰلِدِيْنَ فِيْهِ وَسَآءَ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ حِمْلًا ۝**

دوئ به هميشه وي په هغه وزر كي يعني په جزا د وزر يا په حمل الوزر، او بد دى په ورځ د قيامت بار ددوئ.

**پوهنه:** چي خالدين يې په صيغه د جمع راوړى او يحمل يې مفرد راوړى افراد يې نظر ولفظ ته د من دى او جمع يې په اعتبار د معنا ده.

**فائده:** "حملا" تمييز دى د ضمير مبهم چي په سا كي دى، او مخصوص بالذم يې محذوف دى، اى سا حملا وزرهم والام في لهم للبيان".

**درويش وايي:** چي مظهري رح ددې ايت او د سابق ايت په تفسير كي څو حديث د بخاري او مسلم او غيرهما راوړي دي، چي بعض يې د غلا په باره كي د اوښ يا د بقر يا د پسو دى، او بعض يې د مځكي د غلا په باره كي دى، او بعض په نيا فوق الحاجة په باره كي دى زه دا منم چي دا ټول احاديث صحيح دى، په خپلو خپلو موضوعاتو كي لكن دلته خبره او ايت د كافرانو په باره كي دى، لكه مظهري رح په تفسير كي د "ومن اعرض عنه" ويلي دي يعني من اعرض عن القران فلم يؤمن به ولم يعمل بما فيه. وقيل عن الله وقيل عن ذكرك مع الله يا محمد انتهى. بعبارته، او په هغو حديثو كي چي ده راوړي دي انحضرت ﷺ مخاطب خپل امت اجابت ګرځولي دى، حيث قال ﷺ فلا اعرفن احدا منكم الى آخر الحديث" او په بل حديث كي چي مظهري راوړي دى، داسي نبوي عبارت موجود دى. فلا القين احدكم الى آخر الحديث" حاصل دا چي هغه: مظهري رح راوړي حديثونه ددې آيتو شان نزول نه سي كيداى. والله اعلم.

# يَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ

هغه ورځ چې پوه کړه سي په قرن يا شپيلۍ، کې چې نافخ اسرافيل دی، په اتفاق سره.

**فائده:** يوم منصوب دی، په اذکر مقدر سره يعني اذکر لقومک يا محمد ﷺ يوم ينفخ في الصور او يا بدل دی د يوم القيامة څخه، د ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی، چې يو اعرابي يعني صحرانشين د عليه الصلوة والسلام څخه پوښتنه د صور په اړه وکړه، فقال عليه السلام قرن ينفخ فيه" ابوداود والترمذي والنسائي والحاكم وابن حبان وابن المبارک رح.

# وَنَحْشُرُ الْمُجْرِمِيْنَ يَوْمَئِذٍ زُرْقًا

او مونږ به حشر کو مجرمين يعني الکافرين په دغه ورځ کې د قيامت چې شنې سترګې به يې وي زرقا جمع د ازرق ده، حال دی د مجرمينو څخه.

**درويش وايي:** چې دا وصف يې ددې سببه راوړی دی چې دا رنګه د سترګو هغه بد رنګ دی په نېز د عربو، ولې چې د عربو لوی دښمنان روميان وه، او د هغو سترګې شنې وې، نو کافران به په ورځ د قيامت زرق العيون وي، سره د تور والي د مخانو"والتجربة شاهدة على ان زرقة العين مع سواد الوجه من اقبح الوان العيون" اوبعض مفسرين وايي چې معنی د زرقا عميا ده، ولې سړی چې ړوند سي سترګه يې شنه کېږي، او ددې تاويل سره هغه ايت هم موافق دی، "ونحشرهم يوم القيامة اعمى" او بعض علماً وايي چې مراد دادی عطاشا "وهو تاويل بعيد جدا"

**سوال:** يومئذ ته ضرورت څه ؤ، ولې چې حشر خو نه دی مګر په ورځ کې د قيامت؟.

**ځواب:** دپاره د تحويل د حشر روح البيان.

# يَتَخَافَتُوْنَ بَيْنَهُمْ اِنْ لَّبِثْتُمْ اِلَّا عَشْرًا

"يتخافتون آه" دا جمله حال ده د "المجرمين" څخه او يا جمله مستانفه ده

یعني یو دبله سره پټې خبرې کوي ولې ددوئ سینې د بیرې ډکې دي، په زوره خبرې نسي سره کولای "ان لبثتم آه" مفعول دی د "یتخافتون" یعني دوئ خبر کوي، یو دبله سره کرار کرار او دا وایي چې تاسې درنګ او ژوند نه دی کړی، په دنیا کې مګر لس شپې سبب ددې وینا سره ددې چې دوئ خو په دنیا کې ډېر عمرونه تېر کړي وه، چې عمر د دینا که ډېر وي او که لږ چې تېر سو، او زوال پذیر سو، نو لږ دي او یا ددې سببه چې مدة د ژوند د آخرت ډېر اوږد دی او پر کفارو ډېره ترخه ده، ولې عذاب ده دوږخ وینې، چې زموږ ځای به وي، او مظهري نقلا وایي چې ددوئ مابین النفختین مراد دی چې څلوېښت کاله دی. ولې په دغه مابین کې له کفارو څخه عذاب پورته کېږي، ددې خبرې یعني رفع العذاب عن الکفار که څه هم چا یې نسبت و ابن عباس رضي الله عنهما ته کړی دی. لکن په تفسیر بحر العلوم کې وایي هو ضعیف جداً انتهی"

**درویش وایي**: چې د بحر العلوم مقصد دادی چې سند وه ابن عباس رضي الله عنهما ته ضعیف دی والله اعلم.

نَحْنُ أَعْلَمُ بِمَا يَقُولُونَ

موږ ښه خبر یو په هغه څه چې دوئ وایي، یعني که څه هم ترا وسه خو دا قول پر دې نه دی واقع سوی ولې دا قول ددوئ بعد البعث دی یعني لیس الامر کمایقولون دا جملة معترضه ده.

إِذْ يَقُولُ أَمْثَلُهُمْ طَرِيقَةً إِن لَّبِثْتُمْ إِلَّا يَوْمًا ﴿۱۰۴﴾

چې وایي هغه ډېر عاقل ددوئ او اعدل قولاً، تاسې درنګ نه دی کړی مګر یوه ورځ ددې سړي وقول ته خدای جل جلاله ترجیح ورکړه، چې امثل یې وباله، ولې چې نسبت د ټوله عمر ددینا نظر و طول ته د آخرة د ورځې غوندې دی بل اقل منه، د منصور خلیفة المسلمین چې وخت د وفات نژدې سو داسې یې وویل "بعنا نعیم الآخرة بنومة" یعني ژوند د دنیا داسې تېر سو لکه یو خوب.

سعدي شیرازي رح وایي:

نګه دار فرصت که عالم د میست..... دمی پیش عاقل به از عالمیست
مکن عمر ضائع بافسوس وحیف.... که فرصت عزیز است والوقت سیف
قال الشاعر العربي:
الا انما الدنیا کظل سحابة............ اظلك ثم عنك اضمحلت
فلا تك فرحا حین اقلبت............. ولاتك جزعانا اذا هي ولت
بغوي رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت کړی دی، چي یو سړي د ثقیف د قبیلي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه، چي په ورځ د قیامت دا غرونه څه په وسي نو دا ایت نازل سو.

وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلْجِبَالِ فَقُلْ يَنسِفُهَا رَبِّى نَسْفًا ﴿١٠٥﴾

دوئ ستا څخه پوښتنه کوي د غرو د حال یعني په ورځ د قیامت.
**پوه سه**: چي "نسف" قلع ته وایي یعني غرونه خدای ﷻ یې د بیخه وکاږي او توک توک کوي به یې لکه ریګ، بیا باد پر را الوزوي ریګ یو سي په ډب ډب ځایو سره فراګنده کي.

فَيَذَرُهَا قَاعًا صَفْصَفًا ﴿١٠٦﴾

نو پرېږدي ئې ځمکه چي غرونه پر باندي وه.
**سوال**: ځمکه خو خونه وه ذکر سوي نو ضمیر څرنګه ورته راجع سو؟.
**ځواب**: غرونه پر ځمکه دلالت کوي "قاعًا" په قاموس کي وایي چي قاع ای ارضا سهلة "قد انفجرت عنها الجبال والاکام (غنډوې) پښتانه وایي چي په قیامت کي ځمکه یوه هګی ګرځي "صفصفًا" په قاموس کي وایي ای مستوية کان اجزائها علی صف واحد" په پښتو لوړ ځای او جوړ ځای پر ځمکه نه وي.

لَّا تَرَىٰ فِيهَا عِوَجًا وَلَآ أَمْتًا ﴿١٠٧﴾

ته به وینې ای مخاطب غیر معین په ځمکه کي کږوالی او نه لوړ ځای که څه هم په ترازو او مقیاس د اهل هندسې یې پیمائش وکړي.
**درویش وایي**: چي امام همام فخرالدین الرازي رحمه الله په تفسیر کبیر کي وایي

چي شايد بعض کافرانو به د عليه الصلوة والسلام څخه دا پوښتنه کړي وه، چي ته دعوه کوې چي دنيا فاني کېږي، نو که داسي واى نو بايد چي د کلو په اوږدو کي او د مياشتو په تېرېدو سره لږ لږ کمېدای، حتى تنهى الى البطلان او سره ددې لوی او کشني غرونه د سوو کلو بلکه د زرو کلو په تېرېدو سره کما هي موجود دي فاجاب الله بهذه الاية، وحاصل هذا الجواب دادی چي فنا د شي بعض زبولي وي يعني کرار کرار کم بود کوي آخر فاني لکه انسان چي عمر پر تېرېږي، قوت د بدن يې کمېږي، آخر مړ سي. چي دې ته حکما موت طبعي وايي. وقد يکون دفعة واحدة. لکه يو ځوان قوی البدن و صحيح المزاج چي نه هېڅ مرض لري او نه ذبول فجاتة او ناببره مړ سي، نو غرونه سره د ډېر محکمي په قدرت د خدای ﷻ دفعتا د فنا په ور غندي د ځايه څخه ولاړ سي. نو په دې سره دليل جالينوس رأس البغل هم دفع سو، چي دی وايي چي آسمانونه نه فاني کېږي، لعدم وقوع الذبول فيها فافهم.

## يَوْمَئِذٍ يَتَّبِعُونَ الدَّاعِيَ لَا عِوَجَ لَهُ

**پوه سه:** چي "يوم" مضاف دی و "اذ" ته او "يوم" منصوب دی على الظرفية لقوله تعالى "يتبعون" يعني په دغه ورځ چي غرونه له منځه څخه ولاړ سي "يتبعون الداعي" جمله مستأنفه ده يا بدل ثاني دی د يوم القيامة څخه. خلق متابعت کوي د آواز د بلونکي ددوئ و محشر ته، و هو اسرافيل عليه السلام چي دی پر صخره د بيت المقدس ولاړ وي او داسي نعرې وهي "يا ايها العظام النخرة والجلود المتمزقة ان الله يا مركم ان تجمعي لفصل القضا" "لاعوج له" چي کږوالی نه کوي هېڅ مدعو دده له دعوت څخه يعني په قدرت د خدای ﷻ ټول له ژوندي سي.

## وَخَشَعَتِ الْأَصْوَاتُ لِلرَّحْمَٰنِ فَلَا تَسْمَعُ إِلَّا هَمْسًا

او عاجزه او د يېرې ډک وي آوازونه د خلگو وه رحمن ته (دا جمله حال د دفاعل څخه د يتبعون په تقدير د قد کما هو القانون النحوي في الجملة الماضية الواقعة حالا" اويا عطف ده پر يتبعون باندي دا عطف خالی دی د

تکلف څخه د تقدیر د قد) ته نه اوري ای مخاطب غیر معین مگر نه صوت خفي لغایة الخوف والهول. لکه اوبښ چي کرار کرار پښي پر مځکه اېږدي.

او سعید ابن جبیر رح د ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت کړی دی. چي د همس معنی داده چي شونډان د سرېي ښوري او خبري نه سي کولای." وفي سنده بحث فافهم" روح المعاني ددې کبله پر دغه قول داسي سوال کړی دی "ان ذالک مما یری" یعني تحریک الشفة خو په سترګو معلومېږي. لامما یسمع او په آیت کي خو لفظ د سمع راغلی دی.

**فائده:** په خشعت الاصوات کي بعض علماٴ وایي چي مضاف محذوف دی، یعني خشعت اصحاب الاصواب ولي خشوع صفت د شخص ده نه د صوت.

## يَوْمَئِذٍ لَّا تَنفَعُ الشَّفَاعَةُ إِلَّا مَنْ أَذِنَ لَهُ الرَّحْمَٰنُ

په دغه ورځ چي ماقبل خبري پېښي سي. یعني د هېڅ چا شفاعت و هېڅ چاته فائده نه کوي، چي د دورځ څخه دي هغه خلاص کړي "الا" استثناٴ د شفاعة څخه ای الا شفاعة ده هغه چاچي اجازه وکړي. وده ته رحمن جل جلاله نو کلمه د من مرفوع محلا ده، بدل د شفاعة څخه ده، یا استثناٴ ده د اعم المفاعیل څخه چي مشفوع له دی، " ای الا من اذن الرحمن في شفاعته" نو پر دې تقدیر کلمه د من منصوب علی انه مفعول الشفاعة تدبر.

## وَرَضِيَ لَهُ قَوْلًا ﴿١٠٩﴾

او راضي دی دده څخه په شفاعت کي د چا ولي چي دی چي شفاعت کوي د خدای جل جلاله په جناب کي قرب لري دا تفسیر پر تقدیر د استثنا د شفاعت څخه دی او یا معنی داده چي خدای جل جلاله راضي وي په قول د شافع په باره کي دده" قال ابن عباس رضی الله عنهما یعني قال لا اله الا الله" دا تفسیر دی پر تقدیر د وهم دد استثناٴ د تفسیر کما مر والحاصل لمن تنفع شفاعة الشافعین له یعني چي لا اله الا الله والا نه وي، یعني که څه هم شفاعت څوک وکړي فائده نه ورته کوی.

يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَلَا يُحِيطُونَ بِهِ عِلْمًا ﴿١١٠﴾

خبر دی رحمن جل علمه په هغو حالاتو چي په حضور کي د شافعينو او د مشفوع لهم دی، يعني في دار الاخرة، او په هغو حالاتو چي دوئ تر شا پرې ايښي دي، يعني ماتقدم من احوالهم في الدنيا من الكفر والمعاصي والايمان والطاعة.

**فائده**: جمله د يعلم آه حال من الرحمن.

**پوه سه**: چي "علما" تمييز دی د نسبت څخه ای لا يحيط علمهم بمعلوماته تعالى وقيل بذاته تعالى" او بعض مفسرين وايي چي ضمير د به راجع دی و يوه ته د موصول يا و مجموع ته راجع دی، يعني په تاويل د مجموع فلا يرد ان الضمير مفرد فكيف يصح ارجاعه الى الموصولين نو پر دې تقدير معنى د ايت داده چي شافعين او مشفوعين په ټولو د علومو د خدای ﷻ نه دی خبر.

وَعَنَتِ الْوُجُوهُ لِلْحَيِّ الْقَيُّومِ ۖ

او عاجزه سترگي کښته به وي، لکه بنديان په نېز د ملک قهار، مخان مراد څخه اصحاب الوجوه په حذف د مضاف يا کناية ده فافهم. و هغه ذات ته چي دائم الحيوة دی او صالح د موت نه دی نو انسانان و غيرهم که څه هم ژوندي وي لکن چونکه د عدم لار ورته خلاصه ده، نو اموات دي او معنى د القيوم چي قائم دی، په تدبير د مخلوق موافقاً لحکمته و دغه رنګه قائم دی، پر هر نفس بما کسبت.

وَقَدْ خَابَ مَنْ حَمَلَ ظُلْمًا ﴿١١١﴾

او په خسران او تاوان کي دي هغه څوک چي بار د ظلم ور سره وي، ابن عباس ﷺ وايي چي مراد د ظلم څخه شرک دی، کريمة ان الشرک لظلم عظيم دا جمله بعض وايي معترضه ده، يا مستانفه د پاره د بيان د علت او سبب د عنت الوجوه او يا حال ده د الوجوه څخه.

وَمَنْ يَعْمَلْ مِنَ الصّٰلِحٰتِ

او څوک چي عمل وکړي، د بعض صالحانو.

**پوه سه**: چي کلمه د من موصوله متضمن معنی لره د شرط ده، ولهذا دخلت الفاء في خبره وهو فلا يخاف آه" او کلمه د من تبعیضي ده چي مراد څنې فرائض دي

وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَا يَخَافُ ظُلْمًا وَلَا هَضْمًا ﴿١١٢﴾

او دی مؤمن هم وي یعني ایمان یې وي پر ثواب د صالحاتو یوم الجزاء (دا جمله حال ده له ضمیر مرفوع څخه د "یعمل" او یا "وهو مؤمن" یې ددې لپاره ووایه چي ایمان شرط وي په صحت کي د حسناتو او په قبول کي د طاعاتو) نه بېرېږي "ظلماً" ای لا یخاف ان یزاد علی سیئاته.

**پوه سه**: چي اصل معنی د هضم کسر او نقص ده فالمعنی لایخاف ان ینقص من ثواب حسناته. حسین کاشفي رح په تفسیر حسیني کي وایي: نترسد دران روز از ستم و بی داد که زیادت سیئاتست، ونه از کسر وشکست که نقصان حسنات است یعنی نه از حسنات مؤمن چیزی کم کنند ونه سیئات او افزایند انتهی.

**پوه سه**: چي افضل د حسناتو اداء الفرائض دی مع اجتناب المحارم.

**حکایت**: سلیمان بن عبد الملک د ابي حازم رح ته وویل چي ماته نصیحت وکړه او مختصر، ابوحازم ورته وویل نعم یاامیر المؤمنین نزه ربک (تعظیم کوه د خدای کوه ددې څخه تا ووینی په هغه عمل کي چي ته یې څنې نهي کړې یې، او یا تا ورک ووینې په عمل کي چي ته یې په امر کړې یې).

**فائده**: روح المعاني وایي چي ابن کثیر او ابن محیص او حمید رحمهم الله فلا یخف پر صیغه د نهي وایي، یعني نه دي بېرېږي، مظهري رح وایي چي جزم یې مبني دی پر دې چي جزاء د شرط ده یعني کلمة من المتضمن للشرط کما مر انفاً، او بیضاوي او روح المعاني جزم له سببه څخه د نهي بولي، او د جمهور قراء وو قرائت لایخاف دی، په رفع سره علامة الطیبي وایي چي قرائة د جمهورو موافق ددې قول سره د خدای ج "وقد خاب من حیث الاخبار في کلیهما" او ابلغ دی تر قرائة د جزم من حیث دلالة المضارع علی الاستمرار ومن حیث انها لاتقبل التردد في الاخبار" ولا تلتفت الی ماختار المظهري من تکلفات الحذف علی قرائة الرفع فتدبر حق التدبر.

وَكَذٰلِكَ اَنْزَلْنٰهُ قُرْاٰنًا عَرَبِيًّا

دا جمله عطف ده على قوله تعالى "وكذالك نقص عليك آه" نازل كړى موږ قرآن نو ضمير منصوب راجع و قرآن ته دى. او كذالك صفة دى د مصدر محذوف چي هغه منصوب په انزلنا سره ومعنى الاية كما قصصنا عليك" خبرونه د امم ماضيه وو موږ نازل كړي دي پر تا. قرآن انزالاً (دا مصدر محذوف دى) مثل ذالك الانزال. (دا معنى د كذالك ده) مماثلت يه په دې كي دى، چي د جانب څخه د خالق الارض والسموت دى. او په دې كي هم مماثل دي چي مشتمل پر وعد او وعيد دي. او احكام من الاوامر والمنهيات په كښي درج دي "قرآنا عربيًا" اى حال كونه قرآنا عربيًا چي په ژبه د عربو دى او فصيح او بليغ دى. او پر اسلوب معجز دى للانس والملائكة والجن الى يوم القيامة نو قرآن مبارك معجزة باقية ده آنحضرت ﷺ كرا لازمان و مر الدهور.

وَّصَرَّفْنَا فِيْهِ مِنَ الْوَعِيْدِ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ

او موږ مكرر ايت بار بار راوړى دى په قرآن كي من ايات الوعيد (يعني مضاف ووعيد ته محذوف دى وهو لفظ الايات) "لعلهم آه" (اى لكى) ددي لپاره (نو لعل په معنى دلام كي دى) چي كفار مكه به د شرك او معاصي وو څخه پرهيز وكړي ايمان به راوړي.

اَوْ يُحْدِثُ لَهُمْ ذِكْرًا ۝

يا به نوي پيدا كړى قرآن و دوئ ته ذكر يعني پند او عبرت او عظة.

كاشفي رح وايي: كه از جمله وعيد مكرر طوفان نوح است و رجفه زمين و صيحة جبرئيل و خسف قارون و اظلال الطور على اليهود والرمى بالحجارة على قوم لوط الى غير ذالك.

**فائده:** نسبت د احداث الذكر وه قرآن ته مجاز دى من قبيل الاسناد الى السبب والا فالمحدث هو الله عز وجل دى فالمعنى يحدث الله (اى يجدد) بسبب القرآن ذكرا او داسي هم روا ده چي كله د "او" دي په معنى د "واو" سره وي.

# فَتَعٰلَى اللّٰهُ الْمَلِكُ الْحَقُّ

تر اوسه خدای ﷻ په طرز د متکلم خبري کولې. انزلنا و صرفنا. اوس یې د غائب و الفاظو ته عبارت واړاوه. والالتفات طرز قدیم في کلام العرب چي په علم البدیع والبیان کي یې التفات بولي "وله ستة اقسام لان التکلم اما بالغیبة ثم ینقل الکلام الی الخطاب او التکلم و اما بالخطاب ثم یلفت الی الغیبة والتکلم او بالتکلم ثم ینقل الی الغیبة اوالخطاب" او ددې انتقالاتو امثله په علم البدیع کي وګورئ او په قرآن عزیز کي هم بعض ځایونه التفات راځي لکه "فیما نحن فیه کي بلنده ددې ذات یې بې همتا د خدای ﷻ له مماثلت څخه د یو شي سره د شیانو په ذات کي لانه واجب الوجود و ماسواه ممکنات.

او په صفاتو کي د جمال او جلال لان صفاته قدیمة ازلیة و ابدیة و صفات ماسوا محدثة نو قرآن چي صفت د خدای دی. لیس من کلام المخلوقین کما یزعمه المشرکون من انه من کلام محمد فذاته تعالی منزة في المعبودیة عن الالهة الباطنة کما یزعمه مشرکوا مکة" بلکه خدای ﷻ بلنده دی د بیان څخه د کامل واصفاتو دده کما قال سید الکاملین محمد ﷺ لا احصی ثنا علیک کما اثنیت انت علی نفسک" سعدي شیرازي رح وایي:

ای بر تر از قیاس و گمان و وهم ... و زهر چه گفته اند شنیدم وخوانده ایم
مجلس تمام گشت و بپایان رسید عمر ... ما همچنان در اول وصف تومانده ایم

"الملک" چي ملک دی چي نافذ دی حکم دده من الامر والنهي التکویني في کل ماسواه القدیم سلطانه (کان الله و لم یکن شیئا کل شئ هالک الا وجهه)

"الحق" چي ثابت دی ذات دده او وجود دده او صفات دده بلا مداخلة غیره فیها، په صحیح حدیث کي راغلي ذي چي جبرئیل چي به وحي راوړې آنحضرت ﷺ چابک چابک ژبه په قرائت د مانزل ښورولـه ددې له پاره چي راڅخه هېر نه سي، او علیه السلام د ډېر سختی سره به مخامخ کېدی. نو دا آیت نازل سو. د پاره د سهولت او اسانتیا.

وَلَا تَعْجَلْ بِالْقُرْاٰنِ مِنْ قَبْلِ اَنْ يُّقْضٰى اِلَيْكَ وَحْيُهٗ

ته تلوار مه کوه، په قرآن سره یعني بقرائة القرآن، د مخه تر دې چي جبرئیل یې له ابلاغ څخه نه وي فارغ سوی، نو دا آیت چي نازل سو علیه السلام به غوږ نېولی و، چي جبرئیل علیه السلام به فارغ سو، علیه الصلوة والسلام به هغه تولنه ما نزل په زړه کي حفظ او پر ژبه مبارکه بې جارې وه، "و في موضع آخر لاتحرک به لسانک لتعجل به انا علینا جمعه وقرآنه" الآیة (ته مه ښوره په قرآن یعني په قرائت د قرآن ژبه خپله یعني په وخت کي د ه قرائت د جبرئیل تاچي ته تلوار وکې په قرآن یعني په حفظ کي د قرآن په تحقیق دا بیان د سبب د نهي دی پر موږ جمع کول د قرآن، یعني ستا په زړه کي او قرائت د قرآن ستا پر ژبه).

وَقُلْ رَّبِّ زِدْنِيْ عِلْمًا

او داسي وایه چي ای زما ربه ماته زیات کړې علم یعني پر هغه علم چي تا ماته راکړی نور یې هم را زیات کړې.

**درویش وایي:** چي دا آیت نص دی په شرافت کي د علم تر تولو صفاتو بشریه، ولي چي خدای ﷻ اعلم الناس ته چي محمد ﷺ و، امر کی په طلب د زیادة د علم له خدای څخه، ابن مسعود ﷺ چي به دا آیت وایه داسي دعا بې کوله اللهم زدني ایمانا و یقینا بک، حسین کاشفي رح وایي: در لطائف قشیري رح (چي د یو کتاب نوم دی) مذکور است که حضرت موسی علیه السلام زیادة علم طلبید او را حواله بخضر علیه السلام کردند و بی طلب پیغمبر ما ﷺ را دعا یې زیادتی بیاموخت و حواله بغیر خود نکرد تا معلوم شود که آنکه در مکتب آدب "ادبني ربي، سبق" و قل ربي زدني علماً" خوانده باشد هر آئنه در درس گاه "علمک ما لم تعلم" نکته: "عُلمت" په صیغه د ماضي مجهول علم الاولین و الآخرین بگوش هوش مستفید آن حقائق اشیا تواند رسانید انتهی قوله الشریف الدقیق فافهم.

په صحیح حدیث کي راغلي چي یو چا د علیه السلام څخه پوښتنه وکړل "ای الاعمال افضل؟ قال العلم بالله" هغه سائل ورته وویل چي زه د عملو ده

افضل پوښتنه کوم، او تا جواب په علم راکړی. علیه الصلوة والسلام ورته وویل "قلیل العمل ینفع من العلم وان کثیر العمل لا ینفع مع الجهل".

**پوه سه:** چي انسان ته لازمه ده چي علم نافع دي طلبه وي. و لهذا قال رسول اللهﷺ اللهم اني اعوذبک من علم لا ینفع" شیخ اکبر محي الدین ابن عربي قدس سره وایي چي علم یو نور دی د انوارو څخه د خدای چي ور اچوي په زړه د من آراد د من عباده وهو معنی قائم بنفس العبد یطلعه علی حقائق الاشیأ و هو للبصیرة کنور الشمس للبصر مثلا بل اتم واکمل انتهی.

**درویش وایي:** چي په شان دعلم د خیر البشرﷺ دا یو بیت په فارسي ژبه ویل سوي دی.

علمها ی انبیأ و او لیأ.. دردلش رخشنده بود چون شمس الضحی
عالمي که آموزه گارش حق بود .. علم او بس کا مل و مطلق بو د

## وَلَقَدْ عَهِدْنَا إِلَىٰ آدَمَ مِن قَبْلُ

کلمه د لام موطئه یعني جواب د قسم محذوف ده او د عهد معنی امر او وصیت ده. یعني والله په تحقیق موږ امر کړی وو آدم ته چي شجرة چي مشهوره غنم دي او بعض وایي چي اینځر دی دمځه تر دي.

## فَنَسِيَ وَلَمْ نَجِدْ لَهُ عَزْمًا ﴿١١٥﴾

د آدم هغه عهد هېر سو (یا معنی داده چي د پرېښه و هغه ما امر به چي احتراز وه د خوراک څخه د شجرة) او موږ نه کړی پیدا آدم لره ټینګ قصد د احتراز او حفظ څخه د ما امر به او ده عزم معنی صبر هم ده یعني صبر یې مانهي عنه څخه ونه کړی.

**پوه سه:** چي عزم په لغت کي عقد القلب علی امضأ الامر. په نهایه کي وایي "العزم الجد" مظهري رح وایي چي عقد القلب پر امضأ د یو کار مستلزم دی کوشش لره پر کولو د هغه کار او صبر پر سختیو د هغه کار او بعض وایي. لم نجد له عزما ای قصدا علی اکل الشجرة یعني په قصد یې خورک نه دی کړی. بل اکل ناسیا یعني لم یکن له عقد القلب علی امضأ المعصیة.

**فائده**: هر نسيان چې خدای ﷻ د انسان ذم په کړی وي هغه نسيان دی چې اصل يې تعمد وي، او هغه نسيان چې معفو ده! هغه نسيان دی چې اصل يې تعمد نه وي كما ورد في الحديث النبوي رفع عن امتي الخطأ والنسيان.

**فائده**: عتاب الهي چې پر آدم عليه السلام وسو په سبب ددې چې ده اهتمام په نهي د خدای ﷻ نه وکړی.

**فائده**: آدم عليه السلام چې دا موضوع پېښه سوه په ابتدائي حالاتو کې دده چې تجارب د امورو ده نه وو کړی "لا من نقصان عقله لانه قد ورد في الحديث النبوي "لو وزن احلام بني آدم ( ای عقولهم) بحلم آدم ( ای بعقله ) لرجح حلمهم ای عقله.

**فائده** : مراد د آدم څخه ابوالبشر دی، وجه التسميه: قيل چې آدم عليه السلام د تولې مځکې د اديم يعني د مخ له خاورو څخه جسد دده پيدا کړه سوی وو، و قيل لادمة لونه يعني غنم رنګه بشر يې و. و قيل چې دا نوم ماخوذ دی ددې قول څخه الادام ما طيب به الطعام" نو په آدم کې خدای ﷻ روح ابنبی و چې در لودونکی د عقل او فهم او ادراک وو. و قيل غير ذالک والاظهر انه اسم عجمي و وجوه التسمية التي ذكرناها انما هي اذا كان اسم عربي فافهم.

**فائده**: په دې آيت کې و اذا اعزمت فتوكل على الله په معنا د قصد محكم دی، و كذا في قوله تعالى و لا تعزمو عقدة النكاح الاية و كذا في قوله تعالى و ان عزموا الطلاق آه فافهم.

**فائده**: جمله د "و لقد عهدنا آه" صاحب کشاف او بيضاوي وايي چې عطف ده على قوله تعالى "و صرفنا فيه من الوعيد لعلهم يتقون" وجه د عطف او مناسبت په مابين کې د معطوف عليه او د معطوف داده چې اشاره دي وکړل سي چې نقض العهد بعد تصريف الوعيد يوازې ددغو کسانو کار نه دی چې دا آيت پکښې نازل دی، بلکه آساس د بنا د آدميانو پر عصيان دی و عرقهم راسخ في العصيان حيث عهدنا الى آدم من قبل فنسي الاية هذا ماذكره المظهري.

لکن بعض محقيقنو دا عطف د کشاف او بيضاوي رد کړی دی، دوئ وايي چې "و صرفنا آه" خو معطوف ده پر "وكذالک نقص آه" او كذالک خو اشارة

وحدیث ته د موسی و قصة آدم علیه السلام في النسیان ومخالفة الامر لیس مشابهاً بحدیث موسی علیه السلام دوئ وایي چي دا جمله یعني "و لقد عهدنا الی آدم الایة" معطوف ده پر "و هل اتاک حدیث موسی" عطف القصة علی القصة. فالمعنی قدجائک قصة موسی و قصة آدم علیه السلام.

**درویش وایي**: یک نی صد آساني، د عطف څه ضرورت دی په ولقد عهدنا الایة کي واو استینافي دی و مثل هذا الواو کثیر في الهدایة.

## وَإِذْ قُلْنَا لِلْمَلَٰٓئِكَةِ ٱسْجُدُوا۟ لِءَادَمَ

ای واذکر دا خطاب و نبي علیه السلام ته دی.

**پوه سه**: چي ددې ځایه څخه چي کیفیت د ظهور د نسیان د آدم علیه السلام و فقدان عزمه کلمه د اذ منصوب محلا په اذکر مقدر سره ای اذکر حال آدم في ذالک الوقت روح المعاني وایي چي دا جمله معطوف ده پر مقدر ای اذکر هذا ای مامر و لقد عهدنا آه واذکر اذ قلنا آه او من عطف القصة علی القصة فلا یشترط فیه الاشتراک في الخبرية والانشائیه فلا یرما اورده المظهري چي معطوف علیه چي لقد عهدنا خو جمله خبریه ده او اذ قلنا آه په تقدیر د اذکر خو جمله انشائیه ده فکیف یصح العطف و اجاب عنه المظهري بوجه بعید فارجع الی تفسیره" ترجمه په یاد که و خلګو ته یا محمد ﷺ هغه وخت چي مونږ وویل و ملکو ته چي سجده وکړه و آدم ته.

**پوه سه**: د "سجدة" څخه یا مراد انحناً یعني سر کښته کول دی کتحیة اخوة یوسف الی یوسف کما اخبر الله تعالی عنها بالسجدة في سورت یوسف. او یا مراد سجده متعارفه ده. یعني وضع الجبهة علی الارض فیکون آدم قبلة لسجودهم و اما السجدة فهی الله عزوجل.

**پوښتنه**: آدم علیه السلام ته ولي ملائکه امر کړی خدای پاک په سجده سره او سره ددې چي خدای جل جلاله وویل " فنسی و لم نجد له عزماً" یعني په دې امر حکمت د رب العزة عزوجل څه وو؟

**ځواب**: په دې کې حکمت دا دی چې آدم ته خپل دښمن یعنې ابلیس ور وه پېژندی چې دده خبره ونه مني، کما سیئاتي او یا حکمت هغه وو چې په سورت البقره کې تېر سو په تفسیر د هغه آیت د علم آدم الاسما کلها الی آخیر الاٰیة یعنې چونکه ملائکه څه وخت چې د تعلیم الاسما څخه عاجزه پاته سوې، او آدم علیه السلام تو له اسما په امر د خدای جل جلاله و ملکو ته وربښوول، نو آدم علیه السلام ددوئ معلم با احترام سو، نو ځکه یې دوئ امر کړې په سجده وده ته احتراما لآدم لکونه استاذه.

**درویش وایي**: چې په تفسیر کې د سورت البقرة دا اختلاف تېر سو چې مامور بالسجود ټولي ملکي وې کما هو الاظهر والاوفق لقوله تعالی "فسجد الملائکة کلهم آه" کما في سورة البقرة، او که بعض ملکي وې چې جن یې د مخکې له مخه څخه وشړل.

فَسَجَدُوٓا۟ إِلَّآ إِبْلِيسَ أَبَىٰ ﴿١١٦﴾

نو سجده وکړه ملکو ( یعني کلهم اجمعون کما في سورة البقرة) مګر نه ابلیس، ابا او منع وکړه ابلیس له سجدې څخه.

**یوه سه**: چې ابی جمله مؤکدة ده الا ابلیس او دا هم روا ده چې ابی دي علت د استثنا وي.

فَقُلْنَا يَٰٓـَٔادَمُ إِنَّ هَٰذَا عَدُوٌّ لَّكَ وَلِزَوْجِكَ

("فقلنا" جمله عطف ده پر مقدر باندې کما یدل علیه ما سیئاتي یعني فادخلنا آدم الجنة فقلنا له) یعني ای آدم دغه ابلیس دښمن دی ستا او د همسرې ستا چې مراد ځنې حوا علیها السلام وه بعد ان خلقت من ضلعه الایسر في الجنة.

فَلَا يُخْرِجَنَّكُمَا مِنَ ٱلْجَنَّةِ فَتَشْقَىٰٓ ﴿١١٧﴾

ظاهراً که څه هم نهي د ابلیس دي له اخراج څخه ددوئ لکن په معنی نهي ده دوی دوو له متابعت څخه ددوئ د ابلیس د قول چې سبب د اخراج به وګرځي د ان کان المخرج هو الله تعالی.

**یوه سه**: چې کلمه د فا په "فلا یخرجنکما" کې لپاره د سببیة اذ العداوة سبب

لعدم الاتباع، جمله د "فتشقی" دا جمله منصوب ده محلا په جواب کي د نهي.

**یوه سه:** چي مراد د شقاوة څخه شقاوة اخروي نه ادي بلکه سختي د دنیاوي چارو ده، یعني بکد یمینک و عرق جبینک یعني الحرث والحصد (ای لو) والطحن (اوړه کول) والخبز (پخه ول).

**پوښتنه:** د اخراج نسبت خو آدم او حوا دواړو ته وسو او فتشقی کي یوازي آدم ذکر کړی؟

**ځواب:** یا لپاره د مطابقت د رأس الآیة، یا ددې لپاره چي حوا تابع ده په شقاوة کي د آدم علیه السلام په دنیاوي چارو کي، او یا ددې سببه چي مراد له شقاوة څخه خو ستړیا ده په طلب کي د معاش هغه په ذمه کي د مړو ده.

## إِنَّ لَكَ أَلَّا تَجُوعَ فِيهَا وَلَا تَعْرَىٰ ﴿١١٨﴾

په تحقیق تا لره دا شي سته چي ته به نه وږی کېږي، یعني سره د حوا په جنت کي "لان ثمار الجنة الذیذة في الغایة کثیرة في کل وقت وحین، او نه به د جامو د خوا لخېږي لان ثیاب السندس والاستبرق مهیائة لاهل الجنة

## وَأَنَّكَ لَا تَظْمَؤُا فِيهَا وَلَا تَضْحَىٰ ﴿١١٩﴾

او نه به تږي کېږي په جنت لان الانهار الاربعة الماء، واللبن، والخمر والعسل جاریة فیها، او تا ته به نه رسېږي ګرمي د لمر لانه لیس في الجنة شمس او اهل جنة في ظل ممدود. والحاصل چي په جنت کي د هېڅ شي کمي نسته. من الماکول والشروب والملبوس والمظلة په دې بیان کي قطع ده عذر وه د آدم ده په اکل کي د شجرة څخه.

**درویش وایي:** چي لکه په سورت بقرې کي تېر سوه چي آدم او حوا چي په جنت کي داخل کړه دا یو شرط یې پر کښېښو "ولا تقربا هذه الشجرة فتکونا من الظالمین" ابلیس هم د هغه نهي د خوا ورته راغلی او آدم او حوا ته یې وویل.

## فَوَسْوَسَ إِلَيْهِ الشَّيْطَانُ قَالَ يَا آدَمُ هَلْ أَدُلُّكَ عَلَىٰ شَجَرَةِ الْخُلْدِ

نو وسوسه واچول و آدم ته شیطان. ای آدم دا بیان دی ده وسوسي د شیطان دی



Scanned by CamScanner

ایا زه دلالت وکړم تاته پر درخته د خلد یعني الخبیث چي ددې درختي دا خاصیت دی چي خورک څندي وکړی هغه بیا نه مري یعني الخبیث چي تاسي چي خدای منع کړاست ددې درختي د خوراک څخه تاسي ته یو وخت اراده د مرګ لري.

وَمُلْكٍ لَّا يَبْلَىٰ ﴿۱۲۰﴾

او ملک به دي وي پر میوو وغیره د جنت چي نه به ضعیف کیږي. او نه به ته زړیږي.

فَأَكَلَا مِنْهَا فَبَدَتْ لَهُمَا سَوْآتُهُمَا وَطَفِقَا يَخْصِفَانِ عَلَيْهِمَا مِن وَرَقِ الْجَنَّةِ

نو په سبب ده وسوسې د شیطان خورک وکړی آدم او حوا د هغې درختي څخه چي ابلیس ورته معرفي کړې وه، نو ښکاره سوه. دوئ یعني آدم او حوا انهما فرجین د دوئ یعني یو د بل فرج یې ولیدی ولي چي کالي دجنت پر توئ سوه. او دوئ شروع وکړه. بلګونه د درختي یې پر فرجینو ایښول چي فټ سي. د بلګونو څخه د درختي د جنت بحذف المضاف.

**فائده:** فرج ته چي "سوئة" وایي ددې کبله چي لڅ والی دفرج سړی په غم کي واقع کوي.

**فائده:** مشهوره داده چي دا بلګونه د درختي اینځر وه لان ورقة عریض یصلح لسترة العورة.

وَعَصَىٰ آدَمُ رَبَّهُ فَغَوَىٰ ﴿۱۲۱﴾

نافرماني وکړه آدم د رب له امر څخه په سبب د اکل الشجرة نو دی ده مطلوب څخه خپل بې برخي سو و اخطأ طریق الحق او د شیطان وربښولي خلد باکل الشجرة ناکام سو. او یا دا معنی چي د مامور په عمل کي چي پرده لازم وو خطاوتی او یا د رشده چي د دښمن په خوله یې وکړه ابن اعرابي وایي چي آدم فاسد کړی پر ځان خپل عیش فر من العز الی الذلة و من الراحة الی التعب او من راحة الجنة الی تعب الدنیا.

**درویش وایي:** چي خدای پاک ده ملکو سره په مشوره کي داسي وویل اني جاعل في الارض قبل خلق آدم نو د آدم خلق د پاره دخلافت د محکمي خدای ﷻ

وکړی، لکن چي په جنت کي داخل سو او هغه عیش او راحت د جنت یې په ولیدی، نو بیله ددې موضوع یعني و لاتقربا الشجرة او بیله فوسوس الیه الشیطان او ده ده خورک د شجره منهی عنها ځخه. کما مر خدای پاک و آدم ته ویلي وای، چي ته خلیفة الارض یې ته و حوا مځکي ته ولاړ سئ که څه هم آدم علیه السلام د امتثال ځخه د امر الهی خو چاره نه درلوده لکن په ډېر غمګېن زړه به سپېړې مځکي ته راتلای، نو خدای خپل دوست نه خپه کاوه، بلکه چي مځکي ته په خوشحالي ولاړ سي، دا موضوع د نهي ده.د اکل الشجرة مابین ته راوستل او آدم ته تر عتاب د لم اقل لکما کما في سورة البقرة راوستی چي هبوط الارض ته راضي بلکه خوشحاله سو چي له عتاب الهی ځخه یې خلاصون پیدا کړی. پښتانه وایي په مرګ یې ونیسه په تبه به خپله راضي سي، او آدم و حوا د مځکي په راتلو څه تاوان وکړی جنت خو ځای ده تو الد نه وو نو آدم علیه السلام او حوا دوه په دوه مځکي ته راغله د ملیاردو اولادو سره به جنت ته ورسي د یو عارف ځخه چا پوښتنه وکړه چي آدم سره د نهي ولي د غنم دانه وخوړل هغه عارف ورته وویل که آدم په دې خبر وای چي زما په نسل کي نور محمدي ﷺ هم پیدا کېږي، د غنم درخته بې د بیخه ځخه خوړلې وای.

**درویش وایي:** چي موضوع ځخه د خورک د آدم علیه السلام د شجره منهی عنها ده مفسرین ده او اهل المذهب من اهل السنة والجماعة او د معتزله وو او شیعه ګانو لوی اختلافات سته چي روح المعاني توله په تفصیل سره بیان کړي دي. په آخر کي ویلي دي" والاحوط نظرا معام آدم علیه السلام ان صدور ما ذکر من آدم کان قبل النبوة و کان سهوا او عن تاویل (چي دنهي ده اکل الشجرة تنزیهي په خیال ورغلی وي او یا دا چي نهي د خورک یې محصور پر شخصي درخته په خیال ورغلی وو نو ده جنس د هغې درختي په بل ځای په جنت کي پیدا کړه، د هغې درختي ځخه یې خورک وکړی. په وسوسه د ابلیس" وسهي في التاویل الثاني لان المقصود من هذه الشجرة جنسها لاشخصها") بیا روح المعاني ددې سوال په جواب کي چي داسي وایي نو ولي خدای جل جلاله دومره تشدید پر آدم علیه السلام وکړی چي کالي یې پر توی کړه، او د

جنت څخه يې وايستې الى غير ذالک داسې ويلي دي نظراً الى علوشانه ومزيد فضل الله تعالى عليه وقد شاع ان حسنات الابرار سيئات المقربين".

روح المعاني د خپلې خبرې په تائيد کې هغه حديث د بيهقي راوړي دی "في شعب الايمان عن ابي عبد الله المعزلي قال تفكر ابراهيم عليه السلام في شان آدم عليه السلام فقال يارب خلقته بيدک ( يعني بقدرتک بلا توسط الاب والام) و نفخت فيه من روحک ( اي الروح المطهر المختار لک) واسجدت له ملائكتک ثم بذنب واحد ملأت افواه الناس من ذكر معصيته فاوحى الله تعالى اليه يا ابراهيم اما علمت ان مخالفة الحبيب على الحبيب شديدة انتهى" او بعض محققين توجيه د شدت الهي پر آدم عليه السلام "اجر بليغ ده اولاد د آدم عن امثاله انتهى".

**درويش وايي:** چي مثل د شدة الامر على آدم عليه السلام لكه د ابراهيم عليه السلام په قصه کې چي آنفا تېر سو. پښتانه وايي چي د پردي سري څخه څوک گله نه کوي. او د خپل څخه ژر گله کېږي. الاقرب فالاقرب حتی ده زوی څخه پلار پر لږ ناوړه کار ډېر غم او غصه ښکاره کوي. وروسته روح المعاني نوري د مقام سره موافقي او د درویش د زړه د خوشحالۍ خبري کړي دي. او روح البيان دا فعل د آدم زلة بللی دی. او ده ويلي دي چي اطلاق د معصيت پر ذلة په دې آيت کې مجاز دی. "لان الانبياء عليهم السلام معصومون من الكبائر والصغائر لا من الذلات عندنا انتهى" فقير وايي چي ما په عصمت کي د انبياء عليهم السلام يوه رساله تصنيف کړې ده. چي نوم يې "كشف الغطا عن عصمت الانبياء" دی چي پر هغه رساله د ټولو علماً د ولايت قندهار امضاوي او د هرات د مشائخو دستخطونه پر موجود دي که څوک په دې مسئله ځان ښه خبره وي. هغه رساله دې پيدا کړي ومن الله التوفيق.

ثُمَّ اجْتَبٰهُ رَبُّهٗ فَتَابَ عَلَيْهِ وَهَدٰى ﴿۱۲۲﴾

وروسته تر مذكوري موضوع خداى جل جلاله آدم عليه السلام مختاره كړى. او ځان ته يې نژدې کی. او توفيق د توبې يې ورکړی. توبه يې قبوله کړه.

**يوه سه:** چي د توبې نسبت چي بنده ته وسي معنی يې رجوع د عن الذنب. او چي خداى جل جلاله ته وسي معنا يې رجوع ده وبنده ته په عفوه او رحمت سره "وهدى"

او خدای ده ته هدایت د توبې وکړی، حیث قال ربنا ظلمنا انفسنا الی آخره.

وهب بن منبه وایي چي آدم علیه السلام چي د ېري د پښېماني اوښکي توئ کړې، خدای پاک جل جلاله ورته وویل چي داسي ووایه "سبحانک و بحمدک لا اله الا انت عملت سوٴ و ظلمت نفسي فاغفرلي انک خیر الغافرین فقالها" بیا خدای جل جلاله ورته وویل قل سبحانک و بحمدک لا اله الا انت عملت سوٴ و ظلمت نفسي فارحمني وانت خیر الراحمین" بیا خدای جل جلاله ورته وویل " قل سبحانک و بحمدک لا اله الا انت عملت سوء و ظلمت نفسي فتب علی انک انت التواب انتهی".

**سوال**: هدایت خو تر توبې د مخه وو. نو ولي یې هدایت تر توبي وروسته راوړی؟

**ځواب**: واو لپاره د مطلق جمع دی، دون الترتیب والتراخي او په تاخیر د "هدی" کي مطابقت د رؤس الایات دی کما مر.

**سوال**: اکل الشجرة خو حوا هم وکړی نو د هغې د توبې حال نه سو بیان؟.

**ځواب**: حوا تبع د آدم علیه السلام ده په توبه او په قبول کي د توبې ځکه یې ذکر نه کړه، " وکذا طوی ذکر النسا في القرآن العزیز والسنة النبویة".

او بعض مفسرین وایي چي چونکه ذکر دعصیان د حوا نه وو سوی. نو ذکر د توبي ددي هم ونه کړی.

**درویش وایي**: چي د آدم علیه السلام د ویري ژړا په باره کي لکه په حدیث کي د وهب رح چي تېره سوه. مولنا جلال الدین الرومي په مختلفو ځایو کي د مثنوي معنوي داسي په زړه پوري خواږه ابیات ویلي دي.

خاک غم را سرمه سازم بهر چشم..... تار گوهر پر شود دو بحر چشم
اشک چون از او بارند خلق..... گوهر ست واشک پندارند خلق
توکه یوسف نیستي یعقوب باش..... همچو او باگریه و اشوب باش
پیش یوسف نازش و خوبي مکن..... جز نیاز واه یعقوبي مکن
آخرهر گریه آخر ضد خنده ایست..... مرد آخربین مبارک بنده ایست
هر کجا ابرو روان سبزه شود..... هر کجا اشک دوان رحمت شود

مسلم له ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت کړی دی، "قال قال رسول الله ﷺ احتج آدم موسى ( يعني اعتراض وکړی پر آدم موسى عليه السلام عند ربهما ( يعني په روحانيت خدای سره جمع کړه) قال موسى انت ادم الذي خلقک الله بيده ( ای بقدرته بدون مدخل الاسباب کما في اولاد آدم) و نفخ فيک من روحک ( ای الروح المبارکة) واسکنک في جنت ثم اهبت الناس بخطيئتک الى الارض قال ادم انت موسى الذي اصطفاک الله برسالته و بکلامه، ( يعني کليم الله بلاواسطة جبرئيل وگرځېدې) و اعطاک الالواح ( ای الالواح التي فيها التوراة) فيها تبيان کل شئ وقربک نجيًا فبکم وجدت الله کتب التوراة قبل ان اخلق قال باربعين سنة" قال آدم فهل وجدت فيها وعصى آدم ربه فغوى. قال نعم قال افتلو مني على ان عملت عملا کتب الله على ان اعمله قبل ان يخلقني باربعين سنة" قال رسول الله فحج آدم موسى ( غالب سو آدم پر موسى په مذکور دليل سره) په بل روايت کي راغلي دي چي درې واره عليه السلام دا لفظ مکرر ووايه.

قَالَ اهْبِطَا مِنْهَا جَمِيعًا

**يوه سه:** چي دا جمله مستانفه ده خدای پاک ووېل کښته سئ د جنت څخه تا او حوا.

**سوال:** د دوکسو خطاب د جميعًا و تاکيد ته څه ضرورت لري او بل دا چي په وروسته آيت کي ضمائر د جمع راغي؟

**خواب:** چونکه د آدم عليه السلام او حوا وتل له جنت څخه مستلزم دي وتلو ته د اولاد د دوئ تبعًا نو ځکه يې تاکيد په جميعا وکړی او وروسته ضمائر يې د جمع راوړه.

بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ فَإِمَّا يَأْتِيَنَّكُم مِّنِّي هُدًى

بعض ستاسي يعني ده اولادي ستاسي به دښمنان وي د نور بعض، يعني په سبب د اختلافاتو ديني وو لکه مؤمنان او کافران يا د اختلافات دنيوي وو. نو که چيري راسي تاسي ته زما دخوا کتاب او رسول.

پر حديث د مسلم يو علمي ربا: د خلگو خصوصًا عوام چي دا حديث که څوک

ورته بيان کړي، نو هغه که عاصي په يوه گناه سره وو. او ملامتيا څوک پر وړايي نو هغه هم مثل دجواب د آدم علیه السلام ورکولای سي يعني چي دا گناه خو رب جل و علا پر ما نوشته کړې وه، د مخه تر پيدا ئبنت زما نو تاسي ولي پر ما ملامتيا واياست. لکه آدم علیه السلام چي د لوم د موسى علیه السلام په دغه عذر له موسى څخه ځان خلاص کړى. او عليه السلام تائيد مكرر د غلبې د آدم پر موسى هم وكړى.؟

**ځواب:** عاصي دا عذر نسي ويلای ولي آدم ته خدای بخښنه کړې کما مر "فتاب عليه و هدیٰ" نو په عفوه سوي گناه سره پېغور د موسى و آدم علیهما السلام ته بې ځايه ؤ او زموږ د زماني د عاصي گناه عفوه يعني نه ده. نو ددې لوم څخه نه خلاصېږي. او بل جواب دادي چي لوم پر عاصي په دار التكليف كي دپاره زجر دعصيان څخه دى، او دار التكليف څخه د باندي لكه آدم علیه السلام لوم يې فائده نه لري فافهم.

**يوه سه:** چي اصل ده اما ان ما وو ما زائد دى، نو ن دان شرطيه يې په كښې مدغم كړى. او مارد ددې هدى څخه كتاب او رسول دى.

**فَمَنِ اتَّبَعَ هُدَايَ فَلَا يَضِلُّ وَلَا يَشْقَىٰ**

دا جمله خبر د ان شرطيې ده، نو كه څوک متابعت وكړي د هدايت زما يعني پر كتاب او رسول باندي ايمان راوړي، نو هغه سړى په دنيا كي په هدايت دخداى جل جلاله د ضلالت څخه محفوظ او په آخرة كي څه يعني د سوء الحساب څخه بې خلاصون دى. بغوي رح دابن جبير او هغه د ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت كړى دى، چي ده وويل من قرء القرآن واتبع ما فيه هداه الله في الدنيا من الضلالة ووقاه سوء الحساب يوم القيامة او دا ايت ابن عباس دخپل قول دليل وگرځاوه.

**وَمَنْ أَعْرَضَ عَن ذِكْرِي فَإِنَّ لَهُ مَعِيشَةً ضَنكًا**

او كه څوک روى گرداني وكړي يعني له هدى څخه زما چي سبب د ذكر زما وو. يعني هدىٰ زما ونه مني چي عبادت د كتاب او د رسول څخه وه. چي دا كسان عبارت د كافرانو څخه دى. نو په تحقيق ده لره عيش دى تنگ.

**يوه سه:** چي "ضنكا" مصدر دى، وصف په مبالغة، نو هم ددې سببه مذكر او مونث

يکښي برابر دی، نو داسوال نه پيدا کېږي، چي معيشة مونث او ضنکاً مذکر دی.
بغوي رح وايي چي د ابن مسعود او د ابي هريرة او دابي سعيد الخدري رضي الله عنهم څخه روايت دی، وايي چي مراد ځنديٰ عذاب القبر دی، او دغه رنګه ابي هريرة رضي الله عنه د رسول الله ﷺ څخه روايت کړی دی، که ده ويل معيشة ضنکا عذاب القبر دی، قال ابوسعيد حتی يختلف اضلاعه يعني قبر پر کافر دونه تنګ سي چي پښتئ يې يو تر بل تېري سي، او داغسي معذب وي تر بعث پوري، او په قول دالحسن مراد زقوم او زريع او غسلين دي په دوږخ کي. روح المعاني وايي والمتبادر ان تلک المعيشة له في الدنيا و روي ذالک عن عطاً و ابن جبير او سبب د تنګ والي دعيش د کافر په دنيا کي دادی چي دی هميشه شديد الحرص په جمع کولو کي ددنيا او په ازدياد کي د دنيا وهر هلاکت ته ځان غورځوي او علی الدوام دی په بېره کي وي، د کم والي د دنيا او بخيل وي ولي چي دی بل غرض نه لري بې دنيا.
**درويش وايي:** چي په اوسني زمانه کي داغسي بعض مسلمانان په صفاتو کي د کافرانو سره شريک ليدل کېږي. بخلاف المؤمن الطالب للاخرة" وقيل "الضنک" مجاز مما لا خير فيه. او عکرمه رح وايي چي ضيق يعني ضنکا حرام مال ته وايي، او ضحاک رح وايي چي ضنک کسب خبيث ته وايي او ابن عباس رضي الله عنهما وايي الضنک الشقاً.
**سوال:** ضنک خو په لغت کي تنګ ته وايي، نو پر حرام پر کسب خبيث يا پر شقاً يې څرنګه اطلاق صحيح دی؟.
**جواب:** دغه امور مذکوره اسباب دي، ده ضيق المقام في القبر او النار، نو دا اطلاق دی د مسبب پر سبب باندي. د ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی ده وويل چي هر مال چي ورکړه سي بنده ته که لږ او که ډېر ولم يتق فيه ربه فلا خير فيه و هو الضنک في المعيشة.
**درويش وايي:** چي پر دې روايت ضنک په کافر پوري خاص نه دی لان بعض مسلمانان کذالک حديث صحيح ابن ابي الدنيا او حکيم الترمذي او ابو يعلی او ابن

جرير او ابن المنذر او ابن ابي حاتم او ابن حبان او ابن مردويه ده ابي هريرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ المؤمن في قبره في روضة خضراً ويرحب ( يعني فراخه كړه كيږي) اويا گزه "ويضئي حتى يكون كالقمر ليلة البدر" بيا عليه السلام ووېيل "هل تدرون فيما انزلت فان له معيشة ضنكا"؟ قالو الله ورسوله اعلم قال عليه السلام عذاب الكافر في قبره يسلط عليه (۹۹) تنينا مالتنين (۹۹) حية الى اخير الحديث.

**درويش وايي:** چي دغه دی په حقيقت کي معيشة ضنګا.

## وَنَحْشُرُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَعْمَىٰ ﴿١٢٤﴾

او موږ حشر کوو د کافر په ورځ د قيامت ړوند. قال ابن عباس ﷺ اعمی البصر يعني په ظاهري بستر گو ړوند. او مجاهد رح وايي اعمي عن الحجة" لكن قول د ابن عباس ﷺ صحيح دی مطابق ددې ايت سره دی.

## قَالَ رَبِّ لِمَ حَشَرْتَنِي أَعْمَىٰ وَقَدْ كُنتُ بَصِيرًا ﴿١٢٥﴾

کافر ووايي يا رب ولي زه حشر کړم په سترګو ړوند، او زه وم په دنيا کي په سترګو مي ليدل يعني په دنيا کي خو ړوند نه وم.

## قَالَ كَذَٰلِكَ

**پوه سه** : چي كذالک متعلق په فعل محذوف پوريږي يعني فعلت انت كذالک چونکه دا يوه مبهمه خبره و خدای پاک يې تفسير وکړی په دې سره.

## أَتَتْكَ آيَاتُنَا فَنَسِيتَهَا ۖ وَكَذَٰلِكَ الْيَوْمَ تُنسَىٰ ﴿١٢٦﴾

تاته درغلي وه آيت دالة پر وحدانيت او يا ايات المنزلة پر انبيا، تا د هغو څخه اعراض وکړی او پرې دي بښول لکه ړوند ي شی نه ويني نو دا سبب دی دحشر ستا اعمی والي چي تا په دنيا کي ده رانده چمونه کوله. دغه رنګه نن ورځ يعني يوم القيامة ته پر بښول کيږي، په اور کي لکه تا چي ايات پرې ايښي وه.

## وَكَذَٰلِكَ نَجْزِي مَنْ أَسْرَفَ وَلَمْ يُؤْمِن بِآيَاتِ رَبِّهِ ۚ

"كذالک" اى مثل ذالک الجزا "نجزي" موږ جزا ورکوو هغه چاته چي تر حد

تېرې يې کړې وي. يعني عمر گرانمايه يې صرف کړی وي په شهواتو کې او په
اعراض کې له آياتو څخه د خدای ﷻ. او ايمان يې نه دی راوړی پر آياتو د
خدای بلکه روی گرداني يې د آياتو آفاقيه ؤ او له آيتو څخه د کتاب کړی وي.
او دغه رنګه يې و معجزاتو ته د انبياء عليهم السلام په درنه سترګه نه وي کتلي.

## وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ اَشَدُّ وَاَبْقٰى

او هر آئينه عذاب د آخرت يعني په دوږخ کې سخت تر دي تر ضنک العيش
والعمي و عذاب القبر او دوام داره دی. تر عذاب ده دنيا يا د قبر لانه دائم ابدا لايزول.

**پوه سه:** چي دا جمله عطف ده على قوله تعالى "و من اعرض عن ذکري الاية. په
صحيح البخاري کې راغلي دي چي رسول الله ﷺ وويل ان ادني اهل النار عذابا
(هغه تر ټولو کم ده اهل النار از روي عذاب) الذي يجعل نعلان (يعني من النار)
دوې چوتې (يغلي منهما دماغه في راسه) چي ايشي به د هغه چوتو په اثر ماغزه ده ده
په سر کې " اللهم اعذنا من عذاب النار برحمتک وبجاه نبيک المجتبى ﷺ.

## اَفَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ

ضمير مرفوع په "يهدي" کې يا راجع دی وهدی ته چي مراد څنې کتاب او
رسول دی او يا راجع دی و خدای ﷻ ته. المذکور في قوله و کذالک نجزي من اسرف
و لم يؤمن بايات ربه" تو پر دي تقدير په دې ايت کې التفات دی د تکلم څخه وغيبت
ته چي د محسنات بديعه څخه دی. ددې ارجاع تائيد هغه قرائت کوي چي بعض قرأ
دا آيت داسې ويلي دی " افلم نهدي لهم" بصيغة المتکلم او استفهام د پاره دانکار او
نفي د نفي داثبات وي. يعني هداهم الله او القرآن او الرسول محمد ﷺ والضمير
المنصوب راجع الى کفار مکة يعني کفارو ته د مکې هدايت کړه سوی دی لکن "
استحبو العمي على الهدى" والنار على الرجوع من دين الاباً الى الدين الحق المؤيد
بالمعجزات الباهرة" او کلمه ده فا چي وروسته تر همزه د استفهام راغله عطف پر
محذوف باندي کما مر غير مر" او لم يبين لهم فلم يهديهم.

**سوال:** همزه د انکار خو داخل پر هدايت دی او سره ددې چي هدايت منفي
او منکر نه دی؟.

**ځواب**: هر لفظا خو پر هدایت داخل دی لکن په معنی کي منکر عدم اهتدا ددوئ ده بعد الهدایة فافهم.

## كَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّنَ الْقُرُونِ يَمْشُونَ فِي مَسَٰكِنِهِمْ ۗ

کلمه د کم خبریه ده، مفید د معنی کثرة ده. یعني څومره ډېر هلاک کړي دي موږ دمخه تر کفارو د مکې" کعاد، وثمود وقوم لوط وغیرهم "یمشون في مساکنهم" دا جمله حال ده له "القرون" څخه اهلکنا وهم ماشین ای کفار مکة في اوطانهم في اسفارهم الی الشام وغیره یعني افلا یعتبرون کفار مکة من حال تلک القرون. یعني چي دغه قرون چي دوئ په مساکنو خالیه وو ګرځي چي دا قرون په سبب د شرک او د تکذیب الرسل او د تکذیبِ الکتب المنزلة هلاک سوي، او په موږ کي هم ورته حالات د قرون ماضیه وو سته. نو پر موږ به هم یو وخت د هلاکت ځپه راباندي راسي........ سعدي رح وایي:

پند گیر از مصائب دیگران......... تانگیرند دیگران ز تو پند
نرود مرغ سوی دانه فرار......... چودیگر مرغ بیند اندر بند

## إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّأُولِي النُّهَىٰ ﴿١٢٨﴾

په تحقیق په دغه لیدلو کي د منازلو ده امم مهلکه وو دلائل او عبرتونه سته خاوندانو ته د عقول سالمه وو.

**پوه سه**: چي نهی بضم النون والقصر عقل ته وایي، لان العقل ینهی صاحبه عن الفحشا والمنکر اذا کان خالیا عن التکبر والعناد وتقلید الابا والاجداد.

## وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِن رَّبِّكَ

که نه وای یو خبره چي ده وړاندي سوې د خدای څخه یعني په لوح محفوظ کي چي هغه داده چي عذاب د امت محمدیه ﷺ د کفار ځنډېږي تر ورځي د قیامت او استیصال ددوئ په دنیا کي نه کېږي، "لکون النبي ﷺ فیهم الذي هو رحمة للعالمین.

**پوه سه**: چي سبقت صفت دی د کلمة او خبر د مبتدا محذوف دی والتقدیر لولا کلمة سبقت حاصلة.

لَكَانَ لِزَامًا وَّاَجَلٌ مُّسَمًّى ﴿۱۲۹﴾

یعني وای به هلاکت د کفارو د قریشو په مثل دقرون ماضیه وو، مثل عاد وثمود وقوم لوط و قوم غیر ذالک لازم به وای د هؤلاء الکفار سره.

**پوه سه**: چي لزاما مصدر دی، د باب د مفاعلة وصف یې مبالغة او یا په معنی د فاعل کمامر في الترجمة "واجل مسمی" عطف دی، پر کلمة والمعنی لولا اجل لبقائهم في الدنیا اولقیام القیامة او لعذابهم، نو په دې کلام کې تقدیم او تاخیر دی د اصل الکلام لولا کلمة سبقت و اجل مسمی لکان لزاما.

**پوښتنه**: په دې تقدیم او تاخیر کې حکمت څه دی؟

**ځواب**: علامه بغدادي آلوسي رحمه الله وايي چي حکمت یې مسارعت دی وبیان ته جواب ده لولا او بل تنبیه پر دې ده چي هر یو ددغو دو کارو مستقل په نفي د لزوم د عذاب ددوئ څخه دی، یعني کې اصل د کلام راوړی وای توهم به ددې کېدی چي دا مجموع علت د نفي د عذاب وي، اوبل حکمت یې مراعات د فواصلو د آیتو دی.

فَاصْبِرْ عَلٰى مَا يَقُوْلُوْنَ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ

نو صبر وکړه ته یا محمد ﷺ پر هغه څه چي دوئ یې وايي ستا په باره کې مثلا شاعر دی کاهن دی مجنون دی، مفتر دی وغیر ذالک "وسبح" مراد له تسبیح څخه لمونځ دی ذکر جزء مراد ځنې کل دی، متلبس په حمد خدای سره یعني حمد د خدای وایه چي ته یې رسول و گرځولې او تا ته یې توفیق درکړی پر اداء د رسالت و داسي سرکښه او متکبر کافرانو ته د قریشو، ولهذا جاء في الحدیث النبوي الصحیح کان رسول الله ﷺ اذا احزنه امرا افرع الی الصلوة.

**پوه سه**: چي "فاصبر" جزاء د شرط محذوف ده، یعني چي تاته دا در معلومه سوه چي عذاب د مؤجل دی الی اجل مسمی ته وکړه.

**تنبیه**: اداء د رسالت چونکه عبادت عظمی و، لکن په دې سره باید سړی ونه نازېږي، بلکه شکر د خدای ﷻ دې وایي پر توفیق او اعانة دده سره په دې لار

ده اداً الرسالة، لکه په سورت فاتحه کي وروسته تر "ایاک نعبد" یې ایاک نستعین د پاره ددغي نکتې راوړی.

**فائده:** چونکه سبح امر دی او امر دپاره د وجوب اذا لم قرنیة علی خلافه کما في قوله و اذا حللتم و فاصطادوا. او د امر مقید په بحمد ربک سره نو دا دلیل ددې چي په لمانځه کي چي مراد د سبح څخه قرائت د فاتحة الکتاب دی، نو قرائت د فاتحة الکتاب واجب دی کما صرح به علیه السلام لا صلوة الا بفاتحة الکتاب. رواه الشیخان.

قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوْبِهَا ۚ وَمِنْ اٰنَآئِ الَّيْلِ فَسَبِّحْ

دمخه تر لمر ختلو، چي د سهار لمونځ دی "وقبل غروبها" یعني صلوة العصر (او بعض علماً وایي چي د قبل الغروب څخه مابعد الزوال مراد دی. نو ظهر او عصر دواړو ته شامل سو) او په ساعاتو کي د شپې چي مغرب او عشاً څندي مراد دی.

**پوه سه:** چي اناي جمع ده اني بالکسر والقصر په معنی ده وخت.

**درویش وایي:** چي چونکه مخاطب علیه الصلوة والسلام دی، او پر صحیح قول د تهجد لمونځ پر علیه الصلوة والسلام واجب وو نو په اناي اللیل که د تهجد داخل والی هم احتمال لري.

"فسبح" قال المظهري الفاً زائدة او یا مبني پر تقدیر ده اما یعني واما من اناً اللیل فسبح، خفاجي په حاشیه کي د بیضاوي وایي "لاحاجة الی زیادة الفاً او تقدیر اما، چي سبح عامل دی په من اناً اللیل لانه لایمنع عمل مابعد الفاً فیما قبله کما صرح به النحات.

**فائده:** تخصیص د اناً اللیل چي په صلوة سره وکړی یو سبب یې دادی چي شپه وخت دی د خلو د زړه په اشغال سره ددنیا او بل سبب دادی چي نفس د شپې امیل دی، و استراحة ته فکان العبادة په اناً اللیل افضل و احسن قال الله تعالی "ان ناشئة اللیل هي اشد وطاً و اقوم قیلا".

وَاَطْرَافَ النَّهَارِ لَعَلَّكَ تَرْضٰى ﴿۱۳۰﴾

دا عطف دی، علی قبل طلوع الشمس او علی محل من اناً اللیل.

**درویش وایي**: چې د اطراف النهار د لمانځه څخه د سحار لمونځ او د مازدیګر لمونځ دی. فائده د تکرار د دې دو لمونځو مزید تاکید دی پر دغو دوو لمونځو. لان الفجر وقت نوم وغفلة والعصر وقت الاشغال بالتجارات والاکتساب وغیرها. کقوله تعالی حافظوا علی الصلوة والصلوة الوسطی چې بعض علمأ وایي چې صلوة الوسطی د سهار لمونځ دی لانها متوسط بین صلوتي اللیل ای المغرب والعشأ او صحیح داده چې مراد ځندي صلوة العصر دی ولې دا لمونځ متوسط دی په مابین د دو لمونځو د ورځې ای الفجر والظهر او دوو لمنځو د شپې ای المغرب والعشأ او صیغه د جمع چې اطراف دی راوړه، ولې چې په دې کې هیڅ التباس نه راځي او بعض مفسرین وایي چې مراد ځندي صلوة الظهر فقط ولې چې دا لمونځ نهایة دی د نصف اول د ورځې او بدایة د نصف ثاني د ورځې او جمع یې په اعتبار د نصفین ده. او بعض مفسرین وایي چې دا امر استحباب دی په نفلي لمونځو سره في اجزأ النهار وقیل غیر ذالک.

**پوه سه**: چې "لعل" په معنی دلام کې دی، ای لکی ترضی یعني په دغو اوقاتو مذکوره ووکې ته لمونځونه کوه د دې د پاره چې د رب العزت لخوا به دونه کرامت ووینې چې ته به راضي سې، او کسائي او ابوبکر یې په صیغه مجهول وایي. یعني ته به راضي کړل سي، د خدای لخوا څخه، او پر صیغه د معلوم او مجهول د دواړو ترجمه داده ای یرضاک الله او بعض مفسرین وایي لعلک ترضی بالشفاعة في امتک کما في سورة والضحی ولسوف یعطیک ربک فترضی.. سعدي رح وایي:

عطای شفاعت چنانش دهند.......... که امت تمامی ز دوزخ رهند

بخاري او مسلم او احمد او ابوداؤد او ترمذي او نسائي او ابن ماجه د جریر بن عبدالله څخه داسي روایت کړی دی دی، وایي چې موږ ناست وو، د رسول الله ﷺ سره یعني د شپې نو علیه الصلوة والسلام وکتل و سپوږمی ته د (۱۴) چې تاسي به خدای جل شانه داسي ووینئ په جنت کې، لکه تاسي چې وینئ دغه سپوږمۍ یعني بلا ریب و اشتباه لکن بلاکیف لاتضامون في رویته یعني

تاسي به يو دبل سره انضمام کوئ په رویت کي د خدای ﷻ یعني لکه د لیلة البدر د سپوږمۍ په لیدلو کي انضمام نشته" فان استطعتم على ان لاتغلبو على صلوة قبل طلوع الشمس و قبل غروبها فافعلوا. بیا علیه السلام دا آیت" فسبح بحمد ربک قبل طلوع الشمس و قبل غروبها" ووایه.

**درویش وایي:** چي ددې حدیث څخه دا معلومه سوه چي په آیت متلوه کي مراد د سهار لمونځ او د مازدیګر لمونځ دی والله اعلم بمراده، في کتابه. در شفاعت انحضرت ﷺ یک شاعر بلیغ چنان گفته.

امت همه جسمند تو ئ جان همه..... ایشان همه آن تو وتو آن همه
خوشنودی تو جست خدا درمحشر.... خوشنود نهٔ مگر بغفران همه.

**فائده:** در حدیث صحیح امده من داوم على الصلوة الخمس في الجماعة رفع الله عنه ضيق العيش و عذاب القبر، و يعطي كتابه بيمينه، و يمر على الصراط كالبرق و يدخل الجنة بلاحساب.

شان نزول ایت حسین کاشفي در تفسیر حسیني چنان فرموده ابو رافع نقل میکند رضي الله تعالى عنه. که مهمانی نزد پیغمبر ﷺ آمده و درخانه چیزی نبود که بدان اصلاح شان مهمان توانستی نمودو. مرا بنزدیک یکی از یهود فرستاد و گفت اورا بگو که محمد رسول الله ﷺ میگوید که مهمانی بمنزل ما نزول نموده ونمی یابم نیزدیک خود چیزی یعنی خوردنی که بدان اصلاح شان مهمان بکنم تاکه شرائط ضیافت بتقدیم رسد مقدار آرد بما بفروش و معامله کن تا ماه رجب چون وقت برسد بهای آن آرد میفرستم، پیغام آن حضرت ﷺ به یهودی رسانیدم او گفت که نه میفروشم و معامله مدانیه نمی کنم مگر آنگه که چه چیزی در گرو من نهد. ابو رافع رضي الله عنه میگوید که بآن حضرت مراجعت نمودم و کلام یهودی با او رسانیدم حضرت فرمود والله اني لآمین في السما وآمین في الارض اگر بامن معامله کرده البتة حق اورا ادا کردمی پس زره (زغره) خود بمن داد تا نزدیک یهودی گرو نمودم و او مقدار آرادداد این ایت جهت تسلیت دل مبارک وی نازل شد. ددې حدیث روایت ابن ابي شیبة او ابو یعلی ده ابو رافع څخه کړی.

وَلَا تَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ إِلَىٰ مَا مَتَّعْنَا بِهِۦٓ أَزْوَٰجًا مِّنْهُمْ زَهْرَةَ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا

"عینک" ای نظر عینک (و بـه فارسي كما قال الحسيني و بـاز مکش نظر چشمهاي خود يعني منگر دا عطف ده على قوله تعالى "فاصبر عطف الانشاً بالنهي على الانشاً بالامر) و هغه مثالونه يعني پر وجه د تمني چي ما هم داغسي اموال درلودای. يعني اصنافا من الكفرة كالمشركين واليهود والنصارى. دا يو زينت او ښائست دی د ژوند ناقص.

**پوه سه:** چي ازواجا مفعول بـه د متعنا او منهم صفت ده ازواجا دی "زهرة" منصوب دی په فعل محذوف سره چي متعنا دلالت پر کوي. ای اعطيناهم زهرة الحيوة الدنيا يا منصوب دی په متعنا سره چي متضمن معنا لره ده اعطينا دی. مظهري وايي يا بدل دی د محل څخه ده به چي محلاً منصوب دی. که څه هم لفظا مجرور دی. روح المعاني وايي و ضعفه ابن الحاجب في اماليه لان ابدال المنصوب من محل الجار والمجرور ضعيف. كمررت بزيد اخاك ولان الابدال من الضمير مختلف يه انتهى.

**درويش وايي:** چي هيڅ مفسر ته روانه ده چي تفسير د كلام بليغ د قرآن پر وجه ضعيف يې حمل کوي. امام واسطي رحمۃ اللہ علیہ وايي چي په دې تسلي ورکوي رب جل وعلا و فقراً ته د امت مرحومه په دې معنی چي خدای ﷺ خير الخلق د نظر و دنيا ته پر وجه د استحسان منع بقوله جل ذكره لا تمدن عينك آه.

لِنَفْتِنَهُمْ فِيهِ ۚ

چي موږ امتحان او اختبار وکړو ددوئ په ما متعنا کي. نو ضمير د "فيه" راجع دی. و ماته په آيت سابقه کي. د امتحان معنی داده چي دی ددې نعمت خداداده شكر وايي د قليل ما هم. او که په مال سره يې تكبر او طغيان زياتېږي. حتی چي مستحق د عذاب الهي و گرځي که نعمت يې منجرد کفر ته وگرځېدي نو داسي شی څخه بايد عاقل تنفر وکړي. قالوا عند الامتحان يكرم الرجل او يهان ولهذا اختار خير البشر ﷺ فقر الدينا على غناها والجوع عمل الشبع.

په صحیح حدیث کي راغلي دي ان الدنیا حلوة ( یعني صورة ددنیا شرین از روي متاع) خضرة حسنة في المنظر تعجب الناظر ( سر سبز او شاداب دی او ښه معلومېږي، په کتو کي په تعجب کي اچوي کتونکی. خضرة چي یې وویل ددې سبب چي د عربو چونکه مځکه وچه وه چي خضر دوئ ته ښه معلومېږي، او یا ددې سببه خضر ویلل چي لکه خضرواة زوال یې ژر دی او خلګ یې په خضرة او حسن ظاهري سره غولولي دي) "و ان الله مستخلفکم فیها" (او خدای تاسي خلیفه ګان ګرځوي په دنیا کي یعني په حقیقت کي خو مالک د اموالو ستاسو خدای دی صرف تصرف یې ستاسو په لاس درکړی دی لکه د کښت بزګر یا د باغ باغوان) فناظرة کیف تعلمون ( او خدای ګوري چي څرنګه تصرف کوي په دنیا کي او یا ذخیره د آخرة او ثمن د جنت یې ګرځوي او مهر د حورانو د جنت یې ګرځوي او کې د عذاب النار سبب ګرځوي او که زقوم او غسلین په رانیسي ) کمال خجندي رح وایي جهان و جمله لذاتش بذنبور عسل ماند ( ای مشابه است که شیرینش بسیار است و زان فزون شر و شورش ... مثنوي:

هر که از دیدار برخوردار شد .... این جهان در چشم او مردار شد.

از ره مرو بعشوه دنیا که این عجوز
مکاره مي نشیند و محتاله میرود

وَرِزْقُ رَبِّكَ خَيْرٌ وَّأَبْقَى ﴿١٣١﴾

یعني ما رزق الله یا محمد في الدنیا من الهدی والنبوة و سیادة الانبیا علیهم السلام او کفاف حلال بقد ما یسد جسدک و یدفع جوعک. او یا په آخرت کي من الجنة و مراتب القرب الی الله تعالی والشفاعة العظمی الی غیر ذالک "خیر وابقی" بهتر دی تر ما اعطی الله الکفار من الاموال و الجاه والجلال او ډېر باقي دی تر اموال ددوئ ولي چي د آخرة نبي و بنادی خو فنی نه لري. بلکه ابدي دي " بخلاف اموالهم و لذاتهم" شیخ سعدي شیرازي قدس وایي.

گر از ده بر زمین خسپ و بس..... مکن بهر فاني زمین بوس کس
نیرزد عسل جان من زخم نیش .... قناعت نکوتر به دو شاب خویش

خداوند زان بنده خرمند نیست .... که راضی به قسم خداوند نیست
پندار که چون سرکه خود خورم .... که جور خداوند حلوا برم
قناعت کن ای نفس بر آند کي .... که سلطان و درویش بیني یکي
یعني په ورځ د قیامت یا په دفن کي د قبر)
کند مرد را نفس اماره خوار .... اگر هوشمندي عزیزش مدار

## وَأْمُرْ أَهْلَكَ بِالصَّلٰوةِ وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا

او امر کوه ای قومک واهل دینک عطف دی پر لا تمدن "بالصلوة" په لمانځه سره مراد فرضي لمونځ دی. تخصیص د لمانځه چي وکړی لان الصلوة عماد الدین کریمة ان الصلوة تنهی عن الفحشاً والمنکر یعني کما امرناک بالصلوة فأ مر انت اهل بیتک و قاریک المؤمنین فان الفقیر ینبغي ان یستعین بالصلوة علی فقره او غم د معشیت دي نه کوي او اهل غنی ته دي نه ګوري "واصطبر علیها" او دوام وکړه پر لمانځه په حدیث صحیح کي راغلي دي چي رسول الله په اثر ددغه امر الهی یوه میاشت د سهار د لمانځه دپاره بې پر فاطمه او علي ﷺ باندي د لمانځه رغ کاوه و یقول الصلوة.

## لَا نَسْأَلُكَ رِزْقًا نَحْنُ نَرْزُقُكَ وَالْعَاقِبَةُ لِلتَّقْوٰى ﴿١٣٢﴾

موږ ستا څخه سوال د رزق یعني تانه مکلفوو په رزق نه د ځان دپاره او نه د اهل قرابت ستا او نه د اهل دین ستا بلکه ته او دوئ مامور بالعمل یاست. موږ رزق در کوو تاته بحذف المعطوف یعني و ایاهم د دوئ یعني ته زړه د عبادت لپاره فارغ کړه. او دوئ دي هم فارغه کړي خپل زړونه د طاعت لپاره. . . بیت

ای کریمي که از خزانه غیب ...... گبر و ترسا وظیفه خود داری
دوستان را کجا کنی محروم ...... تو که با دشمنان نظر داری

**یوه سه**: چي عاقبت ما یعقب الصالح من الثواب والجنة کما ان العقاب ما یعقب العمل السوء من العذاب والعبارة بحذف المضاف ای لاهل التقوی. ابن عباس ﷺ وایي چي اهل التقوی هغه کسان دي چي ستا د نبوت تصدیق په

کړې وي او ستا متابعت یې مختاره دی او دده عذاب څخه ده خدای بېرېږي، طبراني رح او بیهقي او ابونعیم رح داسي حدیث راوړی دی چي علیه السلام به په خپل اهل کي یو ناجوړی وغیره ولیدی هغه بې په لمانځه او دا آیت بې تلاوت کړی "وامر اهلک بالصلوة الی آخیر الایة" وهب بن منبه وایي چي په طلب کي حاجت د خدای جل شانه قوي واسطه لمونځ دی او سلف صالحینو چي یو حاجت بې درلودی لمونځ یې واسطه ګرځول لکن صدق قلب شرط دی.

وَقَالُوا لَوْلَا يَأْتِينَا بِآيَةٍ مِّن رَّبِّهِ

او ویل به مشرکانو د مکې. ولي راتګ نه کوي محمد (ﷺ) موږ ته. په یوه معجزه سره چي دلالت وکړي پر صدق دده په دعوی کي د رسالت.

**پوه سه**: چي دا جمله معطوف ده پر یقولون والمعنی ته صبر وکړه پر مایقولون و ما قالوا او هذا کلام مستانف والواو للاستئناف.

**فائده**: مشرکانو د مکې و معجزاتو ته د رسول کریم ﷺ لکه شق القمر او کلمه ویل د شګو په موټه کي د ابوجهل و غیر ذالک ته اعتبار نه ورکاوه. بلکي ګاهي بې علیه الصلوة والسلام ته ویل چي عصا موسی اوید بیضا معجزه موږ ته ښکاره کړه، او ګاهي بې ویل چي ته قصي بن کلاب چي زموږ نامداره مشر وو را ژوندی که، چي هغه ستا د نبوت تصدیق وکړي او ګاهي بې ویل چي مځکه د مکې غرونو تنګه کړې ده ته ستا خدای ته ووایه چي دا غرونه د مکې ایسته کي. او ګاهي بې ویل چي د صفا غر د سرو زرو وګرځوه چي موږ د انفاق او د تجارت کار څخه واخلو او ګاهي بې ویل چي په مکه کي جاري اوبه نسته ته ستا خدای ته ووایه چي په مکه کي لویه ویاله جاري کړي، چي موږ بې پر یوه او بل جانب باغونه او میوه داري درختي شنې کړو. و امثال ذالک. چي دې ته په عربي کي مقترحات سوالونه وایي. او دا سوالونه ددوئ صرف او صرف د عناد او تکبر له کبله وه.

**درویش وایي**: چي که چیرې د دوئ مقصود صرف صدق د علیه الصلوة والسلام په دعوی کي د رسالت معلومات غرض وای نو چي بله هیڅ معجزه نه و

ای قرآن عزیز معجزه باقیه او موجوده معجزه وه سورة البقرة و ان کنتم في ریب مما نزلنا علی عبدنا الی آخر الاية او څوځایه دا تقریع مکرر دوئ ته ورکړه سوې ده، نو که قرآن کریم من عند الله نه وای نو دوئ به یې په مثل د یوه سورت جوړ کړي وای. مع انهم شعراً بلغاً وه او رسول الله ﷺ په دې کي امي وو حتی چي کفارو د مکې تر مقابله د لسان چي ایمان بمثل السورة وه مقابله د سیف او سنان مختاره کړه، فعلم ان القرآن الکریم لیس من کلام البشر فافهم.

أَوَلَمْ تَأْتِهِم بَيِّنَةُ مَا فِي الصُّحُفِ الْأُولَىٰ ﴿١٣٣﴾

**یوه سه**: چي همزه د استفهام لپاره د انکار دی او نفي د نفي اثبات دی، او کلمه ده واو عطف پر مقدر باندي کما هو القانون النحوي في الحروف العاطفه الواقعة بعد همزة الاستفهام کما مر هذا القانون في هذا التفسیر في مواضع کثیرة والتقدیر الم یعرفوا صدقك في دعوی النبوة ولم تأتهم آه والمعنی ایا نه دی راغلی دوئ ته بلکه رسېدل دی د مافي الکتب الاولی یعني چي تر قرآن عزیز د مخه کتابونه وه لکه تورات انجیل او نور کتب سماویه.

**سوال**: قریش مکه خو په تورات او انجیل نه پوهېدل نو دوئ ته څرنګه ما في الصحف الاولی رسېدلي وو؟

**ځواب**: قریشو د مکې هغه وخت چي علیه السلام په مکه کي وؤ، وه یهودو ته د مدینه استاذي استول او د علیه الصلوة والسلام نخښې او نښاني یې علماؤ ته د یهودانو بیانولې، او دده د صدق او کذب پوښتنه یې ترې ځندي کوله. او د یهودانو ملا یانو به یې هغه وخت کي تصدیق کاوه، او یا معنی د آیت داده چي قرآن کریم پر خلاصه د مافي الکتب السماویة مشتمل دی، من العقائد الحقة والاحکام الکلیة او سره ددې چي راوړونکی د قرآن نبي امي دی، چي نې دغه کتب سماویه لیدلي او نه یې زده کړې دي د یو معلم څخه، د هغو کتابونو دا یو دلیل واضح او حجت بینه پر صدق دده په ادعا کي د نبوت.

**فائده**: ددې ایت څخه دا هم معلومه سوه، چي قرآن کریم لکه چي برهان واضح دی پر نبوت د آنحضرت ﷺ دغه رنګه شاهد صدق دی پر صحت د ما

تقدم من الكتب السماويه ولي چي نور كتب سماويه معجز نه وه بلكه اعجاز پوازي خاصه د قرآن كريم ده . نو هغه كتابونه و شاهد ته محتاجه دي . والقرآن يشهد بصدقها فافهم.

او بعض مفسرين وايي چي معنى دآيت داده چي تاسي ته بيان د صحف الاولى د خلگو او امتو در رسيدلي چي هغو ده دخپلو نبيانو څخه ايات مقترحه وغوښتي او هغه به خداى ﷻ په دعا د دوئ و نبي ته ورکړه ، او ددې سهني سره به هم دوئ ايمان نه راوړی ، نو خداى ﷻ به عذاب عاجل پر نازل کړی ، لکه قوم د صالح چي اوښه يې له صالح ۴ څخه وغوښته چي د يو غره څخه راووتل قصه مشهوره ده ، او د مخه مسطور وه ، لكن چي هغه اوښه دوئ مړه کړه ، عذاب د استيصال پر نازل سو چي ټوله په يوه وار خداى ﷻ په خپل قدرت د وجود كمبله څندي ټوله کړه په صيحه د جبرئيل ؑ يا په زلزله د مځکي ، او د غير قوم صالح من الاقوام چي آيات مقترحه يې غوښتي دي او بيا يې هم ايمان نه دی راوړی ، خداى عذاب دنيوي پر نازل كړی ، نو كه چيري تاسي قريشو ته ايات مقترحه درکړل سي او تاسي ايمان نه راوړئ ده تاسي سره به هم هغسي معامله وکړل سي . لكن چونكه آنحضرت ﷺ رحمة للعالمين د داسي آياتو مقترحه غوښتنه يې دخداى ﷻ څخه نه دي کړي شفقة على قومهم.

**وَلَوْ أَنَّآ أَهْلَكْنَٰهُم بِعَذَابٍ مِّن قَبْلِهِۦ لَقَالُوا۟ رَبَّنَا لَوْلَآ أَرْسَلْتَ إِلَيْنَا رَسُولًا**

(چونکه کلمه د فعل غواړي نو تقدير د كلام داسي دی) "لو ثبت" كه موږ هلاك كړو قريش په سبب د شرك د دوی ، په يو عذاب سره . يعني من قبل محمد ﷺ او من قبل البينة والتذكير . دوئ به وايي په ورځ د قيامت عذراً الى ربهم ، يا ربنا ولي راوا نستاوه تا موږ ته يو رسول يعني چي موږ ته يې حق لار راښوولې وای او د شرك قبائح يې موږ ته په گوته کړي وای .

**فَنَتَّبِعَ ءَايَٰتِكَ مِن قَبْلِ أَن نَّذِلَّ وَنَخْزَىٰ ⁽١٣٤⁾**

موږ به متابعت کړی وای د هغه رسول دا صيغه منصوب ده ، په اضمار د

"ان بعد الفا" لان لولا چي معنی اصل يې تحقيق د، په معنی د استفهام دی.
ستا د آياتو منزله وو په قرآن کي "من قبل ان نزل" ظرف دی د "فنتبع".
دمخه تر دې چي موږ ذليل کېدای په قتل او په سبي سره په دنيا کي "ونخزی"
او رسول کېدای په دخول د دوږخ په قيامت کي.

**درويش وايي**: چي حکمت د ارسال الرسول و انزل الکتاب ددې آيت په
مقتضی دفع د عذر ددوئ په ورخ کي د قيامت ورنه بطلان د شرک او توحيد د
باري عز وجل خو په عقل سليم هم معلومېږي، کما قال السيدي شيرازي رح.

برگ درختان سبز در نظر هوشيار... هر ورقی دفتريست معرفت کردگار

يو بل شاعر ددې په تائيد کي وايي.

گر انبياً هم نامدی فی مشرع بودي درجهان
واجب شدي بر مومنان ايمان به خالق مقتدر

وهذا مذهب الامام اعظم رح خلافًا للشافعي.

**قُلْ كُلٌّ مُّتَرَبِّصٌ فَتَرَبَّصُوا**

ووايه ته يا محمد (ﷺ) (دا کلام مستانف دی) په "کل" کي تنوين عوض د
مضاف اليه څخه دی ای کل واحد منا ومنکم) "متربص" منتظر دی تاسي کفار به
ويل نتربص بمحمد حوادث الدهر فاذا مات تخلصنا منه" يعني تاسي په داغه
شکنه ږودی پوري کوله چي مآل څرنگه کېږي په دينا کي، و هو القتل يوم بدر.

**فَسَتَعْلَمُونَ مَنْ أَصْحَابُ الصِّرَاطِ السَّوِيِّ وَمَنِ اهْتَدَىٰ ﴿١٣٥﴾**

يعني في يوم القيامة به تاسي پوه سئ، چي څوک دي درلودونکي د لاري
مستقيم چي موصل و جنت ته گرځي. او څوک دي پر اهتدا د ضلالة څخه
يعني موږ يو او که تاسي.

**پوه سه**: چي "من" په دواړه ځای کي لپاره د استفهام مرفوع محلاً مبتدأ ده
او مابعد يې خبر دی... قال الشاعر العربي بالکناية العجيبة"

سوف تری اذا انجلی العبارة ....... افرش تحتک ام حماره.

شاعر فارسي چه خوش گفته

زاه دان راه بین و راه بر ........ درحقیقت نیست خبر خیر البشر

وفي الحدیث لا یقرء اهل الجنة الا سورة "طٰه" و سورة "یٰس"

**درویش وایي:** چي لله الحمد والمنة والصلوة والسلام علی خیر البریة وآله وصحبه البررة فرغت من تفسیر جزء (۱۶) من القرآن العزیز وقت الظهر یوم الاثنین سلخ شهر ربیع الاول (۱۴۳۰هـ ق) في حجرتي و بتفسیر الجزئین (۱۵) (۱۶) ثم الجلد (۱۱) و ارجو من الله الکریم ان یوفقني الاجزا البقیة من القرآن العزیز في مجلدات ان شا الله العزیز و کان الله علی کل شئ قدیراً. ولیس للفقیر تمنی الا الموت علی حقیقت الاسلام و اتمام التفسیر للقرآن.

ع: من نیز حاضر میشوم تفسیر قرآن در بغل.

نصیحت عامه: پوه سه: چي علم یو لوی تناؤ دی هر چا چي لاس پوري تینګ کړی هغه کامیاب دی د دنیا ټوله نعمتونه فاني دي مګر علم هغه نعمت باقي دي چي په دار القرار کي هم په کار دی کما قال الشاعر الفارسي

بروده امن علم کهر استوار.... که علمت رساند بدار القرار

ترا علم در دین و دنیا تمام.... که کار تو از علم گیرد نظام

**فائده:** هر څو مدح د علم چي په قرآن عزیز کي او په احادیثو شریفه و کي او په اقوال داهل علم کي چي بیان سوې ده هغه علم العقائد الحقة و علم الشریعة المطهرة دی و ما یتوقف هما علیه. د علم په شرف کي دا آیت کافي دی "و قل رب زدني علماً" چي خیر البشر ﷺ خدای تعالی ﷻ مامور کړی په دعا د زیادت د علم سره، و فوق کل ذي علم علیم حتی ینتهي سلسلة العلم الی الخبیر ﷻ عالم الغیب والشهادة.

تمّت

# د تفسیر ایوبئ حنفي د مضامینو فهرست

محترمو مسلمانانو عقیده د انسان لپاره ډېره مهمه او د فهم وړ شی دی، که حقیقت ته لږ کتنه وکړو، نو عقیده د انسان د نجات او خلاصون ذریعه هم ګرځي، او همدا رنګه عقیده د انسان لپاره د ابدي دوږخ او عذابونو سبب هم ګرځي، نو د عقیدې په اړه زمونږ د ادارې له خوا په پښتو ژبارې سره د اهل السنة والجماعة د تکړه عالم مرحوم مولانا محمد ادریس کاندهلوي صاحب سابق شیخ الحدیث جامعه اشرفیه لاهور مشهوره کتاب په نامه د:

# عقائد الاسلام

چي د کور هر فرد، نارینه او ښځینه لپاره ډېر مفید دی، او په دې کتاب کي د ټولو باطلو فرقو بیان په ښه وضاحت سره لیکل سوی دی، او د ټولو باطلو فرقو رد په قرآن او احادیث سره سوی دی، نور نو کتاب چاپ سوی دی د کتاب په مطالعه کولو سره به یقیناً د باطلو فرقو په حال احوال خبر سئ.

الناشر

مکتبة القراءة والتجوید

کاسي روډ کوټه بلوچستان

و تولو دین دوستو ورونو ته خبر ورکول کېږي چې د امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه پر مذهب باندي لیکل سوی کتاب چي له عربي څخه پښتو ته زموږ د ادارې له خوا ژباړل سوی دی په ډېره روانه او سلیسه پښتو سره چي د عباداتو تر څنګ د معاملاتو مسائل هم پکښې دي یعني

# المفید في العبادات والمعاملات

## علی مذهب امام ابو حنیفه رحمة الله علیه

ډېر ژر به زموږ د ادارې له خوا وچاپ ته ورسېږي ان شآ الله تعالی، ددې کتاب خصوصیات دادي چي د پوښتنې او ځواب په شکل کي تول مسائل راوړل سوي دي، په دې کتاب کي څلور کتابونه دي یعني کتاب الصلوة، کتاب النکاح، کتاب البیوع او کتاب الشفع.

تفسیر ایوبي حنفي د نصیراحمد احمدي لخوا

سکین او pdf سو. واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

**الناشر**

مكتبة القرآءة والتجويد

کاسي روډ کوټه بلوچستان

تفسیر ایوبي حنفي۱۱ ټوک

د نصیراحمد احـمـدي لخوا

سکین او pdf سـو.

تاریخ. ۲-۱۱-۱۳۹۸

واتساپ، ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

د دعـا محـتـاج احـمـدي!